# فهرست مضامین

# یادګیرنه

دَ فهرست په آخر کښے دا ذکر نهٔ صرف مناسب بلکه ضروری ګنړم چه دَ "فتاوی ودودیهٔ" مؤلف مولنا مولوی محمد ابراہیم صاحب ابن حضرت مولنا عبد المجید صاحب دَ فتاوی ودودیه دَ تدوین نه پس په قضائے الٰهی سره دَ شوقدرپه میاشت کښے وفات شو۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ۔ دَ مرحوم تاریخ وفات دا دے:۔ شپه دَ جمعة المبارک نځلسم دَ شعبان المعظم سنه ۱۳۷۰ھ په حالت دَ مرض کښے اعلیحضرت والئی سوات دَ دوئ دَ علاج په سلسله کښے قابل قدر مالی امداد کړے وو۔ او کوم وخت چه وفات شو نو اعلیحضرت بادشاه صاحب په خپل موټر کښے دَ هسپتال سیدو شریف نه دَ دوئ لاش "بازارګی بونیر" ته په قدر و احترام سره اولیګلو او دَ دوئ په تکفین تجهیز او مزار جوړولو کښے ګرا نقدر مالی امداد وکړو۔ مرحوم په آخری ورزو کښے یو منظوم مناجات لیکلے وو۔ او خپل والد صاحب ته ئے داوصیت کړے وو چه دا نظم دِ په "فتاوی ودودیهٔ" کښے ضرور شامل شی۔ او ماته ئے هم دَ خط په ذریعه دا ارشاد فرمائیلے وو چه څما دَ وفات نه پس په فتاوی ودودیه کښے دِ څما تاریخ وفات او لیکلے شی۔ له دے وجهے نه ما مخکښے دَ هغوئ دَ وفات او تاریخ وفات ذکرا وکړو۔ او لاندِ دَ هغوئ هغه منظوم مناجات هم درج کوم۔ الله تعالیٰ دِ دَ هغوئ مغفرت او خپل بے پایانه رحمت نصیب کړی۔ او اعلیحضرت والئی سوات دِ دَ علم پروری په وجه همیشه کامران او شادمان وی۔ آمین

# کتاب الصلوٰة

دَ پنځو وارو وختونو فرض مونځونه فرض عین دی۔ په هر مکلّف باندے۔ او مکلّف هغه څوک دے چه مسلمان دی او بالغ دی او عاقل۔ برابره خبره ده چه نر دی او که ښځه۔ او که نر ښځے۔ او برابره خبره ده چه مریئے دی۔ او که آزاد۔ دا مونځونه په ټولو فرض دی۔

حضور نبی علیه الصلوٰة والسّلام چه لا دَ مکے معظمے نه مدینے منورے ته هجرت نه وُو فرمائیلے او نبی شوے وُو۔ په دغه وخت کښں یوه شپه دَ خدائی پاک په حکم سره آسمانونو ته اوچت کړے شه۔ عجائب او غرائب ئے ولیدل۔ دے ته معراج ویلے شی۔ دا پنځه مونځونه دَ معراج شریف په شپه فرض شوی دی۔ وائی چه دَ دے نه مخکښں صرف دوه مونځونه وُو۔ یو دَ نور ختونه مینه۔ او بل دَ نور پریوتو نه مینه۔ بس۔ او دَ آدم علیه السلام نه حضور دَ نبی ؑ پورے څومره نبیان چه تیر شوی دی۔ دَ هریو په شریعت کښں مونځ هم وه۔ دَ ماخام نه خالی نه وُو۔ الغرض په مونږ باندے پنځه مونځونه فرض دی۔ دا دَ خدائے پاک حق دے۔ څوک چه دَ دے دَ فرضیت نه انکار کوی۔ هغه یقیناً کافر دے۔ او څوک چه ئے بلا عذره پریږدی۔ دَ هغه دَ پاره سخت وعید دے۔ امام شافعی صاحبؒ او نور پیر امامان صاحبانؒ وائی۔ که یو مونځ ئے دَ شرعی عذر نه قصداً په بے پروایئے سره پریښود نو قتل دے کړے شی۔ او ځینے وائی چه دَ مونځ په پریښودلو سره کافر شه۔ نو وُژلے دے شی۔ او ځینے وائی چه دومره دے او وهلے شی چه وینے ترے او بهیږی۔ لیکن حضور امام اعظمؒ وائی چه قید ته دے واچولے شی۔ تر دے پورے چه توبه او باسی۔ یا په قید خانه کښں مړ شی۔ اگر که چه دنیاوی سزائے دا شوه۔ نو دَ آخرت سزا به ئے څومره وی۔ افسوس دے چه په دے زمانه کښں اکثر خلق مونځ نه کوی۔ او څوک چه ئے کوی۔ هغه ئے پابندی نه ساتی۔ او نه ئے په اهتمام سره ادا کوی۔ اِلَّا مَا شَاءَ اللّٰه تعا۔ خداوند پاک فرمائی اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ په تحقیق سره مونځ منعه کوی دَ بدو خبرو نه او دَ ناکاره کارونو نه۔ یعنے

۱ الخ شرح التنویر ورد المحتار ۱۲۔

په مانځه کښې هغه برکت او جاذبیت پروت دے۔ چه د هغې په وجه په زړه کښې یو نورانیت پیدا شي۔ بیا ئے د نیک کارونو شوق وی اود بد و کارونو نه نفرت۔ نو څه وجه ده چه مونږ شپه او ورځ مونځونه کوو۔ لیکن اعمال مو خراب دی او حالات بد تر۔ وجه دا ده چه د سنت سره موافق ئے په ښه طریقه نه ادا کوو۔ او اهتمام ئے نه ساتو۔

په صحیح[1] حدیث کښې راغلی دی چه د خپل رب جل جلاله عبادت په عاجزئ او په فکر سره کوه لکه چه ته ئے اینے۔ او که دا خیال نه شي کولے نو کم از کم دومره خیال وکه۔ چه هغه رب اینی مونږ چه د خپل رب جل جلاله په بارګاه کښې د مانځه د پاره ودریګو۔ مینه د تکبیر تحریمه د پاره لاسونه ترغوږونو پورے اوچت کو۔ مطلب دا دی۔ چه اے خدایه د دنیا نه او د دنیاوی خیرونه م لاس بالکل اوچت کړه۔ د ُس خو صرف ستا عبادت ته حاضر شوم۔ لیکن بیا په مانځه کښې هغه وسوسے۔ هغه تفکرات او خیالات تصورات را ټکلېږي شي چه الامان الامان۔ نه حضور قلبی دی۔ نه په فکر کښې یکسوئی نه خشوع خضوع۔ او نه تعدیل د ارکانو۔ نو د داسے مونځ به څه اثر وی۔ او څه برکت۔

**لطیفه:**۔ یو عالم یو بیلمازه سړی ته نصیحت وکه۔ چه مونځ کوه۔ ډیر د فایدے شے دے۔ زړه به د رو ښانه شي۔ او خوند به درکی۔ نو هغه جاے ونیکلے۔ ځان ئے مانځه که۔ مونځ ئے شروع که۔ څه ورزے پس ورته عالم صاحب اووے۔ چه ودِ لیده؟ مونځ څومره ښه شے دے۔ نو هغه اووئیل۔ ملا صاحب! په مانځه کښې م هیڅ فائده ونه لیده۔ سوا د دے نه چه سجدے له لاړشم۔ بادم په آسانئ وځي۔ او ګیډه م ښه سپکه شي۔ بس۔

څرنګه چه مونځ بے د شرائط نه نشي کیدے۔ دارنګ د مانځه اثر او برکت د پاره رعایت د مناسبے طریقے هم ضروری دے۔ مونځ چه څومره په ښه طریقه ادا کولے شي۔ د هغې مناسب برکت حاصلیږی۔ نو اهتمام ئے ډیر پکار دے۔ خدائے پاک دے مونږ له پوره پوره توفیق راکی۔ او مونږ دے د خپل قهر او غضب نه محفوظ وساتی۔ آمین۔

**روایت**[2]:۔ ابو هریره رض وائی چه یو سړے نبی علیه السّلام ته راغے۔ وے وئیل۔ چه فلانے د شپے مونځ کوی۔ او چه سحر شي نو غلا کوی۔ نو نبی علیه السلام اوفرمائیل زر ده چه مونځ به ئے د دے کار نه منع کی۔

**روایت**[3]:۔ یوه پیره نبی علیه السلام او فرمائیل چه په غلو کښې لوئے غل هغه

له رواه مسلم ۱۲ ته اخرجه احمد وابن حبان والبیهقی ۱۲ ته رواه الطبرانی ۱۲

دے۔ چه د مونځ غلا کوی۔ نو تپوس تے وکړے شه۔ یارسول الله۔ د مانځه غلا څنګه ده۔
نو ورته فرمائیل چه رکوع او سجده ئے په ښه شان سره نه اداکوی۔ او بخیلانو کښې لوئے
بخیل هغه دے چه په سلام سره بخل کوی۔

**روایت**[1] :۔ هر مونځ محو کوی مخکښې ګناهونه۔ یعنے د اول مانځه نه د دوئیم پورے
چه څومره صغیره ګناهونه وی۔ هغه په دعه دوئیم سره محو کیږی۔

**روایت**[2] :۔ که خلقو ته معلومه وے۔ چه په بانګ او اقامت کښې او په اول صف
کښې څومره لوئے فضیلت دے۔ او بیائے بے خسنړے نه موندلے۔ نو خسنړے به ئے
پے کاوُ۔ او که معلومه وے۔ چه د ماسختن او د سحر په مانځه کښې څومره لوئ فضیلت
دے۔ نو ضرور به راتله۔ اګرکه په ځږپوسو وے۔

**روایت**[3] :۔ د ټولو نه اول چه به د بنده سره د قیامت په ورځ د کوم شی حساب
کیږی۔ هغه مونځ دے۔ که دائے ښه وُ۔ نور عمل به ئے هم ښه وی۔ (ځکه چه د مانځه
په برکت سره د مونځګذار عمل او حالت ښه کیږی) او که دائے خراب وُ۔ نور اعمال
به ئے هم خراب وی۔ بیا به خدائے پاک فرشتو ته حکم وکی۔ چه ځما د بنده په
عملنامه کښې نفل اوګورئ۔ که نفل ئے وی۔ نو په فرض مانځه کښې چه کوم خلل
راغلے وی۔ هغه به په دے سره پوره کړے شی۔ بیا به فرائض هم دارنګے (یعنے نور
فرائض به هم دارنګ په نفل سره کامل کړے شی۔ یعنے فرض روژه په نفلی روژه
زکواة په نفل صدقے وغیره) د خدائے پاک په مهربانئ سره۔ ورنه پکار خو دا وه چه
د فرض تکمیل په نفل نه راتلے۔ بلکه صرف په فرض و راتلے۔ خو دا د خدائے پاک رحمت
دے او مهربانی ده) د دے حدیث نه معلومه شوه چه د قیامت په ورځ به د ټولو نه مخکښې د
مونځ تپوس کیږی۔ ؎

روز محشر که جان گداز بود    اولین پرسش نماز بود

د کومے[4] پورے چه ئے تندرستی وی مونځ پے باقاعده فرض دے۔ په هیڅ حالت کښې به
ئے نه پریدی۔ که په ولاړے ئے قدرت نه وی۔ په ناسته دے وکی۔ که په ناسته نه شی
کولے۔ په ملاسته دے په اشارت وکی۔ البته په ښځه باندے د حیض او د نفاس د
زمانے مونځ نشته۔ نه ادا۔ نه قضا۔ دارنګ که څوک لیونے شه۔ او لیونتوب ئے د
یو شپواروز نه زیات وُ۔ یا بے هوشه شه۔ او بے هوشی ئے د یو شپواروزنه زیاته وه۔

---

[1] مصره احمد ۱۲ [2] بخاری و مسلم ۱۲ [3] رواه ابن عساکر ۱۲ [4] در مختار و شامی ۱۲

نو دغه زمانے دَ مونځو نو قضا په نشته - او که یو شو او روژی - یا کم - نو قضا په لازمه ده - او که چا شراب وڅکل - یا بله څه نشه ئے وکړه - په دے وجه بے هوشه شه - نو دا بے هوشی اګر که دَ یو شو او روژ نه زیاته وی - هم په قضا لازمه ده - او په نابالغ باندے مونځ نه دے فرض - خو کوم وخت چه دَ اووه کالو شی - مور او پلار ته ئے دا حکم دے چه هغه ته دے دَ مانځه حکم کوی - او چه دَ لسو کالو شی - بیا دے په مانځه وهی هم - خو په لاس - او زیات نه زیات درے ځله - او دَ دے وخت نه دے ورته دَ شریعت دَ ضروری احکامو تعلیم هم ورکوی - لیکن کوے خبرے چه ورته ګران وی لکه روژه شوه دَ هغے تاکید دے هُمره نه کوی - او استاد ته هم دا حکم دے - چه وړوکے دے یو دم دَ درے پیرے نه زیات نه وهی -

حد دَ بلوغ | په شریعت کښ دَ بلوغ نه مراد ځوانئ ته رسیدل دی - او بالغ هغه څوک دے - چه ځوانئ ته رسیدلے وی - دَ هلک دَ پاره دَ بلوغ یو علامت احتلام دے - یعنے داچه په خوب کښ ئے شیطان خطاکی - غسل په واجب شی - بل احبال دے - یعنے دَ ده نه دَ ښځے کیږه کیدل - بل اِنزال دے - یعنے په شهوت سره منی دَ خپل اصلی مقام نه وتل - او دَ جینئ دَ پاره حیض دے - او احتلام - او حمل - او په هسے انزال سره هم ځوانئ ته رسی -

**مسئله** :- هلک د دولسو کالو نه مخکښ - او جینئ دَ نهو کالو نه مخکښ ځوانئ ته نه شی رسیدے - هاں که د دے نه پس په مذکوره علامتونو کښ یو علامت پکښ موجود شه - نو بالغ به وګڼلے شی - وس مکلّف شه نو کوم حکمونه چه دَ مانځه او داسے وغیره په بالغ لګی - هغه به په جاری کیږی - او که علامت پکښ یو هم ښکاره نه شه - او عمرئے پوره پنځلس کاله شه نو هم به وس بالغ ګڼلے شی - برابره خبره ده چه هلک وی او که جینئ -

دَ مانځه دَ وختونو بیان | دَ شپے په آخره حصه کښ نور خانه طرف ته دَ آسمان په مینځ کښ په اوږدو یو سپین واے ښکاریږی - هغے ته صبح کاذب ویلے شی - بیا ئې ساعت پس دغه طرف ته دَ آسمان په غاړو باندے په پلنی یو سپین واے ښکاره کیږی - او ساعت په ساعت زیاتیږی - تر دے پورے چه ښورشی - او ښه رڼا شی - دے پلن سپینوالی ته صبح صادق ویلے شی - دَ سحر دَ مانځه وخت دَ صبح صادق شروع کیدو نه شروع کیږی -

---

۱؎ شرح التنویر و شامی ۱۲ ۲؎ بحر رائق ۱۲

اوږد کومے پورے چه نور لا نه وی خپلے د هغے پورے وی۔ نو نور که د اُفق نه ابتداء غه را اوخوت
د صبا وخت ختم شه۔ بیا چه نور د سر برابر ته اورسی۔ دغه وخت د استوا دے
او وخت د زوال۔ او چه د سر نه ابتداء غه واوختید۔ د ماسپښین وخت شروع شه۔ د
معلومولو طریقه ئے داده۔ چه سړے ییغ ترګړے په آواره زمکه غزموته ودروی۔
نو په شروع کښې به ئے سورے نور پریوتو غاړے ته وی۔ او اوږد به وی۔ او چه
نور څو مره اوچتیږی دا سورے به کمیږی۔ او راټولیږی به۔ نو چه کمیدل ئے ختم
شی۔ بس دغه وخت د زوال[عه] دے۔ او چه بیا ئے زیاتیدل شروع شو۔ نو د ماسپښین
وخت شروع شو۔ بیا چه د دغه لرګی سورے د دغه لرګی نه دوچند شی۔ د ماسپښین
وخت به ختم شی۔ خو په دے دوچندئ کښې د زوال دغه سورے حساب نه دے۔
مثلاً لرګے یو لویشت وُ۔ او د دهٔ سورے په دغه ورځ د استوا په وخت کښې څلور
ګوتے وُ۔ نو چه سورے ئے دوه لویشتے او څلور ګوتے شی۔ هله به د ماسپښین وخت
ختمیږی۔ او د ماز یګر وخت به شروع کیږی۔ بیا چه نور لا نه وی پریوتے۔ د هغے پورے
د ماز یګر وخت دے۔ او چه نور پریوت۔ شپه را اوخته۔ نو د ماښام وخت شه۔ او د
کومے پورے چه شفق نه وی ډوب شوے د هغے پورے به وی۔ او دا ځائے د صاحبینو
په نزد د شفق نه مراد هغه سور والے دے چه د نور پریوتو غاړے ته د آسمان په
غاړه ښکاری۔ او د امام صاحبؒ په نزد هغه سپینوالے دے چه پس د دغه سور والی
نه ښکاری۔ او چه شفق پریوت نو د ماسختن وخت شروع شه۔ او چه صبح صادق لا نه وی
ښکیدلے۔ د هغے پورے ئے وخت شته۔

**فائده** :- د زوال وخت معلومولو آسانه طریقه داده۔ چه مېنه په آوار ځائے یوه
کرخه سیده قطب په نیغه وُ را کاږی۔ او هغے ته خط زوال ویلے شی۔ بیا په خط زوال
باندے یو نیغ نرے لرګے یا بل داسے شے ودروی۔ او دے ته مقیاس ویلے شی۔ نو کوم
وخت چه د مقیاس سورے سیده په خط پریوت۔ بس دغه وخت د زوال دے
او دغه سورے سورے د زوال دے۔ او د خطِ زوال د ښکلو ښه طریقه۔ طریقه د
دایرے هندیه ده۔ هغه داده[له] چه مېنه په یو آوار ځائے باندے یوه دایره او باسی۔
یعنی بالکل غونډه کرخه او بیا د هغے په مرکز باندے یعنی بالکل په مینځ باندے مقیاس[۲]

---

له شرح چغمنی ۱۲ ـ ته مقیاس تقریباً د قطر څلورمه برخه او ګرد یکار دے۔ او قطر هغه خط دے۔
چه د دایرے د یو سرنه سیده دے وی د بل سره پورے ۱۲ منه عه زوال ویته مجازاً وائی۔ ورنه په
اصل کښې قُبَیْلَ الزَّوَال دے ۱۲ منه

دُدروی - نو دَ مقیاس سورے به په دمه دمه را ټولیږی - بیا به دایرے ته ننوزی - نو چه دَ سوری سر دائرے ته راورسی - او دایرے ته لا نوی ننوتے په دغه برابر دے په دایره نخه وکی - بیا به سورے دایرے ته ننوځی - زُوژُو به روان وی - او چه نورخانه ته دَوتو شی - بیا به ئے سر په دایره لګی - نو په دغه برابر دے بله نخه وکی - مخ دوه شوے - یو دَ سوری ننوتو - بله دَ وتو نو دَ دے دواړو نخو په مینځ کښی چه شمال غاړے ته کوم قوس راغے - یعنے قطب ته چه دد ائرے کومه ټکړه ددواړو نخو په مینځ کښی راغله - خاص دَ هغے په نیمه باندے یوه نخه وکی - بیا دے یو نیغ خط په دے نخه او په مرکز راولی - بس دا خط خطِ زوال دے - کوم وخت چه دَ مقیاس سورے په دے خط برابر شی - هغه وخت به دَ زوال وی - یعنے دَ استوا - او چه دَ دے خط نه سورے نورخانه ته واوړی - دَ ماسپښین وخت به شروع شی - دد ائرے شکل دغه دے - په دے دائرے سره سمت دَ قبلے هم معلومیږی - خو دا ځائے دَ تفصیل نه دے -

مغرب
دایرهٔ هندیه
مرکز
شمال
جنوب
مشرق

**مسئله** [١] :- دماسختن کوم وخت چه بیان شه - هغه دَ وتر وهم دے - خو دومره خبر ده چه وتر دَ ماسختن دَ مانځه نه مخکښی ادا کول جائز نه دی - ځکه چه دا ترتیب واجب دے - هاں که په هیر سره مخکښی شه - مثلاً دَ ماسختن فرض مونځ ئے لا نه وُکړے او خیال نه ئے راغله چه ما کړیدے - او وتر ئے وکړه - بیا ئے یاد شو چه فرض مې نه دی کړی - بیا ئے فرض وکړه - نو دَ امام صاحبؒ په نزد وتر شوے دی - او صاحبینؒ وائی چه وتر به دوباره کوی - هغه نه دی شوی -

**مسئله** [٢] :- که څوک دَ تهجد مونځ کوی - او په ځان ئے اعتماد وی - چه زه به پاسم نو هغه له وتر دَ تهجد دَ مانځه د رستو کول غوره دی - لیکن که دَ ویښیدو اعتماد ئے په ځان نه وی - بیا دے ماسختن کوی -

**مسئله** [٣] :- کوم ځائے چه دَ ماسختن وقت نه وی - لکه بلغار کښی - او بلغاریو وطن

---

[١] په دے وطنونو کښی دا حال وی - یعنے په معظم معموره کښی ١٢ منه [٢] شرح التنویر وشامی ١٢ [٣] شرح التنویر ١٢ [٣] در مختار ورد المحتار ١٢ تمام تفصیل په اُردو هدایه کښی ذکر دے ١٢

دے - هغلته په کال کښې داسے شپے هم راځي - چه دَ ماسختن وخت پکښې نه وی - یعنے دَ نور پریوتو نه د رسنتو شفق لا نه وی پریوتے - چه نور بیا راخیژی - نو اے دَ هغه ځائے په مسلمانانو باندے دَ ماسختن مونځ شته او که نه - په دے کښې اختلاف دے - ځینے عالمان وائی چه نشته - او ځینے وائی شته - بیا په دے کښې هم اختلاف دے - ځینے عالمان وائی چه نیت به دَ قضا کوی - او ځینے وائی چه نه - (نوټ) دغے وطن نه والی صاحب تلے وه په سنه ۱۳۷۳ هـ کښې

**مسئله**[۱] :- غوره داده چه عذر نه وی - نو دَ سحر مونځ دے هغه کوی چه رنړا بنه وکړی - یعنے په داسے وخت دے شروع کوی چه که تلاوت پنځوس آیتونه پکښې ووستل او بیا مونځ په څه وجه فاسد شه - نو چه دے بیا اودس کوی - مثلاً - او دغه مونځ په دغه طریقه را وګرځوی - وخت به لا نه وی وتے - هاں خصوصاً دَ سحر مونځ دَ صبا په وخت په تیرے کښې غوره دے - او حج کونکی له هم په مزدلفه مقام کښې دَ سحر مونځ په تیرے کښې غوره دے - نوری او که څنګه -

**مسئله**[۲] :- دَ جمی په موسم کښې دَ ماسپخین په مانځه کښې تلوار ښه ده - او د اوړی په موسم کښې تاخیر[۳] غوره دے - خو دومره نه چه سورے یو مثل نه اورسی - ځکه چه دَ ماسپخین[۴] په آخیری وخت کښې اختلاف دے - صاحبینؒ وائی چه دَ یو مثله پورے دے او امام صاحبؒ وائی چه دَ دوه مثله پورے دے - نو عالمان وائی احتیاط په دے کښې دے چه دَ ماسپخین مونځ دَ یو مثل نه مینه ادا کی -

**مسئله**[۵] :- په ځینے کتابونو کښې ئے راوړی دی - چه دَ موسم بهار حکم په شان دَ جمی دے - او دَ موسم خزان حکم په شان دَ اوړی

**مسئله**[۶] :- موسم که دَ ګرمئ وی او که دَ یخنئ دَ مازیګر په مانځه کښې تاخیر غوره دے - لیکن دومره نه - چه نور زیړ شی - او که نور زیړ[۷] شه او په نظر کولو کښې ورته سترګے نه بریښید ئے - هغه ئے مونځ شروع که - نو دومره تاخیر ئے چه راوست دا مکروه تحریمی دے - ځکه چه دا وخت، وخت دَ کراهت دے -

**مسئله**[۸] :- دَ ماښام مونځ په اول وخت کښې غوره دے ګرمی وی - او که یخنی - لیکن دومره تاخیر پکښې راوستل چه ستوری ګنړ ا ښکاره شی - مکروه تحریمی دی -

**مسئله**[۹] :- چه وریځ وی نو دَ ماسپخین او دَ ماسختن په مانځه کښې جلدی غوره

---

[۱] شامی ۱۲ [۲] هندیه ۱۲ [۳] په دے قسم مسئلو کښې دَ تعجیل او تاخیر نه مراد هغه دے چه په وخت کښې دننه دننه وی ۱۲ منه [۴] شامی ۱۲ [۵] در مختار ۱۲ [۶] در مختار و شامی ۱۲ [۷] بحر رایق ۱۲ [۸] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [۹] منیه ۱۲

ده۔ او نورو مونځونو کښې تاخیر غوره دے۔ لیکن که وخت په څه ذریعه معلوم شه بیا دے په خپل خپل غوره وختونو کښې کوی۔ لکه چه مینه بیان شوی دی۔

**مسئله**[1] :۔ دَ ماسختن دَ مانځهٔ دَپاره مستحب وخت هلته دے چه دریمه برخه دَ شپے ووځی۔ او ځینے وائی چه په اوړی کښې جلدی غوره ده چه جماعت کم نشی۔ او دَ نیمے شپے نه ئے اړول مکروه دی۔ جماعت په کمیږی۔

**مسئله**[2] :۔ دَ ماسختن دَ مانځهٔ نه مینه اوده کیدل مکروه دی۔ خو هله چه دَ مانځهٔ دَ وخت وتلو یا دَ جماعت نه سوندلو خوف وی۔ او که دا خبره نه وه۔ مثلاً دَ سفر په وجه ڈوک ستړے وُ۔ بل ته ئے اوویل چه ما دَ جماعت دَپاره بیاویخ که او هغه ورسره وعده وکړه۔ نو په دے صورت کښې اوده کیدل مکروه نه دی۔

**مسئله**[3] :۔ دَ جمعے دَ مانځهٔ وخت هم هغه دے کوم چه دَ ماسپخین وخت دے۔ خو دومره خبره ده چه دَ گرمئ په موسم کښې دَ ماسپخین په مانځهٔ کښې تاخیر غوره دے۔ او دَ جمعے مونځ همیشه په اول وخت کښې سنت طریقه ده۔ او دا دَ جمهور یعنے ډیرو عالمانو قول دے۔

**مسئله**[4] :۔ دَ اخر دَ مانځهٔ وخت دَ نور ختو نه پس شروع کیږی۔ ولے هله چه نور یوه نیزه دوه اوچت شی۔ چه بیا ورته نظر برابر نشی۔ او نظر ترے تښتیږی۔ او چه نور دَ سر په برابر نه وی را غلے۔ یعنے استوا چه لا نه وی شوے دَ هغے پورے وی۔ دا وخت دَ دواړو اخترو دے۔ خو دَ لوے اختر په مانځهٔ کښې جلدی غوره ده۔ دَپاره دَ قربانئ۔ او دَ وړوکی اختر په مانځهٔ کښې تاخیر غوره دے دَپاره دَ فطرے۔

**مسئله**[5] :۔ دَ نور ختو په وخت کښې۔ او چه نور دَ آسمان مینځ له راشی۔ په هغه وخت کښې کوم وخت ته چه وخت دَ استوا وئیلے شی۔ او دَ نور پریوتو په وخت کښې نفل جائز نه دی۔ او فرض په کښې هم نه کیږی۔ هاں که دغه ورځے دَ مازیگر مونځ ئے لا نه وُ کړے۔ او دس ئے دَ نور پریوتو په وخت ادا کاوُ نو کولے شی۔ او دا دریواړه وختونه اوقات مکروهه دی۔ په دے کښې سجدهٔ دَ تلاوت هم منع ده۔ او مونځ دَ جنازے په کښې هم منع دے۔

**مسئله**[6] :۔ که جنازه په وخت مکروه کښې حاضر کړے شوه۔ نو دَ دے جنازے مونځ په دغه وخت کښې جائز دے۔ دا رنگ که په وخت مکروه کښې چا آیت دَ سجدے

---

[1] شرح التنویر وشامی ۱۲ [2] دروند ۱۲ [3] قاریٔ الهمایه ۱۲ [4] درمختار وشامی ۱۲ [5] کبیری وشامی ۱۲ [6] زیلعی ومنتقیٰ ۱۲

ؤلویست - نو په دغه وخت سجده د تلاوت کولے شی - خو بیا هم لږ شان کراهت پکښې شته - یعنی مکروه تنزیهی دی -

**مسئله**[1]:- د سحر مونځ چه وکی نو د کوم پورے چه نمر نه وی ختلے - نفل مونځ دِ نه کوی - مکروه تحریمی دی - هاں قضا مونځ کولے شی - او سجدهٔ د تلاوت هم کولے شی - او چه نمر راختونکے وی - نو د کوم پورے چه پوره نیزه اوچت شوے نه وی - بیا دا هم مکروه او منع دی - دا رنګ د ماز یګر د مانځه نه پس هم نفل کول منع دی - او قضا مونځ او سجدهٔ تلاوت کولے شی - لیکن که نمر زیړ شے شه - بیا دا هم مکروه تحریمی دی -

**مسئله**[2]:- د سحر د مانځه نه پس او د ماز یګر د مانځه نه پس نفل جائز نه دی - بلکه چه ذکر شو - او د جنازے مونځ پکښې جائز دے -

**مسئله**[3]:- د صبا ختو نه پس د فرض مانځه نه مخکښې هم نفل کول مکروه او منع دی - هاں قضا مونځ پکښې کولے شی - او سجده د تلاوت پکښې هم کولے شی - او که د سحر سنت د چا نه پاتے شو - او فرض ئے وکړه نو ورسره ئے د فرض نه پس نشی کولے - هاں چه نمر پوره نیزه اوچت شی - هغه وخت که دوه رکعته نفل وکی نو ښه ده -

**مسئله**[4]:- که د سحر مونځ ئے کاوو - او په مانځه کښې نمر را اوختو نو مونځ ئے ونشه - چه نمر پوره نیزه اوچت شی بیا دِ قضا را وګرځوی - او که د ماز یګر مونځ ئے ادا کاوو او په مانځه کښې نمر پریوت - نو مونځ ئے کیږی - بیا ئے راګرځول نشته -

## د بانګ او د اقامت بیان

**مسئله**[5]:- بانګ سنتِ موکده دے - په حکم د واجب کښې یعنی د هر فرض مینځ مونځ د پاره په ځل بانګ ویل د سړی په حق کښې سنت موکده دی برابره خبره ده چه مونځ د جماعت وی - او که یوائے - ادائی وی او که قضائی -

**مسئله**[6]:- د کوم وخت مونځ ادا کولو د پاره چه بانګ ویلے شی - ضروری ده چه دغه بانګ په دغه وخت کښې وی - نو که وخت لا نه د شوے - او بانګ ئے وکړے شه - نو په وخت کښې ئے بیا ویل واجب دی - برابره خبره ده - چه بانګ د سحر وی - او که د بل وخت -

**مسئله**[7]:- که د بانګ یا د اقامت څه حصه د وخت نه مخکښې وشوه - او څه په وخت کښې - نو هم ئے اعاده واجب ده

---

[1] نو غوره دا ده چه سجده په دغه وخت کښې نه کوی - بلکه ورستو ئے په مناسب وخت کښې اوکی - او بعض ځائی چه عوام ئے تاخیر نه راوړی - ځکه چه دغے نے خیال نه لری او په جنازه کښې اختلاف دے - چه تنزیهی کراهت پکښې شته او که نه ۱۲ منه [2] شرح التنویر ۱۲ [3] تبیین ۱۲ [4] منیه و غنیه ۱۲ [5] شرح التنویر ۱۲ [6] منیه ۱۲

[7] شرح التنویر ۱۲ [8] فتاوی هندیه ۱۲ [9] شرح التنویر ۱۲

مسئله[1] :- د مسافر سړي ملګري که قول حاضر وو- نو بانګ ورله سنت موکده نه دے بلکه مستحب دے - او اقامت وله سنت موکده دے.

مسئله[2] :- که سړي په کور کښې مونځ ادا کاوه ځان له - یا د ښځې سره نو دغه د پاره نه بانګ سنت موکده دے - نه اقامت - خو داهله که د دغه کلي یا د دغه کلي په جماعت کښې بانګ او اقامت کیده - اوکه د اسې جماعت په کښې نه وُ - نو دے سړي حکم په شان د مسافر دے.

مسئله[3] :- فرض که چه په یو جماعت کښې د ماسپښین مونځ په بانګ او په اقامت سره اداکړے شو - بیا دغه جماعت ته نور سړي د ماسپښین مانځه له راغله - نو بیا که دوي جماعت کوي - بانګ او اقامت ورله مکروه دے - لیکن که دغه جماعت د اسے وي چه څوک موذن او امام ئے مقرر نه وي - خو خلق درنه ځي راځي - او په جماعت سره پکښې مونځونه کوي نو په داسے صورت کښې ورله اذان او اقامت مکروه نه دے - بلکه غوره دے.

مسئله[4] :- که مثلاً مونځونه کښې قضا شوي وُو - او هغه ئے په ځنګل کښې یو ځائے کول - نو صرف یو بانګ ورله سنت دے - او د نورو د پاره سنت نه دے - خو صرف اقامت ورله مسنون دے - اوکه د هر وخت د قضا شوي مونځ د پاره ئے یو یو بانګ او وئیلو نو غوره دا پکښې شته.

مسئله[5] :- که په ځنګل کښې ئے قضا مونځ کاوُ په جماعت سره یا یو زنے نو د هغے د پاره بانګ په اعلان سره یعنې په اوچت آواز سره پکار دے - اوکه یو ځائے ئے کاوُ په کور کښې نو د هغے د پاره په ورو دے.

مسئله[6] :- که قضا مونځ ئے په جماعت کښې کاوُ - نو بانګ او اقامت ورله نشته.

مسئله[7] :- کوم ځائے چه د جمعې د مانځه شرطونه موجود وي - او د جمعې مونځ پکښې کیږي - په داسے مقام کښې که څوک د ماسپښین مونځ کوي - هغه له بانګ او اقامت مکروه دے - برابره خبره ده - چه هغه د ماسپښین مونځ د هغه ورځې په وجه کوي - اوکه په د عذر نه او برابره خبره ده - چه د جمعې د مانځه ختمیدو نه پس ئے کوي - اوکه مخکښې.

مسئله[8] :- د ښځو د پاره بانګ او اقامت مکروه دے - برابره خبره ده چه مونځ یواځې کوي - اوکه په جماعت سره.

مسئله[9] :- د بې وضو فرض مونځونو نه سوا او د جمعې د مانځه نه سوا د بل مانځه د پاره

---

[1] در مختار ۱۲ [2] فتاویٰ عالمګیري ۱۲ [3] عالمګیري و شامي ۱۲ [4] در مختار ۱۲ [5] شرح التنویر ۱۲ [6] شرح التنویر ۱۲
[7] در مختار و شامي ۱۲ [8] در مختار و شامي ۱۲ [9] رد المحتار ۱۲

بانگ او اقامت نشته - بلکه مکروه دے - برابره خبره ده - چه مونځ فرض کفایه وی - لکه مونځ
دَ جنازے یا واجب وی لکه وتر - او مونځ دَ اختر - یا سنت وی لکه تراویح وغیره - یا نفل
وی لکه نور مونځونه

**مسئله[1]** :- دا ضروری ده چه بانګ ویونکے دے سړے وی - نو که بانګ ښځے ووے
اعاده ئے پکار ده - که اعاده ئے ونکړے شوه - او په دغه بانګ مونځ ادا کړے شه - نو
ګویا مونځ بے بانګه وشه - دَ ښځے دَ بانګ اعاده ځینے عالمان وائی چه واجب ده - او ځینے
وائی چه مستحب -

**مسئله[2]** :- دا هم ضروری ده چه بانګ ویونکے خاوند دَ عقل وی - نو که بانګ
نا پوهه درکی هلک ووے - یا لیونی سړی - یا په هوشه سړی - نو معتبر نه دے - دوباره
ویل ئے پکار دی -

**مسئله[3]** :- دَ بانګ ویونکی دَ پاره دَ بانګ ویلو په وخت کښی دَ لوئے بے او دسے
نه پاکوالے سنت دے - او با اودسه ویل ئے مستحب دی - او دَ اقامت کولو په وخت کښی
دواړه دَ دواړه قسمه بے اودسئ نه پاکوالے سنت دے - نو دَ لوئے بے اودسئ په حالت کښی
بانګ ویل مکروه تحریمی دی - او اعاده دے وکړے شی - او په حالت دَ بے اودسئ کښی اقامت
کول مکروه تحریمی دی - او اعاده دے وکړے شی - او په حالت دَ بے اودسئ کښی اقامت کول
مکروه تحریمی دی - برابره خبره ده چه بے اودسی وړه وی او که لویه - خو دومره خبره ده -
چه دَ اقامت اعاده نشته - ځکه چه تکرار دَ اقامت مشروع نه دے -

**مسئله[4]** :- مؤذن دا سے سړے پکار دے چه دَ ضروری مسئلو نه او دَ مانځه دَ
وختونو نه واقف وی - نو که جاهل سړی اذان اووے - هغه ته دَ مؤذنانو هومره ثواب
نه ملاویږی -

**مسئله[5]** :- مؤذن دا سے سړے پکار دے چه پرهیزګار وی - او دَ خلقو دَ حال
نه خبردار وی - او څوک چه مانځه لره نه راځی - هغه ته زور نه کولے شی - بشرطیکه دَ
فتنے یره نه وی -

**مسئله[6]** :- مؤذن دا سے سړے غوره دے چه آواز ئے اوچت وی -

**مسئله[7]** :- په ناسته بانګ ویل مکروه دی - اعاده ئے پکار ده - هاں که مسافر
سور وی - یا سړی دَ خپل مانځه دَ پاره بانګه اووے - نو دَ اعادے ضرورت ئے نشته -

[1] بحرالرائق ۱۲ [2] عالمګیری وشامی ۱۲ [3] شرح التنویر ۱۲ [4] بحرالرائق ۱۲ [5] عالمګیری ۱۲ [6] شامی ۱۲
[7] شرح التنویر ۱۲

**مسئله**[1] :- کوم هلک چه څوانئ ته نژدے وی- دَ هغه په بانګ کښې کراهت نشته دا دَنګ دَ پوره نه سړی- اَوْ دَ حرامی اَوْ دَ باڼه چې۔

**مسئله**[2] :- یو موذن له په دوؤ جماتونو کښې دَ یو وخت بانګ ویل مکروه دی- په کوم جمات کښې چه فرض کوی- صرف هلته دے بانګ وائی۔

**مسئله**[3] :- چا چه بانګ ویلے- اقامت دَ هغه حق دے- هاں که هغه حاضر نه وَ یا حاضر وُ- خو دَ بل په اقامت راضی وُ- خفه کیږی نه- نو بیا خیر دے۔

**مسئله**[4] :- دَ بعضو ښارونو په ځینې غټو جماتونو کښې دا قاعده وی- چه کُنې مؤذنان په یو جُمات کښې په جدا جدا ځایونو په هم بانګونه وائی- یا پرله پسے نو دا جائز دی- بدی یکښې نشته۔

**دَ بانګ اَوْ دَ اقامت طریقه اَوْ نور احکام**

**مسئله**[5] :- دَ بانګ سنت طریقه دا ده- چه بانګ ویونکے په یو اوچت ځائے مخ په قبله ودریګی- اَوْ دواړه مسواکئې[6] ګوتے په غوږونو کښې ورکی- اَوْ دَ خپل طاقت سره مناسب په زوره دا الفاظ اووائی- خو دومره په زوره نه چه په هغې کښې دَ ورته تکلیف وی- اَللّٰهُ اَکْبَرُ څلور پیرے- بیا اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دوه پیرے- بیا اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ دوه پیرے- بیا حَيَّ عَلَی الصَّلٰوةِ دوه ځله- بیا حَيَّ عَلَی الْفَلَاحِ دوه ځله- بیا اَللّٰهُ اَکْبَرُ دوه واره- بیا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ یو کرت- اَوْ دَ حَيَّ عَلَی الصَّلٰوةِ دیلو په وخت کښې دَ مخ ښی جانب ته کړ څوی- خو سینه او قدم دے قبلے نه وی- اَوْ دَ بانګ دَ حَيَّ عَلَی الْفَلَاحِ دیلو په وخت کښې دے مخ ګیڅ طرف ته کړ څوی- خو په دا سے طریقه چه سینه او قدم دَ قبلے نه نه کړځی- اَوْ دَ صباح په بانګ کښې دے دَ حَيَّ عَلَی الْفَلَاحِ نه پس اَلصَّلٰوةُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ هم وائی دوه ځله- او بانګ چه وائی نو دَ سرود په طریقه دے نه وائی-[7] نه په دے طریقه چه ځه په تلاره وی- او ځه په چغه- او همسے خوش آوازی په کښې بده نه ده۔

**مسئله**[8] :- کومه طریقه چه دَ بانګ ده- هغه دَ اقامت هم ده- خو دومره فرق دے چه بانګ په اوچت آواز سره وی- او اقامت په تلاره- او په اقامت کښې اَلصَّلٰوةُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ نشته- بلکه دَ دے په ځائے په ټولو وختونو کښې دوه ځله قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ ویلے شی- او په بانګ کښې دا آواز دَ اوچت والی دَ پاره په غوږونو کښې

[1] درمختار ۲ ... [2] شامی ۱۲ [3] خانیه وعالمګیری ۱۲ [4] شامی ۱۲ [5] درمختار ۱۲ [6] رواه ابو داؤد فی سننه من طریق محمد بن اسحاق ۱۲ [7] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [8] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲

گوتے ایخودل سنت دی - او په اقامت کښې رانشته - او په اقامت کښې د حَيَّ عَلَى
الصَّلٰوة او د حَيَّ عَلَى الْفَلَاح ویلو په وخت کښې ښی او کس جانب ته مخ گرځول
هم نشته - یعنے ضروری نه دی - او څینے عالمان وائی چه که ځائے وسیع وی - بیا دے
مخ اړه وی -

مسئله :- د بانگ او اقامت د پاره ضروری ده چه په عربی ژبه کښې وی - او په
هغه الفاظ سره چه د نبی علیه السّلام نه منقول او معروف دی - نو د عربئ نه سیوا
په بله ژبه کښې صحیح نه دے - او دا رنگ په عربئ کښې په نورو لفظونو سره هم صحیح نه دے
اگر که خلقو ته معلومه شی چه دا د مانځه خبر دارے ده -

مسئله :- بانگ دے په دے طریقه وائی چه اول وار دوه ځله اللهُ اَکْبَرُ
او وائی - نو دومره دے چپ شی چه آوریدونکے ئے جواب ورکوے شی - او دا رنگ نور الفاظ
چه وائی - نو د هغے نه پس دے هم دومره ساعت چپ کیږی - بیا دے هغه نور الفاظ
وائی - او دے طریقے ته ترسّل ویلے شی - په بانگ کښې ترسّل سنت دے - نو که بانگ
ئے او وے او ترسّل ئے پکښې و نکه - اعاده ئے مستحب ده - او په اقامت کښې جلتی
سنت ده - لیکن که په اقامت کښې ئے ترسّل وکه - نو اعاده ئے مستحبه نه ده -

مسئله :- کوم ځائے چه د بانگ د پاره رغشوے وی - بانگ دے په هغه
ځائے وائی - یا د جماعت نه بهر - او اقامت دے په جماعت کښې کوی - او بانگ په دینه
ځائے ویل سنت دی - او په جماعت کښې د ننه ویل مکروه تنزیهی دی -

مسئله :- د جمعے د خطبے بانگ چه ویلے شی - دا بانگ د نبی علیه السلام
په زمانه کښې و - او کوم بانگ چه اول ویلے شی - هغه بانگ د حضرت عثمان رض د
زمانے نه شروع شوے دے - او تر ننه پورے پرے عمل درآمد کیږی -

مسئله :- په بانگ کښې د حَيَّ عَلَى الصَّلٰوة ویلو په وخت کښې ښی جانب ته
مخ گرځول سنت دی - او د حَيَّ عَلَى الْفَلَاح ویلو په وخت کښې کیڼ طرف ته - برابره خبره
ده چه دا بانگ صرف د مونځ د پاره وائی - او که د جماعت د مانځه د پاره - او که مونږ په غوږ کښې

---

[1] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [2] درمختار وشامی وهندیه ۱۲ [3] عالمگیری ۱۲ [4] دا حکم د پنځم وخته بانگونو دے -
پاتے شه د جمعے دویم بانگ نو په فتاوئ عبد الحی صاحب کښې راوړی دی - چه خطیب به کوم وخت ممبر ته او ختو دا بانگ
به په مناره ویلے کیده - بیا هشام بن عبد الملک د هغه ځائے نه راښکل بیا به د خطیب په مخکښې ویلے کیده - نو دا د هغه
ایجاد او بدعت دے - لیکن په مراقی الفلاح کښې راوړی دی چه په دے سره توارث جاری شوے دے - او په اسلامی
ملکونو کښې معمول دے - او عام فقهاء چه ذکر کوی نو وائی چه د خطیب په مخکښې دے وائی باقی دا ځائی د تفصیل
نه دے ۱۲ منه [6] ارشاد الساری شرح صحیح البخاری ۱۲ [7] رد المحتار وشرح التنویر ۱۲

مسئله[1]:- بانګ او اقامت خو په قبله وېل پکار دی - بل جانب ته وېل مکروه تنزیهي دی - خو هله که سور نه وی -

مسئله[2]:- د بانګ او د اقامت چه کوم الفاظ دی - هغه ترتیب وار وېل سنت دی نو که چا وروستے لفظ وړمبے که - مثلاً حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ ئے لا نه وو وېلے چه حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ ئے اووے - نو چه اوس حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ اووائی - په هغې پسے دے حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ بیا اووائی - او د ټول بانګ اعادے ته ضرورت نشته -

مسئله[3]:- وېونکے دے د بانګ وېلو په حالت کښې خبرے نه کوی - اګر که سلام یا د سلام جواب وی - نو که په بانګ کښې ئے کلام وکه - او کلام اوږد وو - بیا دے را اوګرځوی

مسئله[4]:- بانګ او اقامت اورېدونکی له هم پکار دی چه په دغه حالت کښې خبرے نه کوی - او په بل کار کښې دے مشغوله کیږی هم نه - خو د بانګ او د اقامت جواب دے ورکوی او که قرآن شریف ئے لوستلو - نو اوس دے هغه نه لولی - بلکه جواب دے ورکوی -

مسئله[5]:- څوک چه بانګ واوری - برابره خبره ده - چه نروی او که ښځه - پاک وی او که په حالت د جنابت کښې - هغه له د بانګ لفظي جواب ورکول مستحب دی - او ځینے عالمان وائی چه واجب دی - لیکن عمومی د اکثرو عالمانو قول دادے چه مستحب دی - او که ښځه په حالت د حیض و نفاس کښې ده - نو د بانګ جواب پے نشته -

مسئله[6]:- د لفظي جواب ورکولو طریقه داده - چه کوم الفاظ د مؤذن د خولے نه اوری هغه دے وائی - لیکن د حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ او د حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ وېلو په وخت کښې دے لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ وائی - او د اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ په جواب کښې صَدَقْتَ وَبَرِرْتَ او پس د بانګ نه دے اول درود شریف اووائی - بیا دے دا دعا اولولی - اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَنِ الَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ[7] د بانګ وېونکی او اورېدونکی دواړو د پاره دا وېل مستحب دی -

مسئله[8]:- ځینے عالمان وائی چه د اقامت جواب هم مستحب دے - او د قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ په جواب کښې دے وائی - اَقَامَهَا اللّٰهُ وَاَدَامَهَا او ځینے عالمان وائی چه د اقامت جواب نشته -

مسئله[9]:- په دے صورتونو کښې د بانګ مذکوره جواب نشته - په مانځه کښې

---

[1] درمختار ۱۲ [2] درمختار وشامی ۱۲ [3] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [4] فتاوی هندیه ودرمختار ۱۲ [5] طحطاوی وشرح التنویر ۱۲ [6] مراقی الفلاح ودرمختار وشامی ۱۲ [7] شرح التنویر ۱۲ [8] بحرالرائق ۱۲

دَ خطبې آوریدلو په حالت کښې برابره خبره ده چه خطبه دَ جمعې وی اوکه بله۔ په حالت دَ جماع کښې۔ دَ درو بولو اولوی بولی کولو په حالت کښې۔ دَ تعلیم وتعلّم په حالت کښې۔ او دَ خوړلو په حالت کښې۔

**مسئله** :۔ دَ جمعې په ورز دَ خطیب په مخکښې چه کوم بانګ ویلے شی۔ دَ هغې جواب په ژبه سره ورکول نه دی پکار۔

**مسئله** :۔ که بانګونه ئے کښې واوریدل۔ په هیر۔ نو دَ جواب ورکولو حق خپل جماعت لره دے۔ په کوم کښې چه دے مونځ کوی۔

**مسئله** :۔ که دَ بانګ جواب ورکول ئے هیر شو۔ یائے هسے ورنکه۔ او دَ بانګ ختمیدلو نه پس ئے دَ جواب ورکولو اراده وکړه۔ نو که ډیر ساعت نه وی تیر شوے۔ ور دے ئے کی۔

**مسئله** :۔ که مؤذن دَ بانګ نه دَ ختم کړے۔ په دا سے حالت کښې مړشه۔ یا بے هوشه شه۔ یائے آواز بند شه۔ یائے الفاظ دَ بانګ هیر شو۔ او څوک خوونکے نه وُ۔ یا ئے اودس مات شه۔ اودَ اودا سه دَ پاره ولاړخت نو په دے صورتونو کښې دَ بانګ اعاده دَ سره ضروری ده۔ یعنی سنت موکده به هله اداکیږی چه اعاده ئے وشی۔ نو چه دَده په ځائے وس بل څوک وائی۔ دَ سره به ئے راغلی۔

**مسئله** :۔ که دَ بانګ ویلو په حالت کښې دَ مؤذن اودس مات شه۔ نو وس ورله غوره داده۔ چه بانګ پوره کی۔

**مسئله** :۔ دَ بانګ جواب ورکول په قدم سره واجب دی۔ یعنی سړے که دَ جماعت نه بهروُ۔ نو مانځه لره تله ئے واجب شو۔ چه جماعت ئے فوت نه شی۔ اوکه جواب ئے صرف په خولے سره ورکه۔ او په قدم سره ئے ورنکه۔ نو دَدے جواب اعتبار نشته۔

**مسئله** :۔ دَ بانګ اودَ اقامت دَ پاره نیت شرط نه دے۔ خو دومره خبره ده۔ چه دَ ثواب دَ پاره نیت ضروری دے۔ چه زه ئے خاص دَ خدائے پاک دَ رضا مند ئے دَ پاره کوم۔ لبس۔

**مسئله** :۔ دَ بانګ اودَ اقامت په مینځ کښې دے دومره درنګ تیره وی۔ چه نمازیان پکښې ورسی۔ او مونځ په غوره وخت کښې وشی۔ او دَ ماښام دَ بانګ نه پس صرف دومره درنګ پکار دے۔ چه درے آیت پکښې لوستے کیدے شی۔

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] فتح القدیر ۱۲ [3] او څینې عالمان وائی چه کوم ئے هیڅ نه آوریدلے دی۔ او صاف نو جواب به دَ هغې ورکوی ۱۲ منه [4] بحر رائق ۱۲ [5] فتح القدیر وغا یه و شامی ۱۲ [6] بدائع ۱۲ [7] شرح التنویر [8] شامی ۱۲ [9] شرح التنویر ودد المختار ۱۲

**مسئله** :- دَ اقامت نه ورستو که ډیر ساعت تیر شه - او جماعت ونه دریږي نو دَ اقامت اعاده پکار ده - او که ساعت لږ تیر شه - نو ضرورت نشته - او که دَ صبا دَ مانځهٔ دَ پاره اقامت وشه - او امام لا سنت نه وو کړي - چه سنت ئې وکړو - نو بیا دوباره اقامت کولو ته حاجت نشته - او که دَ اقامت نه ورستو ئې بل څه کار شروع که - چه هغه دَ مانځهٔ دَ جنسه نه وُ - لکه خوړل وغیره - بیائې دوباره ویل پکار دي -

طهارت دبدن او دَ جامے دمانځهٔ دَ پاره شرط دے

دَ مونځ صحیح کیدلو دَ پاره شپږ څیزونه ضروري دي - هغې ته خارجي شرائط دَ مانځهٔ ویلے شي - او هغه دا دي - پاکوالے دَ بدن - پاکوالے دَ جامے - پاکوالے دَ مکان - ستر دعورت - نیت دَ مانځهٔ - قبلے ته مخ کول.

نو اول شرط پاکوالے دَ بدن دے - یعنې دا ضروري ده - چه دَ مونځ کونکي بدن دَ نجاست حکمي نه پاک وي - یعنې دَ لوئې بے او دسئ نه او دَ وړے بے اودسئ نه - او دا هم ضروري ده - چه دَ نجاست حقیقي کوم مقدار چه معاف نه دے - غلیظه وي - او که خفیفه دَ هغې نه هم پاک وي - دوئیم شرط پاکوالے دَ جامے دے - یعنې دا ضروري ده چه دَ هغه جامه هم دَ مذکوره نجاست حقیقي نه پاکه وي - سان که مثلاً څادر دومره اوګود وي - چه دَ هغې پاکه حصه به دَه پرته وه - او ناپاکه به زمکه وغیره - او به مانځهٔ کښې دَ دَهٔ به کښته کیدو پورته کیدو سره ناپاکه حصه نه خوزیده - نو خیر دے مونځ ئې کیږي -

**مسئله** :- کوم شے چه مونځ کونکي اوچت کړے وي - او هغه شے په خپل زور نه وي ټینګ - دَ هغه پاکوالے هم ضروري دے - مثلاً یو ئې مونځ کاوه - او بچے ور څخه وُ - او بچے وړوکے وُ - چه په دے پورے په خپله ټینګ نه وه - بلکه دے ټینګ کړے وُ - نو که دَ بچي په بدن یا په جامه دومره نجاست لګیدلے وي - چه هغه مقدار په شریعت کښې معاف نه دے - نو مونځ ورسره نه کیږي - او که بچے لوئې وُ - چه په خپل زور ټینګ وُ - نو دَ هغه په ښیلما زوالي سره دَ شیخ په مونځ کیدلو کښې څه فرق نه راځي - ځکه چه بچے په خپل طاقت ناست دے - نو دَ نجاست نسبت به خاص بچي ته کیږي - نه بنځے ته - دا رنګ که دَ مونځ کونکي به بدن څه داسے نجاست پروت وُ - چه هغه دَ خپل اصلي مقام نه نه وُو تے - مثلاً سړي مونځ کاوُ - او سپے پے کیناست - او دَ سپے دَ خولے نه پے لاړے وُنه بهیدے - کوم مقدار

---

له دَر و شامي ۱۲ له شرح التنویر ورد المختار ۱۲ له در مختار و شامي ۱۲ ع و مثلاً دا په قصه ناسته ؤ بچے ئې غیږ نه اوخوت ۱۲ منه

چه دَ مانځهٔ نه مانع دے ۔ نو مونځ ئے وشه ۔ دارنګ که مثلاً دَ چرګے سمنا آلئی دَ سړی په جیب کښې وه ۔ او مونځ ئے ورسره کاؤه نو کیږی ۔ او که متیازے په بوتل کښې بندے وے ۔ او بوتل ئے په جیب کښې ؤ ۔ نو مونځ ورسره نه کیږی ۔ دَ فرق وجه داده چه دا متیازے دَ خپل اصلی مقام نه جدا شوی دی ۔ او دا آلئی پلیتی دَ خپل اصلی مقام نه نه ده جدا شوے ۔ نو هغه داسے ده ۔ لکه دَ مونځ ګذار سړی په ګیډه وکښې پلیتی ۔

طهارت دَ مکان | **مسئله** :- دَ مانځهٔ دَ صحت دَپاره دریم شرط پاکوالے دَ مکان دے ۔ یعنے په کوم ځائے چه مونځ کوی ۔ هغه ځائے دے دَ نجاست نه پاک وی ۔ هاں که نجاست لږ ؤ ۔ هغه مقدار ؤ چه کوم مقدار په شریعت کښې معاف دے ۔ نو مونځ به کیږی او دَ مانځهٔ دَ ځائے نه هغه ځائے مراد دے چه په کوم ځائے دَ مونځ کونکی خپے وی ۔ او چه په کوم ځائے چه ئے په حالت دَ سجده کښې دواړه زنګنونه لګی ۔ او دواړه لاسونه او پوزه او وچولے ۔ بس ۔

**مسئله** :- که مونځ ئے خاص په زمکه نه کاؤ ۔ بلکه په ټوکی وغیره ئے کاؤ ۔ نو دَ هغے هم دا حکم دے ۔ یعنے دَ هغه ټول ټوکی پاکوالے ضروری نه دے ۔ خو چه منځ کوره ځائے ئے پاک وی ۔ نو کافی ده ۔ برابره خبره ده چه ټوکے لوئی وی او که وړوکے

**مسئله** :- که دَ یوے خپے ځائے ناپاک ؤ ۔ هغه ئے که نه خوده ۔ بلکه په یوه خپه ئے مونځ وکه ۔ نو وشه ۔

**مسئله** :- که دَ مانځهٔ ځائے پاک ؤ ۔ خو دَ سجدے په وقت کښې ئے جامه په څه پلیت شی پلسیده ۔ نو مونځ ئے کیږی ۔ خو شرط دا دے چه په جامه ئے پلیتی دَ هغه مقدار نه زیاته ونه لګی ۔ دکومے پورے چه معاف وه ۔

**مسئله** :- که وچه پلیتی په زمکه پرته وه ۔ او پاک ټوکے ئے پے او غوړاؤ ۔ او مونځ ئے پے کاؤ ۔ نو که ټوکے دومره نرے ؤ ۔ چه لاندے تے نجاست ښکاریده ۔ یا ئے بوئے راوت ۔ نو مونځ پے نه کیږی ۔ او که داسے نه ؤ ۔ بلکه پیړه ؤ نو کیږی پے ۔

ستر دَ عورت | **مسئله** :- څلورم شرط ستر عورت دے ۔ یعنے دَ عورت پټول فرض دی ۔ دَ سړی عورت دَ نامه نه دَ زنګنونو پورے دے ۔ زنګنونه په عورت کښې داخل دی ۔ او نوم پکښې داخل نه دے ۔ او دَ ویځے بیخ په عورت کښې دومره حصه هم داخله ده

له مراقی الفلاح و طحطاوی ۱۲ له قاضیخان ۱۲ له هندیه ۱۲ له خو بے دَ عذره په یوه خپه مکروه دے ۱۲ منیه ۱۲ شامی ۱۲ له طحطاوی ۱۲ له درمختار و شامی ۱۲

اوګیډه اوشا اوتشی هم داخل دی - اوکومه ښځه چه آزاده وی - یعنی وینځه نه دی - دهغې ټول بدن عورت دے - بلکه صحیح خبره داده - چه دسرکوم ویښته چه ئے زانګی - هغه هم په عورت کښې داخل دی - هاں دومره خبره ده - چه ځ اودواړه ورغوی لاندے باندے اودواړه قدمونه ئے په عورت کښې داخل نه دی - خو ددے په اندازه کښې اختلاف شته -

**مسئله** :- دکومے حصے ستر چه فرض دے که په هغې کښې ئے د یو اندام څلورمه حصه ښکاره وه - او مونځ ئے ورسره شروع کړه - نو دا مونځ نه صحیح کیږی - اوکه دومره حصه په مانځه کښې ښکاره شوه - اوکم نه کم د دومره وخته پورے ښکاره وه - چه درے ځله په کښې سبحان الله ویلے کیدے شه - نو هم ئے مونځ نه کیږی - مثلاً درون ئے څلورمه حصه ښکاره شه - یا کوناټے وغیره - یا ښځے مونځ کاؤ - او د هغې د سر څلورمه حصه ښکاره شوه - یا د ویښتو یا د شا یا د ګیډے یا د مرے یا د بل داسے اندام نو مونځ ئے نه کیږی -

**مسئله** :- که په مانځه کښې ئے د عورت یو اندام دوه درے ځایه ښکاره شو هغه ټول به په یو ځائے حساب شی - نو که ټول د دغه اندام څلورمے برخے ته رسیده مونځ ورسره نه کیږی - اوکه نه رسیده نو کیږی - مثلاً د یو ورون اتمه اتمه حصه ئے دوه ځایه ښکاره شوه - نو دا دواړه چه یو ځائے شی - د ورون څلورمے ته رسی - نو مونځ ورسره نه کیږی - اوکه دے مقدار ته نه رسیده - بیا ورسره کیږی -

دا حکم هله دے - که د عورت یو اندام ځائے په ځائے ښکاره شوه - اوکه چیرے د عورت یو اندام ئے لږه حصه ښکاره شوه - او د بل اندام ئے هم لږه حصه ښکاره شوه نو په دغه دواړه اندامونو کښې چه کوم اندام ووړوکے دے - د هغې اعتبار به کیږی - یعنی کوم کوم ځائے چه ښکاره شوی - که هغه دواړه مونږ د یو بل سره یو ځائے کړو - نو اسے دغه مجموعه به په پیمائش کښې د دغه ووړوکی[1] اندام د څلورمے برخے همره وی - یا نه کړو - نو مونځ ورسره نه کیږی - اوکه نه وی - نو کیږی - مثلاً ښځے مونځ کاوه - او په مانځه کښې ئے شیاړسمه برخه د ورون ښکاره شوه - او د غوږ شپاړسمه برخه ئے هم ښکاره شوه - نو دا دواړه چه یو ځائے شی - په پیمائش کښې د غوږ د څلورمے نه زیاتیږی نو مونځ ورسره نه کیږی - او په دے صورت کښې ځینے عالمان وائی - چه که دغه مجموعه د دواړو اندامونو د مجموعے څلورمے برخے ته رسیده - نو هله به ورسره مونځ نه کیږی

[1] خانیه وشرح المنیه ورد المحتار ۱۲ ته درمختار وشامی ۱۲ تو لیکن بعضو عالمانو ددے تردید کړے ۱۲

لیکن د احتیاط خبره هغه ده چه کومه مینه بیان شوې ده۔

مسئله[1] :- که جینۍ نابالغه وه۔ او مونځ کاوه - او په سر ئې څادر وغیره نه وُ - نو مونځ ئې کیږی - خو غوره داده چه سر ئې پټ وی۔

مسئله[2] :- که په تیاره کښې چا مونځ کاوُ - او زړوکے وغیره ئې وُ - نو هم پے ستر د عورت فرض دے - که په بربنهء ئې مونځ وکه - نه کیږی۔

مسئله[3] :- که چا صرف په یو اوګل کمیس کښې مونځ کاوُ - مثلاً - او د هغې ننړئې پرانستے وه چه ده نه دیرے نه خپل عورت ښکاریده - نو مونځ ئې کیږی - خو مکروه دی - نو ننړئې دے مینه وتړی۔

مسئله[4] :- که د مسافر د بدن نه څه ځائے پلیت وُ - او اوبه ئې نه موندے - چه دغه ځائے پے پاک کی - یا پے بیلمازتیا کمه کی - یعنے هغه مجبوری وی کومه چه په باب د تیمم کښې بیان شوے - نو ده له جائیز دی چه سره د هغې مونځ وکی - او که زړوکے ئې بیلمازه وُ - هغه دے اوباسی چه په پاک زړوکی وغیره ئې عورت وغیره پټ کړی نو د مانځه د پاره، پوره ده کوے شی - او که د ستر د عورت د پاره ورته څه پاک شے هیڅ نه ملاویده - نو دغه زړوکی ته دے اوګوری - که کم نه کم څلورمه برخه ئې پاکه وه - او دیرے حصے ئې بیلمازه وے - نو د هغې سره پے مونځ کول واجب دی - او که پاکی ائے ئې د څلورمے برخے نه هم کم وُ - نو ډیر د ه خو ښه ده - که په لغړه مونځ کوی او که د دغه زړوکی سره - لیکن د لغړے نه دا غوره ده چه سره د دغه زړوکی دکی - او که پاک کپړه وغیره ئے صرف دومره موندله چه د عورت یوا ندام پے پټیدے شه مثلاً د دړه بولو او د لویو بولو ځائے پے پټیدے شه - یا یو - نو د هغې استعمال واجب دے - او که ئیځ دومره پاک زړوکے وغیره اوموندل - چه ټول بدن او څلورمه حصه د سر ئې سے قدرے پټولے شوه - نو د دے دواړو پټول پے واجب دی - که په دے صورت کښې سر پټ نه که - مونځ ئې په سر نوره وکه - وُ نشه۔

مسئله[5] :- که د جامے استعمال نه مجبورتیا د خلقو د جانبه وه - نو چه په بربنهء مونځ وکی - هغه به پس د دغه مجبورتیا د لرے کیدلونه بیا راګرځوی - مثلاً د مانځه وقت وُ - او سړی ته دشمن اوویل - تاکه جامے واغوستلے او به دے وژنم - یا

---

[1] احکام الصغار الاستروشنی ۱۲ [2] درمختار ورد المحتار ۱۲ [3] شرح المنیه و درمختار وشامی ۱۲
[4] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [5] درمختار ورد المحتار ۱۲

سړے په تیں خانه کښې بند ؤ۔ او نوکرانو ته جامے ایستلے وے نه ئے ورکولے۔ پس فرض ئے په بربنډه وکړه۔ نو دا مونځ به بیا راگرځوی۔ هله چه د هغه مجبورتیا لرے شی اوکه مجبورتیا د خلقو د طرفه نوه۔ مثلاً جامے ورسره ابدونه وے۔ نو بیاپے راگرځول نشته۔

**مسئله[1]** :- د سړی په عورت کښې اته اندامونه دی۔ د لویو بولو ځائے۔ او د هغے خواؤ شا۔ د وړو بولو ځائے او د هغے خواؤشا۔ خصیے او د هغے گرداگرد۔ دواړه کناتې۔ دواړه ورنونه سره د زنگنونو۔ د نامه نه لاندے حصه مخے ته او شا ته او دواړو پړونه۔ په مانځه کښې د دے ټولو اندامونو پټ ساتل فرض دی۔ او د مانځه نه بهر ئے د خلقو د نظر نه پټ ساتل هم فرض دی۔ بلکه صحیح خبره دا ده۔ چه سړے که په تخلیه کښې وی۔ یعنے یوازے ؤ۔ بل څوک ورسره نه ؤ۔ هم ئے ستر فرض دے۔ هاں که د یو صحیح غرض د پاره ئے په تنهائی کښې ښکاره کاوی۔ نو بیا پکښې بدی نشته۔ لکه د وړو بولو یا د لویو بولو د پاره وغیره وغیره۔

**مسئله[2]** :- که سخت ضرورت ؤ۔ او مجبوری وه۔ او په لغړه ئے مونځ کاوه۔ لکه چه مخکښې بیان شوی دی۔ نو په ناسته دے وکی۔ او رکوع سجود دِ په اشاره سره ادا کوی۔ او بنه طریقه دا ده۔ چه دواړه پښے قبلے جانب ته وغزوی۔ او دواړه لاسونه په عورت غلیظه کیږدی۔ (د وړو بولو ځائے او د هغے خواؤ شا۔ او دا رنگ د لویو بولو ځائے او د هغے ارد گرد ته عورت غلیظه ویلے شی۔ او نورو اندامونو د عورت ته عورت خفیفه ویلے شی۔) برابره خبره ده چه شپه وی او که ورځ۔ تیاره وی او که رڼا۔ ځائے په کور کښې وی۔ او که په ځنګل کښې۔ او که مونځ ئے په ناسته کاوی سره د رکوع او سجود یا په ولاړے۔ نو هم ئے جواز شته۔ خو غوره طریقه اوله ده۔ لکه چه بیان شوه۔

**نیت د مانځه**

پنځم شرط[3] نیت د مانځه دے۔ یعنے په زړه کښې د مانځه پخه اراده کول۔ خاص د پاره د خدائے پاک۔ نو چه په زړه کښې ئے نیت وکه۔ دا کافی دے۔ په ژبه ویل ضروری نه دی۔ خو غوره ده۔

**مسئله[4]** :- د فرض او د واجب په نیت کښې تعین ضروری دے۔ نو د کوم وقت فرض چه کوی۔ د هغه وقت او د فرض تعین به په نیت کښې کوی۔ مثلاً فرض د نن سحر د نن ماسپښین وغیره۔ او د رکعتونو تعین که ئے ونکه نو خیر دے۔ او که په زړه کښې ئے

---

[1] شامی ۱۲ [2] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [3] در مختار ۱۲ [4] تنویر الابصار و شرحه ۱۲

دَ ماسپخین دَ مانځهٔ اراده وه - نو په هیره ئې دَ خولے نه دَ مازیګر وقت اووت - هم هغه دے دَ ماسپخین مونځ ئې کیږی - دارنګ که مثلاً په نیت کښې ئې په هیره سره دَ ظهر رکعته په ځائے درے رکعته یا شپږ رکعته دَ ځلے نه وختل - هم ئې مونځ کیږی -

**مسئله** :- که په نیت کښې ئې مثلاً داوویلی وَو چه دنن ماسپخین فرض مونځ اداکوم - اولیس دَ مانځهٔ نه ورته معلومه شوه چه دَ ماسپخین وقت وتے او دَ مازیګر وخت داخل شوے وُ نو خپن دے - مونځ ئې قضا وشه - ځکه چه قضا په نیت دَ اداکیدے شی - او ادا په نیت دَ قضا - او که په نیت کښې ئې دَ نن ماسپخین نه وُو ویلی - خو صرف دا نیت ئې کړے وُ - چه دَ دے حاضر وقت فرض مونځ اداکوم - او ده نه معلومه نه وه او وقت وتے وُ - بیا ورته معلومه شوه - نو صحیح خبره داده - چه دَ هغه دا ګرځول په واجب دی - هغه نه دی شوی - نومطلب دا شه - چه مثلاً دَ ماسپخین په وقت کښې چه دَ چا شک وی چه وتے دے - او که لا نه - نو هغه چه دَ دغه وقت فرض اداکوی - په نیت کښې دے ورسره دَ نن ماسپخین هم وائی -

**مسئله** :- که قصداً ئې دَ وقت راتلو نه مخکښې دَ دغه وقت مونځ وکه نو نه اداکیږی - دارنګ که خیال ئې داؤ - چه وقت شوے دے - پس مونځ ئې وکه - او وقت نه وُ شوے - نو هم نه کیږی - ځکه چه دخول دَ وقت دَ مانځهٔ دَ پاره شرط دے - بلکه دَ وقت داخلیدو معلومول هم شرط دے - نو که پته ورته نه وه - چه مثلاً دَ مازیګر وقت داخل شوے دے - او که نه - بلکه شک ئې وُ - او دَ مازیګر مونځ ئې اداکه نو نه کیږی - او دَ وقت داخلیدو علم دَ یو عادل مؤذن په بانګ سره هم حاصلیږی - او دَ وقت نه مخکښې چه مونځ نه شی کیدے - دَ دے نه یو صورت مستثنیٰ دے - په راتلونکی مسئله کښې به ذکرشی -

**مسئله** :- حاجیان په عرفات او په مزدلفه کښې جمع بین الصلوٰتین کوی - یعنے دَ ماسپخین په وقت کښې دَ ماسپخین او دَ مازیګر مونځ په عرفات کښې اداکی - بیا دَ ماسختن په وقت کښې دَ ماښام او دَ ماسختن مونځ په مزدلفه کښې وکی - ځکه چه په کتاب الحج کښې به سره دَ شرائطو په تفصیل سره ذکرشی انشاء الله تعالیٰ -

دَ حنفیانو په نیز دَ دے نه سوا بل ځائے جمع بین الصلوٰتین نشته - او دَ امام

---

له زیلعی ودر مختار ۱۲ ـ ـه شرح التنویر ۱۲ ـ ـه عرف شندی ۱۲

شافعی رح په نزد مسافر دپاره هم دارنګ جمع جائزه ده۔

او مونږ وائو۔ چه مسافر ظاهری جمع بین الصلوٰتین کولے شی۔ بس۔ دَ ظاهری مطلب دا دے۔ چه هر یو مونځ وکی په خپل خپل وخت کښں خو متصل۔ یعنے د ماسپخین مونځ د ماسپخین په آخری وخت کښں ادا کی۔ او د مازیګر مونځ دَ مازیګر په اول وخت کښں۔ دارنګ دَ ماښام مونځ دَ ماښام په آخری وخت کښں۔ او دَ ماسختن مونځ دَ ماسختن په اول وخت کښں۔ نو په ظاهر کښں جمع راغله۔ او په حقیقت کښں جمع نه ده۔

**مسئله** :- که نیت ئے وکه۔ لیکن مونځ ئے شروع نه که۔ بلکه په یو داسے کار کښں مشغول شه۔ چه هغه لایق دَ مانځه سره نه وُ۔ لکه خوړل وغیره۔ نو وس چه مونځ کوی نو سے نیت به هم کوی۔

**مسئله** :- ځینے عالمان وائی چه صحیح خبره داده چه دَ فرض او واجب مونځ نه سوا نور چه کوم مونځونه دی۔ دُ هغې دَ پاره صرف دَ مونځ نیت کافی دے۔ چه مونځ کوم۔ او دا تخصیص ضروری نه دے۔ چه سنت دنن صبا۔ یا سنت دنن ماسپخین یا تراویح۔ یا کسوف۔ یا خسوف نفل وغیره۔ لیکن غوره او دَ احتیاط خبره داده۔ چه په نیت کښں دے د لته هم تخصیص کوی۔ البته په نفل کښں د حاضر وخت تخصیص ته ضرورت نشته۔

**مسئله** :- په نیت کښں دَ مقتدی دَ پاره دا هم ضروری ده۔ چه دَ امام دَ اقتدا نیت وکی۔ مثلاً او وائی چه په دے حاضر امام پسے۔

**مسئله** :- دا ضروری نه ده چه مقتدی به دَ امام نوم اخلی۔ چه په دے زید پسے۔ په دے بکر پسے۔ بلکه صرف دومره بوره ده۔ چه په دے حاضر امام پسے۔ هاں که صرف په نوم سره ئے خاص که۔ او بیا معلومه شوه چه هغه نه وُ۔ مثلاً مقتدی په نیت کښں صرف دومره وئیلی وُو۔ چه په زید پسے۔ او بیا معلومه شوه چه دغه امام خو بکر وُ۔ زید نه وُ۔ نو دَ دے مقتدی مونځ ونشه۔ لیکن که ئے په نیت کښں ئے دا وئیلی وُو چه په دے حاضر امام پسے چه زید دے یا په دے زید پسے۔ او هغه زید نه وُ بکر وُ۔ نو مونځ ئے کیږی۔

---

لے شرح التنویر ۱۲ سے شامی وکبیری ۱۲ سے مراقی الفلاح ۱۲ سے هندیه ۱۲ ھے درمختار وشامی ۱۲

**مسئله** :- که گمان ئې داوُ چه دا زید دے۔ او نیت ئې پسې وتاړه چه په دے حاضر امام پسې او بیا معلومه شوه چه هغه زید نه وُ۔ بکر وُ۔ نو خیر دے مونځ ئې پسې وشه۔

**مسئله** :- دَ امام دَپاره دَ خپل مانځه نیت ضروری دے۔ او دَ نارینه مقتدیانو دَ امامت نیت ورله ضروری نه دے[1]۔ او که ښځې پسې هم مونځ کاوُ۔ نو که دا مونځ دَ جنازے وُ۔ نَو دے نیت وله هم ضروری نه دے۔ او که بل مونځ وُ۔ نو که ښځه دَ نارینه سره محاذی ودریده۔ په امام پسې به دَ هغې اقتدا هله صحیح کیږی۔ چه امام اول دَ هغې دَ امامت نیت هم وکی۔ او که محاذی نه ودریده۔ نو په دے صورت کښ اختلاف دے چه دَ ښځې اقتدا صحیح کیږی او دَ پاره دَ امام نیت دَ امامت ضروری دے۔ او که نه۔

**مسئله** :- که امام دَ امامت مانځه نه وړاندے شه۔ او نیت ئې دَ امامت وکه۔ خو په نیت کښی ئې دا هم اوویل چه دَ زید امامت نه کوم۔ بیا زید هم راغے۔ او اقتدا ئې پسې وکړه۔ نو دَ زید مونځ ورپسې هم وشه۔

**مسئله** :- که صرف دَ ٻن مونځ نه دے چه قضا شوی وُ۔ مثلاً۔ او هغه ئې داکولو نو په نیت کښ ئې دَ وقت تعین هم ضروری دے۔ مثلاً وائی به چه دَ ٻن سحر فرض قضا مونځ کَوُ ادا کوم دَ ٻن ماسپخین فرض قضا مونځ کَنُ ادا کوم۔ وغیره وغیره۔

او که صرف دا ئې وه چه قضا مونځ کوم ادا کوم۔ او وقت ئې ورسره یاد نه کړه۔ نو دا نیت صحیح نه دے۔ نو مطلب دا شه۔ چه دَ وقت تعین په نیت کښ ضروری دے۔ او که مونځونه ئې په تیرشوُو ورځو کښ قضا شوی وُو۔ مثلاً دَ خالی او دَ اتوار او دَ کل دَ ورځے او دَ ښځې په ورځ ئې قضا راوړل غوښتنه نو دَ ورځے تعین هم ضروری دے۔ په نیت کښ به مثلاً یاده وی چه دَ خالی دَ ورځے دَ سحر قضا مونځ کوم۔ کوم چه څما په ذمه باقی دے۔ څلور رکعته فرض دَ خالی دَ ورځے دَ ماسپخین قضا مونځ کَنُ ادا کوم وغیره وغیره۔

نو مطلب دا دے چه دَ وقت او ورځ به ورسره هم یاد وی۔ او که مونځونه ئې دَ میاشتو او دَ کلونو قضا شوی وُ۔ نو دَ کال او دَ میاشتے او دَ تاریخ او دَ وقت تعین هم ضروری دے۔ مثلاً وائی به چه دَ فلانی کال دَ فلانی دَ میاشتے دَ فلانی

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] در مختار و شامی ۱۲ [3] یعنے دا اقتدا صحیح کیږی او دَ پاره نه دے ضروری۔ او دَ امامت ثواب منه لو دیاره ضروری دے ۱۲ منه [4] رد المختار و قاضیخان ۱۲ [5] فتاوی خانیه و رد المختار و فتح القدیر ۱۲

تاریخ دَ ماسختن درے رکعته وتر قضا مونځ کَنَدارم وغیره وغیره - اوکه چاته تاریخ اومیاشت وغیره معلوم نه وی - نو آسانه طریقه داده - چه په نیت کښ دے صرف مثلاً دومره قدرے اووائی چه دَاول سحر فرض قضا مونځ کَنَدارم - یعنے دَ سحر مونځونه هر څومره ورزے چه څما نه قضا شوی دی - او څما په ذمه باقی دی - په هغے کښ چه کوم اول دے - هغه مونځ قضا داوړم - او دا رنګ دَ ماسپخین قضا چه راوړی - نو وائی دَ چه دَ اول ماسپخین قضا مونځ کَنَدارم وغیره وغیره -

غرض دا چه اول وقت دے ورسره یاده وی - اوکه اول وقت ئے و نه وے - بلکه وئے وئیل چه دَ اخیر ماسپخین فرض قضا مونځ کَنَدارم - دَ اخر ماسختن قضا فرض مونځ کَنَدارم وغیره وغیره - یعنے دَ اول په ځائے ئے آخر او وے - نو دا نیت هم صحیح دے - ځکه چه مطلب دَ دواړو یو دا ؤ ځی -

وجه داده چه دَ دغه وقت قضا مونځونه کوم چه ئے په ذمه باقی دے - هغه چه دَ دے غاړے نه شمار کړے شی - نو کوم چه اول دے هغه آخر حسابیږی - نو خلاصه خبره دا شوه چه دَ قضا په نیت کښ وقت او تاریخ وغیره معین کول یا کم از کم دَ وقت سره اول قضا یا آخر قضا یادول هم ضروری دی - خو په دے کښ اختلاف شته - ځکه چه ځینے عالمان وائی چه صرف تعین دَ وقت کافی کیږی - چه دَ ماسپخین قضا مونځ کَنَدارم - دَ ماذیګر قضا مونځ کَنَدارم وغیره وغیره - لیکن معتمد قول هغه دے کوم چه مخکښ بیان شه - او په هغے کښ احتیاط دے -

| قبلے ته مخ کول | **مسئله** :- شپږم شرط قبلے ته مخ کول دی - اوکه څوک په داسے ځائے کښ وی - چه دَ قبلے پته ورته نه لګیده - او څوک داسے هم نه چه تپوس ئے ترے وکی - نو حکم دا دے چه تحرّی دے وکی - یعنے په خپل فکر دے نظر واچوی - کوم جانب ته چه ئے غالب ګمان راځی - هغه جانب ته دے مونځ وکی - بیا که دَ مانځه نه پس ورته معلومه شوه چه قبله دغه جانب ته نه وه - هم خیر دے مونځ ئے وشه - اوکه په مانځه کښ ورته معلومه شوه - یا غالب ګمان ئے راغله چه قبله دے بلے غاړے ته ده - نو په مانځه کښ دے هغے دے ته وګرځی - که و نه ګرځید - او کم نه کم دومره درنګ ئے تیر کړه - چه درے ځله په کښ سبحان الله ویلے کیدے شه - نو مونځ ئے نه کیږی -

---

ـله درمختار وشامی ۱۲

**مسئله**:- فرض که - چه يو سړى په ځنګل کښ تحرّي وکړه - شمال جانب ته ئے مخ که - او نيت ئے وتاړه - بيا په دويم رکعت کښ ئے غالب ګمان راغله چه قبله دے غاړے نه ده - نو مشرق ته ئے مخ وګرځوه - دارنګ په دريم رکعت کښ جنوب ته - او په څلورم رکعت کښ مغرب ته - يعنے هر يو جانب ته ئے يو يو رکعت دکه نو هم مونځ ئے وشه -

**مسئله**:- که داسے ځائے وُ چه هلته ورته قبله نه معلوميداه - او داسے سړے هلته موجود وُ - چه دَ قبلے تپوس ئے ترے کړے شه - ليکن دے ئے نکه - بلکه په خپله تحرّي ئے مونځ دکه - نو نه کيږی - هاں که معلومه شوه چه قبله هم دغه جانب ته ده - نو مونځ ئے شوے دے - دا کرځولو ته ئے ضرورت نشته - دارنګ که قبله نه معلوميده او څوک ورهم نه چه تپوس ترے وکی - پس بے دَ تحرّي نه ئے مونځ دکه نو نه کيږی - البته که پس دَ مانځه نه معلومه شوه - چه قبله هم دغه جانب وه - نو شوے دے -

**مسئله**:- که مونځ ئے قبلے ته دکه - او په نيت کښ ئے دا نه وُو ويلی - چه مخ م دَ کعبے شريفے په لوری که - نو ضرور دے مونځ ئے وشه - غوره قول دا دے - چه دَ قبلے نيت ضروری نه دے - او بعضے وائی چه ضروری دے -

| دَ مانځه مستحبه طريقه | دَ مانځه طريقه دا ده - چه اول نيت وکی - بيا دواړه لاسونه دَ غوږونو |
|---|---|

پورے اوچت کی - يعنے ګوتے دَ غوږونو په پوځکو اولګوی - او الله اکبر او وائی - دا تکبير تکبير تحريمه دے - بيا لاسونه نامه لاندے وتړی - په دے شان سره چه دَ ښی لاس دَ کچے ګوتے او دَ غټے ګوتے په حلقے سره دَ ګس لاس مړوند ونيسی - او باقی درے پے دَ پاسه راولی - بيا ثنا او وائی - يعنے سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَ بِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَ تَعَالٰى جَدُّكَ وَ لَا اِلٰهَ غَيْرُكَ - بيا اَعُوْذُ بِاللّٰهِ - بِسْمِ اللّٰهِ او وائی - ورپسے الحمد پوره کی - بيا ورسره سورة تل کی - يا کم نه کم نور درے آيته - دَ هغے نه پس تکبير وکی - رکوع له لاړ شی - رکوع داسے پکار ده - چه سر او ملا او کناتی ئے په يو سيده شی - دَ دواړو لاسونو ګوتے دے په زنګنونو خورے کيدی - درے پيرے دے سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْم او وائی - يا پنځه پيرے يا اووه - بيا دَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ ويلو سره دَ رکوع نه اوچت شی - رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ دے او وائی - دے ود ريدو ته قومه ويلے شی - چه ښه نيغ

له در مختار ۱۲ سه عالمګيری و در مختار ۱۲ سه و تنوير الابصار ۱۲ سه شرح التنوير و رد المختار ۱۲

ودریږي. پس دَ هغې نه دې تکبیر وکي. برابر دې چې سجدې له په داسې حال
کښې چه زنګنونه ئې نیولي وي. او کوم تکبیر چه ئې دَ تورې نه دا روا یئ وسره شروع
کړې دې. هغه دې په داسې طریقه والي. چه سجدې ته رسي نو ختم شي. په
سجده کښې دې اول دواړه زنګنونه لګوي. بیا لاسونه. بیا پوزه. بیا وچولے
مخ دې دَ دواړو لاسونو په مینځ کښې کیږدي. په دې طور سره چه ګوتې
ئې دَ غوږونو په برابرې راشي. او دَ دواړو لاسونو ګوتې ملاوې او قبلې ته
نیغ پکار دي. او دواړه پښې دَ ګوتو په سینه ولاړې او قبلې ته برابر. او خټګلے
به دَ زمکې نه بیرته ساتي. او مټ دَ ترخ نه لرې. ورنونه دَ ګیډې او دَ ګیډه
نه جدا. ګیډه دَ زمکې نه دومره اوچته چه په مینځ کښې وړوکے وړغومے
تیریدے شي. لیکن که په صف کښې وَ. بیا په سجده کښې دومره کشادګي نه
ده پکار. دَ پاره دَ دې چه بل ته په تکلیف نه شي.

په سجده کښې دې کم نه کم درې پیرې سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى اووائي. بیا
دې دَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ ویلو سره دَ سجدې نه پورته شي. کیښےني. دې ناستې ته
جلسه ویلے شي. دَ جلسې طریقه داده. چه ښئ خپه دې دَ ګوتو په خینه ودره وي
او کسه دې پرې باسي په هغې دې کیني. او لاسونه دې په ورنونو کیږدي. چه جلسه
ئې په اطمینان سره وکړه. بیا دې اَللّٰهُ اَكْبَرُ کړي. دویمه سجده دې په هغه
طریقه اداکي. بیا دې دَ اللّٰه اکبر د ویلو سره دویم رکعت ته پاسي. او دَ سجدې
نه چه دا پورته کیږي. مینه دې سرا اوچت کي. بیا لاسونه. بیا زنګنونه
او بے عذره دې لاس په زمکه نه کړي. بلکه لاسونه به ئې ایښي وي
په زنګنونو.

بیا چه ودریږي. نو دَ بِسْمِ اللّٰه نه پس به اَلْحَمْدُ ولولي. بیا سورة. بیا دَ رکوع او
سجده وکي په تیره شوې طریقه. بیا د دویمې سجدې نه چه سرا اوچت کي. نو
هم رنګ چه دَ دواړو سجدو په مینځ کښې دَ ناستې طریقه بیان شوې ده. هغه
شان به کیني. دَ پاره دَ تشهد. او تشهد داده:- اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ
وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ ط اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا
وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ ط اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ

له یو قول دا دے چه مینه تند ے بیا پوزه لګول سنت دی ۱۲

رَسُوْلُهٗ ط اوکوم وخت چه اَشْهَدُ ته اورسی ـ دَ ښی لاس په ښکته او په غټه گوته دے
حلقه جوړه کی ـ او وچه گوته او وړ لیسے چه کومه گوته ده ـ دا دواړه دے ودرولی ـ او دَ لَا اِلٰهَ
ویلو په وخت کښ دے دَ شهادت گوته وچته کی ـ او دَ اِلَّا اللّٰهُ ویلو په وخت کښ دے
ښکته کی ـ که نیت ئے مثلاً د څلورو رکعتو فرضو تړلے وُ ـ دَ دے نه زیات وے په قعده
کښ نور څه نه لولی ـ څو سمه ستی دے دَ الله اکبر ویلو سره پاسی ـ دوه رکعته دے نور
پوره کی ـ لیکن دَ فرض په آخری دوو رکعتو کښ به دَ الْحَمْدُ نه پس بل څه سورة نه لولی ـ
بیا چه دَ څلورم رکعت دواړه سجدے نه پس په قعده کینی ـ نو اَلتَّحِيَّاتُ به لولی دَ عَبْدُهٗ
وَرَسُوْلُهٗ پورے ـ بیا دا درود شریف :ـ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ
عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ط بیا دا درود شریف :ـ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ
عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ط
بیا دا دُعا :ـ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ
یا دا دُعا :ـ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَ
الْمُسْلِمَاتِ الْاَحْيَاءِ مِنْهُمْ وَالْاَمْوَاتِ ـ یا دے بله داسے دعا ولولی چه راغلی وی په
قرآن شریف کښ یا په حدیث شریف کښ ـ دَ دے نه پس دے اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ
وَرَحْمَةُ اللّٰهِ ویلو سره ښی جانب ته سلام وگرځوی ـ بیا دا رنگ گس جانب ته پس
دا دَ مانځه طریقه ده ـ څو مقتدی به په امام پسے اَعُوْذُ بِاللّٰهِ بِسْمِ اللّٰهِ اَلْحَمْدُ او
سورة نه لولی ـ اوکوم وخت چه امام دَ رکوع نه پاسی ـ سَمِعَ اللّٰهُ وائی ـ دے به په پټه
رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وائی ـ او امام به تکبیرونه په زوره وائی ـ او دے به په پټه ـ نوره ـ ټوله
طریقه یوه ده ـ او په څلور رکعتی او درے رکعتی فرض کښ اول دوه رکعته ډک دی ـ باقی
تش ـ او په نورو کښ ټول ډک دی ـ نوره طریقه دَ ټولو یو شان ده ـ او کومه طریقه دَ مانځه
چه بیان شوه ـ په دے کښ بعضے څیزونه فرض دی ـ بعضے سنت ـ بعضے واجب ـ بعضے
مستحب ـ او دَ هر یو بیان به په خپل خپل باب کښ په تفصیل سره راشی ـ

**مسئله** :ـ ښځه چه مونځ کوی ـ نو دَ هغے دَ مانځه هم دغه طریقه ده ـ کومه
چه بیان شوه ـ خو په یو څو خبرو کښ فرق دے ـ یو دا چه تکبیر تحریمه په وخت کښ به
سره لاسونه دَ څادرو غیره نه را او باسی ـ او وچے گوتے به دَ غوږو لو سرے ته رسوی ـ او
په هغے به ئے بلسوی ـ او که څه عذر وُ ـ مثلاً سخته یخنی وه ـ نو بیا بله خبره ده ـ او ښځے

---

له په دویمه قعده کښ به هم با قاعده اشاره وکی ۱۲ منه ۲ طحطاوی وشامی ۱۲

له په هرحال کښې لاسونه دَ ښکاره کولو نه بغیر اوګوته پورته کول پکار دی - ښس

بل[۱] فرق دا دے چه سړے به په قیام کښې لاسونه دَ نامه لاندے تړی - او ښځه به دواړه لاسونه

په سینه کدی - په دے شان سره چه دَ ښی لاس ورغوے ئے دَ کس لاس د ورغوی

په شا پروت وی ښس - دَ نامه لاندے ایخودل او حلقه د غول وغیره ورله نشته -

بل فرق دا دے - چه نارینه له په رکوع کښې ښه ټیټیدل پکار دی - او ښځے له صرف

دومره ټیټیدل پکار دی - چه لاسونه ئے زنګنونو ته ورسی ښس - او سړی له په رکوع

کښې ګوتے په زنګنونو باندے خورے ایخودل پکار دی - او ښځے له ملاؤ کړے - او سړے

به په رکوع کښې څنګلے دَ تنشونه بیرته ساتی او ښځه متصلے -

بل[۲] فرق دا دے چه په سجده کښې به سړے څنګلے د زمکے نه اوچت ساتی - او ښځه به

زمکه لګولے - او سړے به خیټه دَ ورنونه او څټے دَ تړخ نه جدا ساتی - او ښځه متصل - او

سړے به په سجده کښې دواړه خپے ودروی - او ښځه به ودروی نه - خو دواړه به ښی جانب

ته پرے باسی - سړے به رکوع او سجود کشاده کوی - او ښځه به غیر کشاده -

بل[۳] فرق دا دے چه سړے به دَ ناستے په حالت کښې په کسه پریستلے خپه کیښی - او ښئ

خپه به ئے ودروے وی - او ښځه به په کس کناټی - او دواړه خپے به ئے ښی جانب ته ایستلی

وی - په دے شان سره چه ښئ پنړئ ئے راغلی وی په کسه -

بل[۴] فرق دا دے چه ښځے له قرأت په جهر سره نشته - بلکه هغه چه قرأت کوی نو په

هرحالت کښې به په پټه کوی -

**دَ مانځه فرائض** | په مانځه کښې دا اوو فرض دی (۱) تکبیر تحریمه یعنے دَ مانځه اول تکبیر -

(۲) قیام یعنے دریدل په دے شان سره چه په هغے کښې ئے لاسونه نه رسی زنګنونو ته - (۳)

قرأت یعنے دَ قرآن شریف یو آیت لوستل - (۴) رکوع کول په دے شان سره چه لاسونه ئے رسیدے

شی زنګنونو ته - (۵) سجده کول - (۶) څومره ادنیٰ ساعت چه دَ التحیات په لوستو کښې دَ

عبده ورسوله پورے لګی - دومره ساعت آخری قعده کول - (۷) په خپل عمل سره دَ مانځه

نه وتل - خو په دے اووم کښې دَ بعضو اختلاف دے - چه فرض دے - او که نه -

**مسئله**[۵] :- په تکبیر کښې دے دَ الله اکبر همزه نه ولاړه وی - او بے دِهم نه ولاړه وی

او په رلے دے وائی غورېدے -

**مسئله**[۶] :- که نیت ئے په امام پسے وتاړه او تکبیر تحریمه ئے ووے - خو معلومه

---

[۱] درمختار وشامی ۱۲ [۲] مراقی الفلاح ۱۲ [۳] مجمع الانهر ۱۲ [۴] شامی ۱۲ [۵] درمختار ۱۲ [۶] شرح التنویر وشرح المنیه ۱۲

ورته نه وه۔ چه امام تکبیر تحریمه کړے دے۔ او که نه۔ نو که د ده غالب گمان وُ۔ چه ما د امام نه مخکښ
تکبیر تحریمه کړے دے۔ نو نه کیږي۔ او که غالب گمان ئے وُ۔ چه د امام نه وروستو ئے کړے۔ یا ور سره
یائے شک وُ۔ نو کیږي۔ خو په دے آخری صورت کښ ورله تکبیر تحریمه په دویمې ویل غوره دی
د پاره د دے چه شک ئے بدل شي په یقین سره۔

**مسئله** :۔ کوم مونځ چه فرض دے یا ملحق دے د فرض سره لکه واجب او د سحر سنّت
قیام په هغې کښ فرض دے۔ لکه مخکښ بیان شوې دی۔ لیکن هله که قدرت ئے د دریدلو او
د سجدے کولو وُ۔ او که قدرت ئے د قیام یا د دواړو نه وُ۔ بیا یې قیام فرض نه دے۔ او که قدرت
ئے د قیام وُ۔ خو سجده ئے نه شوه کولے۔ نو په دے صورت کښ ورله غوره دا ده چه په ناستے
اشاره وکړي۔ او که په ولاړه ئے وکړه۔ نو هم جائز دی۔ او که مجبور وُ۔ د دریدلو په صورت کښ
ئے عورت د څلورمے حصے نه زیات ښکاره کیده۔ یائے زخم بهیده۔ یا د قرأت نه بالکل عاجزه
کیده۔ یائے واړه بول څڅیده مثلاً او د ناستے په صورت کښ ئے دا عذر نه وُ۔ نو په ده هم
قیام فرض نه دے۔ بلکه په ناستے به کوي۔

**مسئله** :۔ که امام ئے په رکوع کښ لاندے که۔ زر ئے په ټیټه تکبیر تحریمه اووے
او په رکوع کښ شامل شه۔ لکه څنګه خلق چه د جلدے په خیال داسے کوي۔ نو چونکه تکبیر
تحریمه فرض دے۔ او د هغې د پاره قیام شرط دے۔ د دے وجه نه ئے مونځ نه کیږي۔ هاں۔
که د تکبیر تحریمه په وقت کښ ئے ټیټوالے کم وُ۔ یعنی لاسونه ئے زنګنو نو ته نه رسیدل نو مونځ
ئے کیږي۔ او که په دغه وقت کښ ئے صرف یو تکبیر کړے وُ۔ نو دغه تکبیر تکبیر تحریمه شه۔

**مسئله** :۔ که په سجده کښ ئے پوزه ونه لګوله۔ صرف تندے ئے ولګاوُ۔ نو مونځ ئے
کیږي۔ خو د کراهت نه خالي نه ده۔ او بے د عذر نه صرف په پوزه اکتفا کول منع دی۔ نه
کیږي۔

**مسئله** :۔ په سجده کښ د ښپے گوته په زمکه ایښودل ضروري دی۔ نو که دواړه
ښپے ئے اوچتے کړے وے۔ سجده ئے نه کیږي۔ او که یوه ئے اوچته کړے وه۔ نو کیږي۔ خو
کراهت پکښ شته۔ لیکن په دے مسئله کښ د عالمانو اختلاف دے۔ ځنے وائي چه په
سجده کښ د دواړو ښپو گوتے لګول په زمکه فرض دي۔ او ځنے وائي چه د یوے۔ او ځنے
وائي چه واجب دي۔ او ځنے وائي سنت

**مسئله** :۔ دا ضروري ده چه د سجدے ځائے د ښپو د ځائے نه زیات نه

---

۱؎ بحر و شامی ۱۲ ۲؎ شرح التنویر ۱۲ ۳؎ در مختار و شامی ۱۲ ۴؎ شامی ۱۲ ۵؎ در مختار و شامی ۱۲۔

زیات دَ نیم شرعی گز نه اوچت نه وی. هاں! که ضرورت وُ. بیا خیر دے. مثلاً جماعت لوئے وُ. او خلق دومره نژدے ولاړ وُو. چه سړی په زمکه سجده نه شوه کولے. نو دَ مونځ کونکی په شا باندے سجده کولے شی. خو شرط دا دے چه دی دواړو نیت تړلے وی دَ یو مانځه. او بعضے عالمانو پکښ دَ دے نه زیاته آسانی هم کړے ده. چه دا شرط ئے ضروری نه دے گڼړلے. او ځینو پکښ دَ دے نه هم تنگی راوستے ده.

**مسئله**[1]:- که دَ مانځه یوه سجده ئے هیره شوه. بیائے په مانځه کښ یادشی. نو دَ یاد ئیں لوسره دے وکی. او دَ دے سجدے نه مخکښ چه ئے دَ مانځه څومره حصه کړے ده. دهغے راگرځول پے نشته. بلکه باقی مونځ دے پوره کی. او په آخر کښ دے باقاعده سجده سهو وکی. نو مونځ ئے وشه. خو دومره خبره ده. چه په کوم رکن کښ ورته یادشوی دی او دَ هغے نه سجدے له تلے دے. (مثلاً دَ دویم رکعت په رکوع کښ ورته یادشو. چه دَ اول رکعت یوه سجده ئِ پریخے ده. دَ دے رکوع نه سجدے له لاړ. سجده ئے وکړه. نو دَ دے نه پس) دَ هغه رکن راگرځول پے شته. او که نه. (یعنے په مذکوره صورت کښ به دغه رکوع بیا راگرځوی او که نه) نو په دے کښ اختلاف دے. خو معتمده خبره دا ده. چه دَ هغه رکن راگرځول پے واجب نه دی. بلکه مستحب دی.

**مسئله**[2]:- فرض که چه دَ سلام گرځولو نه پس ورته سمدستی یادشو. چه ما دَ اول رکعت یوه سجده پریخے ده. نه ئِم ده کړے. او لا خبرے وغیره ئے نه وے کړے. نو وس دے هغه سجده وکی. او دَ سجدے نه پس دے تشهد او والی بیا دے باقاعده سجدهٔ سهو وکی. مونځ ئے وشه.

**مسئله**[3]:- قیام دَ رکوع نه مخکښ او رکوع دَ سجدے نه مخکښ او قاعده آخره په آخر کښ کول دا ترتیب هم فرض دے. نو که دَ رکوع نه اول ئے دَ مانځه سجده وکړه. دغه سجده معتبره نه ده. مونځ ئے نه کیږی. هاں که پس د رکوع نه ئے بیا باقاعده سجده وکړه نو مونځ ئے کیږی. خو سجدهٔ سهو به هم کوی. ځکه چه کوم ترتیب فرض دے هغه خو حاصل شه. لیکن دَ زیاتے سجدے په وجه چه په کوم ترتیب کښ فرق راغلے دے. هغه ترتیب واجب دے. نو هغه به په سجدهٔ سهو سره پوره شی.

| دَ مانځه واجبات | په مختلفو[4] مونځونو کښ دا لاتلونکی شل[20] واجبات دی. که په |
|---|---|

[1] کنز و هدایه و بحر رائق ۱۲ [2] درمختار ۱۲ [3] شامی ۱۲ [4] درمختار و شامی ۱۲

مانځه کښې ئې قصداً د دغه مانځه يو واجب پرېښود نو مونځ ئې ناقص دے۔ اعاده ئې واجب ده۔ د پاره د دے چه مکمّل شی۔

د فرض په اولو دوو رکعتونو کښې او د واجبو او د سنتو او د نفلو په ټولو رکعتونو کښې فاتحه لوستل۔ د دغې[۱] فاتحې سره سورة ملاوول۔ په درېم[۲] رکعت او څلورم رکعت فرض کښې د هر يو دوه رکعته د قرأت د پاره متعين کول۔ فاتحه[۳] د سورة نه مخکښې لوستل په[۴] سرّى مونځونو کښې قرأت په پټه کول۔ په جهرى[۷] مونځونو کښې امام له په جهر سره قرأت کول۔ مقتدى[۶] له په امام پسے قرأت نه کول بلکه چپ ودرېدل۔ مقتدى[۵] له د امام متابعت۔ د هر[۹] رکعت په دويمه سجده او مابعد کښې ترتيب۔ دا رنګ ترتيب د رکعتونو۔ د مانځه[۱۰] فرض او واجب په خپل خپل محل کښې کول۔ تعديل[۱۱] د ارکانو۔ يعنې رکوع او سجده په اطمينان سره کول۔ په دے شان سره چه اندامونه ئې کم نه کم د يو ځل تسبيح ويلو په مقدار په خپل خپل ځائې ښه قرار ونيسى۔ قومه[۱۲] او جلسه[۱۳] او د دغې تعديل[۱۴]۔ اوله[۱۵] قعده۔ تشهد[۱۶] د قعدهٔ اولىٰ۔ تشهد[۱۷] د آخرے قعدے۔ د سلام[۱۸] جارستلو په وخت کښې لفظ د السلام ويل دوه پېرے۔ په وتر[۱۹] کښې دعاء قنوت لوستل۔ د اختر[۲۰] په مانځه کښې شپږ زائد تکبيرونه۔

**مسئله**[۱] :- سورة فاتحه د سورة نه مخکښې لوستل واجب دى۔ نو که اول ئې په هېره سره څه نور آيتونه ولوستل۔ بيائې ياد شو۔ پس فاتحه ئې ولوستله۔ او د دے نه ورستو ئې سورة ولوست۔ نو سجدهٔ سهوې لازمه ده

**مسئله**[۲] :- فاتحه د سورة نه مخکښې صرف يوه پېره ويل واجب دى۔ نو که چا په هېره سره د سورة نه مخکښې دوه ځله ولوسته۔ يا ئې د نيمے نه زيات ولوسته او بيائې د سره راوا خستنه پوره ئې کړه۔ نو هم سجده سهو لازمېږى۔ او که يو ځل ئې د سورة نه مخکښې ولوسته۔ او بيو ځل ئې د سورة نه ورستو نو په دے صورت کښې سجدهٔ سهوه نه لازمېږى۔

**مسئله**[۳] :- که د فرضو په درېم او څلورم رکعت کښې ئې سورة فاتحه دوه دوه ځله ولوسته په هېره سره نو سجده سهوې نشته۔ او که قصداً ئې دا سے وکړه نو کراهت

---

[۱] په شامى کښې دا ئې ذکر کړے دا قيد لګول پکار دى چه بے د عذر نه ۱۲ [۲] بحر رايق و در مختار ۱۲
[۳] شامى ۱۲ [۴] شرح المنيه ۱۲

په کښې هم نشته - ځکه چې په جماعت باندې بادرنه وي او دا رکعت یې د وړومبي رکعت نه اوږدېږي نه -

**مسئله**[1] :- د فرضو په دریم او څلورم رکعت کښې فاتحه لوستل واجب دي بلکه سنت دي - دا رنګ په دې رکعتونو کښې په فاتحه اکتفا کول هم سنت دي - نو که په هیره ئې په دې رکعت کښې د الحمد سره سورة هم ولوست - سجده سهوه یې نشته -

**مسئله**[2] :- د الحمد سره سورة یو ځل کول واجب دي - د دې نه مراد مختصر سورة دې چې کم از کم د سورة کوثر هومره وي - او که کم نه کم درې آیته یې په کښې ولوستل - یا یو دومره اوږد آیت چې هغه د درې وړو آیتونو هومره کیږي نو هم کافي کیږي

**فائده**[3] :- په فقهه کښې مدرک هغه مقتدی ته ویلې شي چې هغه نه پوره مونځ د اول نه د آخره پورې د امام سره ملاو شوې وي - او ده ته مؤتم هم وائي - او مسبوق هغه مقتدی دې - چې کم از کم یو رکعت ترې تللې وي - بیا د امام سره شریک شوې وي - او لاحق هغه مقتدی دې - چې نیت ئې تړلې وي په امام پسې - بیا ترې ټول رکعتونه یا بعض رکعتونه فوت شوي وي - په سبب د اوده کیدلو یا په سبب د اودس ماتیدلو یا په بله وجه سره - او د ابیان به مخ کښې په تفصیل سره راشي -

**مسئله**[4] :- په مدرک باندې قرأت نشته - یعنې په امام پسې به الحمد او سورة نه لولي - ځکه چې د امام هغه قرأت د ده د پاره کافي دې - برابره خبره ده چې مونځ ئې جهري وي او که سري - او که مقتدی[5] مسبوق دې - نو کوم رکعتونه چې په امام پسې کوي - په هغې کښې به قرأت نه کوي - او کوم چې ترې تللي دي - او د امام د سلام نه پس به ئې کوي - په هغې کښې به قرأت کوي - ځکه چې په هغې کښې ئې امام امام نه دې - او باقي بیان به د مقتدی د مسئلو په باب کښې په تفصیل سره راشي -

**مسئله**[6] :- په جهر سره د قرأت ویلو حد فقهاؤ کم نه کم دا مقرر کړیدې[7] چې کوم سړي ترې بیرته ولاړ وي هغه ئې آوریدې شي - او د پټ ویلو حد دا چې صرف په خپله ئې آوري - او دغه بل ئې نه شي آوریدې - او ځینې عالمان وائي چې په د صورت کښې صرف د حروفو صحیح وایل کافي دي - اګر چې په خپله ئې هم وانه وري - لیکن غوره خبره اوله ده - او دا رنګ حکم دې د هر هغه شي چې تعلق لري د ګویا کیدلو سره -

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] مراقی الفلاح ۱۲ [3] طحطاوی ۱۲ [4] هم ایضاً ۱۲ [5] عالمګیری ۱۲
[6] مجمع الانهر ودرمختار ۱۲ [7] اګر که حکماً وي لکه کوڼ ۱۲

لکه بسم الله ویل شوپه وقت دَ ذبح کښې - یالکه واجب کیدل دَ سجدهٔ تلاوت شی وغیره -

**مسئله** :- امام له دَ سحر په دواړو رکعتونو کښې اودَ ماښام اودَ ماسختن په اولنو دواړو رکعتونو کښې برابره خبره ده چه اداوی اوکه قضا اودَ جمعې اودَ اخترِ او دَ تراویح په مانځهٔ کښې اودَ رمضان په وترو کښې قرات په جهر سره واجب دے -

**مسئله** :- امام وی اوکه منفرد - یعنې یوازے مونځ کونکے وی اله دَ ماسپخین اودَ ماز یگر په ټولو رکعتونو کښې اودَ ماښام په دریم اودماسختن په آخری دوؤ کښې قرآت په پټه واجب دے -

**مسئله** :- منفرد له دَ صبا په دواړو رکعتونو کښې اودَ ماښام اودَ ماسختن په اولو دواړو کښې اختیار دے که قرآت په زوره کوی اوکه په پټه -

**مسئله** :- منفرد که دَ صبا یا دَ ماښام یا دَ ماسختن مونځ دَ ورزے قضا راوړی نو په هغې کښې دله هم قرآت په پټه واجب دے - اوکه دَ شپے ئے قضا راوړی نو بیا ئے اختیار خپل دے که په پټه وائی اوکه په زوره -

**مسئله** :- کوم نفل مونځ چه دَ ورزے کوی په هغې کښې به قرآت په پټه کوی اوکوم چه دَ شپے کوی - په هغې کښې ئے اختیار خپل دے -

**مسئله** :- که په سرّی مونځ کښې ئے قرآت په جهر سره وکه - برابره خبره ده - چه امام وی اوکه منفرد - یا امام په جهری مونځ کښې په پټه قرآت وکه - نو په دواړو صورتونو کښې سجده سهو شته - هاں په اول صورت کښې کوم قرآت چه په زوره کړے شوے دے که هغه دومره لږ وه - چه دَ مانځهٔ دَ صحت دَپاره نه کافی کیده - یا په دویم صورت کښې امام په پټه صرف دومره قرآت وکه - نو صحیح خبره داده چه سجدهٔ سهو نه ضرورت نشته -

**مسئله** :- که مثلاً دَ ماسختن په اولو دواړو رکعتونو کښې ئے په هیڅ سره دَ الحمد نه پس سورة پرېخود - یعنې وے نه وے - نو په دریم اوڅلورم رکعت کښې ورله دَ الحمد نه پس سورة ویل واجب دی - اوکه امام وُ - نو په دے کښې ورله قرآت په جهر سره واجب دے - اوپه آخر کښې به سجدهٔ سهو کوی -

**مسئله** :- که په قومه کښې نیغ ونه دریږی خو ایلائے سرا وچت که - او سمه سنې

---

[۱] در مختار ۱۲ [۲] مراقی الفلاح ۱۲ [۳] مجمع الانهر ۱۲ [۴] شرح الهدایه ۱۲ [۵] داخبره صاحب هدایه غوره کړے ده - لیکن ډیرو عالمانو ئے نودیں کړے دے - لکه چه دا وړی ئے دی په شامی کښې ۱۲ منه [۶] مراقی الفلاح ۱۲ [۷] در و شامی ۱۲ [۸] مجمع الانهر ودر ودر ۱۲ [۹] شامی ۱۲ [۱۰] هدایه ۱۲

سجدے له لاړ نو مونځ ئے وشه - خو کامل او مکمل نه دے - نو څينے عالمان وائي چه دَ احتياط دَ پاره ئے راګرځول واجب دي - ځکه چه دَ عالمانو اختلاف دے - بعضے وائي چه تعديل په قومه کښې سنت دے - او بعضے وائي واجب - او بعضے وائي فرض -

**مسئله** :- که دَ اولے سجدے نه دَ سر اوچتو لو سره دويمے سجدے له لاړ - نو که دَ دواړو سجدو په مينځ کښې صرف دومره اوچت شوے وُ - چه کينا ستو ته نژدے نه وُ - بلکه سجدے ته نژدے وُ - نو صرف يوه سجده وشوه - دوه وُنه شوے - نو مونځ ئے وُنه شو - او که ناستے ته نژدے شوے وو - نو خير دے مونځ ئے په کيږي وشو خو په دے کښې هم هغه بيان دے کوم چه په مخکښے مسئله کښې ذکرشه -

**مسئله** :- مشهور مذهب دا دے چه قومه او جلسه او په هغے کښې تعديل کول سنت دي - ليکن دَ دلائلو سره مطابق او غوره خبره داده چه دا واجب دي - نو احتياط پکښې ډير پکار دے - بلکه امام ابو يوسف صاحبؒ دومره تاکيد کړے دے چه فرض ئے ورته وئيلي دي -

**مسئله** :- تشهد پوره وئيل واجب دي - که پوره ئے ونه لوست - بلکه څه ئے هير شه - نو سجده سهو پے شته -

**مسئله** :- دَ سلام ګرځولو په وقت کښې دواړو ځلو ته السّلام وئيل واجب دي ليکن وُځي دَ مانځه نه په اول سلام سره - نو پس دَ اول سلام نه پسے اقتدا کول صحيح نه دي - اګر که دَ السّلام نه ورستو او دَ عليکم نه مخکښې وي -

**مسئله** :- که ښي جانب ته ئے سلام وګرځاوُ او ګس جانب ته ئے هير شه - نو که دَ قبلے نه لا نه وُګرځيدلے او خبرے وغيره ئے هم نه وے کړے - وس دے ګس جانب ته سلام وګرځوي -

**مسئله** :- که دَ سلام ګرځولو په وقت کښې ئے لفظ دَ السّلام ونه وے - بلکه قصداً ئے دَ چا سره خبرے شروع کړے - يا دَ ځايه پاسيدلاړے - يا بل څه داسے کار ئے وکه چه په هغے سره ئے مونځ ماتيږي نو مونځ ئے وشه - ليکن دَ تکميل دَ پاره ئے راګرځول واجب دي -

| دَ مانځه سنن | په مانځه کښې دا يو کم ديرش سنت دي - دَ تکبير تحريمه دَ پاره دواړه لاسونه غوږو ته اوچتول - ګوتے په خپل حال ولاړے پريښودل - ناديته له لاسونه |
|---|---|

له هدايه ۱۲ ـ ـ در مختار ۱۲ ـ بحر رائق ۱۲ ـ در مختار ۱۲ ـ شرح التنوير ۱۲ ـ شرح التنوير ۱۲

دَ نامه لاندے تړل - ښځے لاس دَ کس دَ پاسه ایخودل - د ثنا[5] - اعوذ بالله[6] - بسم الله[7] آمین[8]
ویل - په پټه ئے ویل[9-10-11-12] - دَ ماښام په دریم رکعت کښې - او دَ څلور رکعتی فرض په آخری
دوؤ رکعتونو کښې فاتحه لوستل[13] - په رکوع کښې درے پیرے تسبیح ویل[14] - نارینه دَ پاره په
رکوع کښې دواړه زنګنونه نیول[15] - او رکوع کښې ګشاده کول - په رکوع کښې دواړه پوړکی یو ځائے
کول - او پښو ئے نیغ لرل[16] - دَ رکوع نه سر اوچتولو په وقت کښې امام له سَمِعَ اللهُ لِمَنْ
حَمِدَهٗ - او مقتدی له رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ او یوازے مونځ کونکی له دواړه ویل[17] - سجدے[18]
لَه دَ تلو په وقت کښې مینه دواړه زنګنونه، بیا لاسونه - بیا تندے ایخودل - په سجده[19] کښې
درے پیرے تسبیح ویل - تکبیرونه دَ انتقالاتو[20] - امام له تکبیر[21] او سَمِعَ الله او سلام
په جهر سره ویل - په جلسه[22] کښې او په قعده[23] کښې نارینه دَ پاره ښځے خپه
ودرول - او په ګسه پر بیستلے خپه کیناستل - او لاسونه په ورنونو ایخودل - په
تشهد[24] کښې اشارت کول - او په آخره قعده[25] کښې درود شریف لوستل - بیا
دعا[26] ویل - دَ سلام[27] جارستلو دَ پاره مخ ښی طرف ته او ګس طرف ته ګرځول - دَ امام
دَ پاره[28] هو مچے سلام په زوره او دویم په رو ویل - دَ سلام[29] ګرځولو په وقت کښې دَ
سلام اچولو نیت -

**مسئله**[1] :- په مانځه کښې دَ تکبیر تحریمه سِوا نور چه کوم تکبیرونه معمول او
معروف دی - هغه سنت دی - او دَ قنوت په تکبیر کښې اختلاف دے ځینې عالمان ورته
واجب وائی او ځینې سنت -

**مسئله**[2] :- دَ اعوذ بالله او بسم الله ویلو تعلق دَ قرأت سره دے - نو چا له چه
قرأت ویل نشته - لکه مقتدی - نو په هغه اعوذ بالله او بسم الله ویل هم نشته -
هاں که مسبوق وُ - نو کوم وقت چه دَ امام دَ سلام نه روستو دَ پاتے شوی رکعتونو
دَ پوره کولو دَ پاره پاسی - په دغه وقت کښې دے اعوذ بالله بسم الله او وائی -

**مسئله**[3] :- اعوذ بالله دَ بسم الله نه مخکښې ویل پکار دی - نو که چا مخکښې بسم
الله او وے - وس دِ اعوذ بالله بیا او وائی - او په هغې پسے بسم الله - او که الحمد ئے
ولوسته - بیا ئے یاد شو چه ما بسم الله نه ده ویلے - نو وس ئے دَ ویلو حکم نشته -
ځکه چه هغه موقعه ئے تلے ده -

**مسئله**[4] :- که سړے دَ امام سره په قیام کښې وروستو شریک شه - په داسے

---

[1] درمختار ۱۲ [2] بحرالرائق ۱۲ [3] قاضیخان ۱۲

حال کښې چه امام په زوره قرأت شروع کړے وُ۔ نو دے به ثنا نه لولی۔

مسئله :- که امام ئے په رکوع یا په سجده کښې بیا مونده۔ نو که غالب گمان ئے وُ۔ چه دا رکوع یا دا سجده به ماته د ثنا ویلو نه بعد ملاؤ شی۔ نو ؤدے لولی۔ کنی نو نه۔

مسئله[1] :- په مانځه کښې ثنا او اعوذ بالله او بسم الله ویل په پټه دی۔ او په مانځه کښې ثنا او اعوذ د یو ځل نه زیات ویل مشروع نه دی۔ او بسم الله د نورو رکعتونو په شروع کښې هم سنت ده۔ د پاره د امام او د منفرد۔ برابره خبره ده چه مونځ جهری وی او که سری۔ هاں د الحمد نه پس د سورة په شروع کښې مسنونه نه ده۔ لیکن د امام صاحبؒ نه دا روایت هم شته چه ویل ئے غوره دی۔

مسئله[2] :- که د ماسپخین یا د ماښگر یا د ماسختن په فرضو کښې په آخری دوؤ رکعتونو کښې یا د ماښام په دریم رکعت کښې ئے الحمد وُنه لوسته۔ بلکه سُبحان الله ئے اووے۔ درے ځله۔ یا ئے پکښې هیڅ ونه لوست۔ خو دومره ساعت چپ ودریدو چه کم از کم درے ځله پکښې سبحان الله ویلے کیدے شه۔ هم ئے مونځ وشه۔ لیکن الحمد لوستل په کښې سنت دی۔ نو د سنت نه ئے خلاف وکه۔ او دا ظاهر الروایت دے او بعضے عالمان وائی چه په دے کښې هم فاتحه واجب ده۔

مسئله[3] :- د سورة فاتحه د ختمیدو نه پس امام او منفرد له په پټه آمین ویل او که قرأت په جهر سره وُ۔ نو مقتدیانو له هم په پټه ویل سنت دی۔

مسئله[4] :- په رکوع کښې سبحان ربی العظیم ویل سنت دی۔ لیکن څوک چه په ذ او په ظ کښې فرق نشی کولے۔ هغه له د دے په ځائے سُبْحَانَ رَبِّیَ الْکَرِیْمِ ویل پکار دی۔ که "عزیم" ئے اووے۔ نو په دے سره مونځ فاسدیگی۔

مسئله[5] :- د رکوع نه د سرا د چتولو په وقت کښې سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ او رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ ویل سنت دی۔ نو که منفرد وُ۔ دواړه دے وائی۔ او که په امام پسے وُ۔ نو صرف رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ۔ او که امام وُ نو صرف سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ۔ او د صاحبینو قول دا دے چه امام به رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ هم وائی۔ خو په پټه۔

مسئله[6] :- رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ ویل کافی دی۔ خو رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ ویل غوره دی۔ او د دے نه لا غوره دا ده چه اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ وائی۔

---

[1] شرح المنیه و درمختار ۱۲ [2] درو شامی ۱۲ [3] شرح التنویر و ردالمحتار ۱۲ [4] درمختار ۱۲ [5] شامی ۱۲ [6] شرح التنویر ۱۲ سو شامی ۱۲

**مسئله**[1]:- که د پتلون ولے په تندی را غلے وی - او سجده ئے په هغے کوله - نو بلا عذره مکروه خودی - لیکن سجده صحیح ده - ولے هله که ځائے پاک وی - او د زمکے حجم ئے مونده

**مسئله**[2]:- د زمکے حجم موندلو نه دا مراد دے - چه په کوم څیز باندے سجده کونکے سجده کوی - هغه دے داسے وی - چه که ده په سجده کښی مبالغه وکړه - نو دغه شے به نور ښکته نه شی - بلکه قرار به ئے نیولے وی - سجده به ئے هله صحیح ده - کنی نو نه نو په کټ کښی صحیح نه ده - او دا رنګ د نو په مینځ کښی چه بچو نړه وغیره تړلی او اویزانه وی - په هغے کښی هم صحیح نه ده - او دا رنګ په ډیرو واورو کښی او په ډیرو مالوچو کښی چه سر پکښی ننوزی - او د زمکے حجم نه مومی هم جائزه نه ده - او که قرار ئے بنو - او د زمکے حجم ئے مونده - نو جائزه ده - او په تخته پوش وغیره جائزه ده - دا رنګ که غنم دریشے په زمکه پروت وے - په هغے ئے باقاعده سجده وکړه - نو هم جائزه ده -

**مسئله**[3]:- که په خپل نستونړی یا د خپلے جامے په زیاتی حصه ئے سجده وکړه او په کوم ځائے چه هغه غوړیدلے وی هغه پاک وی - نو سجده به ئے کیږی - لیکن که د یخنئ ګرمئ وغیره څه وجه نه وه - خو د لوئیځ په نظرئے داسے کول - نو دا فعل مکروه تحریمی دے -

**مسئله**[4]:- په قعده کښی د شهادت په ګوتے سره اشاره کول صحیح خبره داده چه سنت دی - کوم[5] وخت چه اَشهد ته را ورسی - نو د ښی لاس په مینځنئ او په تنه ګوته دے حلقه روغه کی - او نیچه ګوته او د هغے ملګرے دے ورولی - او د لا ویلو په وقت کښی دے د شهادت ګوته اوچته کی - او د اِلّا الله ویلو په وقت کښی دے ښکته کی -

**مسئله**[6]:- د اشارے د پاره چه ئے ګوتے وروستی دی - دا عقد او قبض به د آخره پورے باقی پریږدی - او که پس د اشارے نه به ئے ورانه وی - په دے کښی اختلاف دے - خو غوره خبره داده چه د آخره پورے دے باقی پریږدی -

**مسئله**[7]:- که چا د مانځه د پاره بلخم زړوکے وغیره او غوړاوه - او مونځ ئے پے کاؤ - نو په دے کښی بدی نشته - هاں غوره خبره په زمکه ده - او کوم شے چه د زمکے نه پیدا کیږی په هغے -

---

[1] شامی ۱۲ [2] بحر رائق ۱۲ [3] شامی ۱۲ [4] کبیری ۱۲ [5] شرح النقایه ۱۲ [6] ملا علی قاری ۱۲ [7] رد المحتار ۱۲

**مسئله** :- دَ اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ وَرَحْمَۃُ اللّٰهِ معنیٰ داده - چه سلامتیا دِ وی په تاسو باندے - او رحمة دَ خدائے پاک دے وی - نو کوم وقت چه امام سلام کرځی ښی جانب ته - په دے خطاب سره دے نیت دَ هغه مقتدیانو کوی - کوم چه ښی جانب ته دی - او کوم وقت چه سلام کرځی کس جانب ته - دَ کس جانب مقتدیان دے په نیت کښې راولی - او دارنګ دَ خپل ښی جانب او دَ کښ جانب فرښتے دے هم مراد آخلی - کومے چه وی - دَ هر انسان سره - دا حکم دَ امام دے - او دَ مقتدی دَ پاره هم دا حکم دے - خو دومره خبره ده چه دے به په نیت کښې امام هم راولی - که امام ښی جانب ته وُ - نو دَ ښی جانب په سلام کښې اوکه کس جانب ته وُ - نو دَ کس جانب په سلام کښې - اوکه بالکل مخے ته وُ - نو دَ دواړو جانبو په سلام کښې - اوکه څوک کوښے منفرد وُ - نو هغه به په سلام کښې دَ فرښتو نیت کوی - بس -

**مسئله** :- ښی جانب ته سلام داسے کرځول پکار دی - چه کوم سرے دَ ده شاته موځ کوی - هغه دَ ده دَ ښی اننګی سپین والے لیدے شی - او دَ کس جانب په سلام کښې دَ کس اننګی -

**مسئله** :- که سلام ئے مینه کس جانب ته وګرځاوُ - بیائے یاد شو - نو وس دے صرف ښی جانب ته وګرځوی - بس - بیخے دوباره کس جانب ته دَ ګرځولو ضرورت نشته -

**مسئله** :- که جماعت لوئے وُ او کنړه وه - نو مستحب ده چه مبلّغ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، او تکبیرونه او سلام په زوره اووائی - اوکه ضرورت نه وُ - نو داسے کول مکروه دی -

**دَ مانځه آداب او مستحبات**

دَ تکبیر تحریمه دَ پاره لاسونه دَ لستونړی او دَ څادرو غیره نه راایستل بشرطیکه مجبوری نه وی - په قیام کښې دَ دواړو قدمونو په مینځ کښې څلور ګوتے فاصله ترل - په حالت دَ قیام کښې دَ سجدے ځائے ته او په رکوع کښې دَ دواړو قدمونو ظاهر ته او په سجده کښې دَ پوزے سر ته - او په قعده کښې غیږے ته کتل - او دَ کوم شی په لیدو سره چه دَ مانځه په توجه کښې فرق راځی هغے ته نظر نه کول - په رکوع کښې دَ لاسونو ګوتے خورے ایخودل - او په سجده کښې ملاوُ کرے ایخودل - په یو ځائے موځ کښې تسبیح دَ درے پیرے نه زیات ویل - په قدر طاقت ټوخ دفعه کول - ارمګے بندول - اوکه د دے طاقت ئے نه وی - نو دَ کس لاس په ظاهر یا په لستونړی

۱ درمختار، شامی ۱۲ ۲ هدایه ۱۲ ۳ بدائع ۱۲ ۴ شرح التنویر ۱۲ ۵ طحطاوی ۱۲ ۶ شرح التنویر ۱۲

خوله پټول۔ دا او و وانړه د مانځه آداب دی۔

اوکوم وقت چه په اقامت کښې حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ او ویلے شی۔ امام او مقتدیانو له په دغه وقت کښې ودریدل۔ بشرطیکه امام محراب نه نزدے وی۔ اوکوم وقت چه قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃ او ویلے شی۔ امام له په دغه وقت کښې مونځ شروع کول۔ دا هم دی د آداب نه۔ اوکه د اقامت ختمیدونه پس ئے مونځ شروع که۔ نو هم خیر دے۔ هیڅ بدی پکښې نشته۔

**فائده** :- کوم وقت چه بنده له ارګے ورشی۔ او دے دغه وقت په خپل زړه کښې دا خبره نیره کی۔ چه پیغمبرانو ارګے نه دے کړے۔ نو وائی چه په دے سره ارګے دفعه کیږی۔

**مسئله** :- که مونځ د ماز یګرو۔ یا د سحر نو په مانځه پسے۔ اوکه د بل وقت و۔ نو پس د سنتونه مستحب دی چه درے پیرے اووائی أَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ وَأَتُوْبُ إِلَيْهِ ط بیا یو وار آیة الکرسی۔ بیا قُلْ هُوَ اللّٰهُ۔ قل اعوذ برب الفلق۔ قل اعوذ برب الناس۔ یو یو پیره۔ او درے دیرش پیرے سبحان الله۔ درے دیرش پیرے الحمد لله۔ څلور دیرش پیرے الله اکبر۔ بیا دے اووائی۔ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ط

| د قرأت بیان | **مسئله** :- که حالت د سفر و۔ یا بل څه ضرورت پیښ و۔ |
|---|---|

د سورة فاتحه نه پس هر یو سورة یا آیتونه چه لولی۔ خوښه ئے خپله ده۔ اوکه حال د سفر او د ضرورت نه و۔ بیا د صبا او د ماسپښین په مانځه کښې طوالِ مفصّل د ماز یګر او د ماسخوتن په مانځه کښې اوساطِ مفصّل۔ او د ماښام په مانځه کښې قِصارِ مفصّل لوستل سنت دی۔

د سورة حجرات نه د سورة بروج پورے چه څه سورتونه دی۔ هغه ته طوالِ مفصّل ویلے شی۔ او د وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ نه د لَمْ يَكُنْ پورے اوساط مفصّل۔ او د إِذَا زُلْزِلَتْ نه د سورة وَالنَّاس پورے قصار مفصّل۔ نو مطلب دا شه چه د صبا په مانځه کښې هغه سورة لوستل پکار دی۔ چه داخل دی په طوال مفصّل کښې۔ او د باقی مونځونو دا خله۔

---

۱؎ شامی ۱۲ ۲؎ مراقی و درمختار ۱۲ ۳؎ فتاوی هندیه ۱۲

**مسئله**[1] :- سورتونه څرنګ چه په قرآن شریف کښې وړاندے ورستو لیک دی په مانځه کښې په هغه ترتیب سره لوستل پکار دی۔ او دَ عَمَّ یَتَسَآءَ لُوْنَ په جدا مستقله سیپاره کښې چه څه رنګ درج دی۔ هغه ترتیب صرف دَ ځینو دَ آسانئ دَ پاره ایخے شوے دے۔ په مانځه کښې دَ هغه ترتیب اعتبار نشته۔ نو مطلب داشه۔ چه په اول رکعت کښې چه ئے کوم سورة لوستے دے۔ په دوئیم رکعت کښې دے وس هغه سورة لولی۔ کوم چه دَ هغه نه وروستے دے۔ مثلاً په اول رکعت کښې ئے قُلْ یٰاَیُّهَا الْکَافِرُوْنَ ولوست۔ نو وس دے په دوئیم کښې اِذَا جَآءَ یا قُلْ هُوَ اللهُ یا قُلْ اَعُوْذُ ولولی۔ او اِنَّا اَعْطَیْنَا او اَرَاَیْتَ الَّذِیْ وغیره کوم چه دَ قُلْ یٰاَیُّهَا الْکٰفِرُوْنَ نه وړومبی دی هغه دے نه لولی۔ ځکه چه داسے کول مکروه دی او دارنګ دَ دوو سورتونو په مینځ کښې یو مختصر سورة پریخودل[2] هم مکروه دی۔

**مسئله**[3] :- که په هیره سره ئے په اول رکعت کښې وروستنے سورة ولوست او په دوئیم کښې مخکښے۔ نو په دے کښې کراهت نشته۔ دارنګ که دَ دوو سورتونو په مینځ کښې ئے په هیره سره یو مختصر سورة پریخود۔ په دے کښې هم کراهت نشته۔ او په نفلو کښې دا دواړه خبرے بے کراهته جائزے دی۔ قصداً وی او که په هیره سره۔

**مسئله**[4] :- په مانځه کښې قصداً دَ ترتیب نه مخالف سورتونه لوستل۔ څرنګ چه مینه بیان شو مکروه دی۔ لیکن که ختم دَ قرآن شریف کاؤ په تراویح کښې او په اول رکعت کښې ئے قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ولوستل نو وس په دوئیم رکعت کښې دَ الحمد نه پس دَ سورة بقرآیتونه لوستے شی۔ کراهت په کښې نشته بلکه غوره دی۔

**مسئله**[5] :- که اراده ئے دَ فلانی سورة وه او خولے له ئے بل سورة راغے۔ یو آیت دوه ئے ولوستل۔ نو وس هغه پریخودل او بل شروع کول مکروه دی۔ کوم سورة چه ئے شروع کړے دے۔ بے ضرورته دے هغه نه پریږدی۔

**مسئله**[6] :- که په دوئیم رکعت کښې ئے هغه سورة ولوست کوم چه ئے په اول کښې لوستے دے۔ نو په دے کښې بدے نشته لیکن بے ضرورته بنه نه دی۔ مکروه تنزیهی دی۔

---

[1] شامی ۱۲ [2] او که سورة اوږد وو چه دوئیم رکعت بے ډیر اوږدیده دَ اول نه نو دَ هغه پریخودل مکروه نه دی شرح المنیه ۱۲ [3] رد المحتار ۱۲ [4] شرح المنیه ۱۲ [5] خلاصة الفتاوی ۱۲ [6] درمختار و شامی ۱۲

هاں که په اول رکعت کښی قل اعوذ برب الناس ولوست - او ختم دَ قرآن نه وُ - نو بیا ورله په دوئیم رکعت کښی بیا دغه سورة لوستل پکاردی -

**مسئله**[1] :- که په اول رکعت کښی ئے دَ یو سورة اوله حصه یا مینځ حصه ولوسته او په دوئیم رکعت کښی ئے دَ بل سورة اوله یا مینځنئ حصه ولوسته - نو صحیح خبره دا ده چه کراهت[2] پکښی نشته - خو غوره داده چه عادةً دا سے نکوی - او که په اول رکعت کښی ئے دَ سورة اوله حصه ولوسته او په دوئیم کښی باقی حصه نو دَ دے هم دا حکم دے - چه کراهت په کښی نشته - دارنګ که په[3] دواړو رکعتونو کښی ئے ددوؤ سورتونو آخری آخری حصه ولوسته - نو هم باک نه لری - خو په بعضے کتابونو کښی ئے په دے صورت کښی کراهت ذکر کړے دے -

**مسئله**[4] :- که قرأت ورله نه ورته - مثلاً وس وس مسلمان شوے وُ - نو چه دَ قرأت په ځائے سبحان الله سبحان الله وائی - فرض مونځ به ئے اداشی - بیا چه نور څه ورته یاد نه وی هغه له پکاردی چه په رکوع سجود تعده وغیره کښی هر ځائے سُبحَانَ الله سُبحَانَ الله وائی - لیکن دمانځه په ایزده کولو کښی دے مسلسل کوشش کوی - ورنه سخت گناه دے -

**مسئله**[5] :- دَ چارادیاره په ځائے دَ قرأت صرف زبه خوزول کافی دی - او دارنګ په ځائے دَ تکبیر تحریمه - لیکن دَ عالمانو اختلاف دے - چه ژبه خوزول وله ضروری ده که نه -

**مسئله**[6] :- امام صاحبؒ وائی چه په فرض مانځه کښی دَ الحمد نه پس دوه سورتونه لوستل زه نه غوره کوم - او په نفلو کښی څه خبره نشته -

**مسئله**[7] :- په مانځه کښی یو آیت لوستل فرض دی - نو په هر مکلّف باندے یو آیت یادساتل فرض عین شو - او الحمد او کم نه کم نور درے مختصر آیتونه واجب دی - نو دَ دے یادساتل په هر مکلّف واجب شو - او ټول قرآن مجید یادول فرض کفایه دی - غوره دی دنفلونه - او دَ فقهے حاصلول دَ دے دواړو نه افضل دی -

**مسئله**[8] :- په مانځه کښی امام له ډیراوږده اوږده سورتونه چه دَ مسنونه مقدار نه هم زیات وی - مکروه تحریمی دی - دارنګ په رکوع سجود وغیره کښی ډیر زیات ساعت تیرول

[1] شرح المنیه الکبیری ۱۲ [2] دا حکم هله دے که ددواړو سورتونو په مینځ کښی کم نه کم دوه سورتونه وی - او که یو وُ - بیا بے ضرورته مکروه دی ۱۲ منه [3] شرح التنویر وشامی ۱۲ [4] ردالمحتار ۱۲ [5] شرح التنویر ۱۲ [6] ردالمحتار ۱۲ [7] درمختار ۱۲ [8] شرح التنویر ۱۲

هم مکروه تحریمي دی. دَ مقتدیانو دَ ضعف او دَ ضرورت خیال ضروري دے. بلکه راوړی دی. چه په مقتدیانو کښې کوم سړے ډیر ضعیف وی. امام دے دَ هغه دَ حالت سره مطابق مونځ کوی. بے ځایه دے زیاتے نه کوی.

**مسئله**[۱]:- په دویم رکعت کښې دَ اول رکعت نه په قرأت کښې غیر معمولی زیادت کول مکروه دی. په اتفاق سره.

**مسئله**[۲]:- دَ امام دَ پاره دَ صبا په مانځه کښې په اول رکعت کښې دَ دویم رکعت نه اوږد قرأت مسنون دے. او دَ نورو وختونو دواړو رکعتونو دَ شیخینو[رح] په نزد په قرأت کښې برابر پکار دی. هاں که غیر معمولی زیادت پکښې راغے نو کراهت په کښې نشته. او دَ امام محمد[رح] صاحب په نزد دَ اول رکعت قرأت دَ دویم نه اوږد پکار دے. ځینې عالمانو فتویٰ دَ شیخینو په قول ورکړې ده. او ځینې دَ امام صاحب[رح] په قول.

**مسئله**[۳]:- که امام دَ یو مقتدی دَ رارسیدلو په خاطر قرأت یا رکوع یا قعده اخیره اوږده وی. نو دا مکروه تحریمي دی. لیکن که سړے ئے نه پیژنده خو صرف دَ تکثیرِ جماعت په خاطر ئے داسے وکړه نو خیر دے.

**مسئله**[۴]:- که زید دَ سحر یا دَ ماښام یا دَ ماسختن فرض مونځ یواځے شروع که او قرأت ئے په پټه کاوُ. په دے دوران کښې ورپسے بل سړی اقتدا وکړه. لیکن زید نیت دَ امامت ونکه. یعنے په زړه کښې ئے دا رانه وستل چه زه اوس امام شوم. بلکه ځان ئے هغه شان منفرد حسابه وُ. نو په ده بانده قرأت په زوره واجب نه دے. او دَ دغه مقتدی مونځ ورپسے هم صحیح دے. ځکه چه دَ مقتدی دَ مانځه دَ صحت دَ پاره دا ضروری نه ده. چه امام ئے نیت دَ امامت وُکی

**مسئله**[۵]:- که په تیره شوے مسئله کښې زید مینه څه قدرے فاتحه لوستے وه. په پټه. یا دَ سورة فاتحه نه پس ئے څه قدرے سورة په پټه لوستے وُ. په داسے حال کښې ورپسے بل سړی اقتدا وکړه. او زید هم نیت دَ امامت وکه. نو دا خو معلومه خبره ده چه دَ سحر په دواړو رکعتونو کښې او دَ ماښام او دَ ماسختن په اولو دواړو رکعتونو کښې امام له په زوره قرأت واجب دے. پس په دے صورت کښې به زید الحمد دَ سره را اخلی په جهر سره. او که نه څومره قرأت چه ئے کړے دے دَ هغې راګرځولو نه ضرورت نشته. خو باقی به په زوره وائی. نو په دے کښې دَ عالمانو اختلاف دے. په بعضے کتابونو کښې ئے اوله طریقه

---

[۱] تنویر الابصار ۱۲ [۲] در مختار و شامی ۱۲ [۳] شرح التنویر ۱۲ [۴] شرح التنویر ۱۲ [۵] شرح التنویر رد المحتار ۱۲

راوړې - او په بعضو کښې دومره - او دارنګ بیان دے په دغه صورت کښې چه امام په هیره سره
په جهری مونځ کښې الحمد په پټه لولی تول یا څه حصه - او بیائے یاد شی - نو څینې عالمان وائی
چه د لوستے شوے حصے اعاده به کوی په جهر سره - او څینې وائی چه نه - بلکه باقی به په جهر سره پوره
کوی -

**مسئله**:- که په سری مونځ کښې ئے مثلاً څه حصه د سورة فاتحے په جهر سره
ولوسته - بیائے یاد شو - نو وس به باقی په پټه وائی -

**د قرأت غلطی**

په قرأت کښې خطائی په ډیر قسمه ده - ځکه چه یا به ئے خطائی راوستے وی په
اعراب کښې یعنے په زور زیر پیښ کښې - یا په غورندی کښې - یا به ئے د تشدید په ځائے تخفیف
کړے وی - یا تخفیف په ځائے تشدید - یا د مد په ځائے قصر - یا د قصر په ځائے مد - یا به ئے
خطائی راوستی وی په حرفونو کښې - یعنے د یو حرف په ځائے به ئے بل حرف لوستے وی - یا
به ئے یو حرف زیات کړے وی - یا به ئے کم کړے وی - یا به ئے پکښې تقدیم تاخیر راوستے
وی - یا به ئے غلطی کړے وی په کلمو کښې - یا په جملو کښې - دارنګه یا په وقف او غیر وقف کښې
نو هر قسم غلطی چه وی د متقدمینو په نزد عامه قاعده داده چه په دغه خطائی سره
که په معنے کښې داسے تغیر راشی چه د هغے اعتقاد کفر وی - نو مونځ به ئے فاسد یږی -
برابره خبره ده چه د دغه لوستی شوی لفظ مثل په قرآن شریف کښې چرته موجود
وی او که نه (لیکن که تبدیلی ئے صرف د جملو کړے وو - او د هغے په مینځ کښې ئے په وقف تام
سره فاصله راوستے وه نو بیا نه) او که په دغه خطائی سره ئے په معنے کښې دومره تغیر
نه راشی چه اعتقاد ئے کفر وی - نو وس به ګورو - که چرے مثل ئے په قرآن مجید کښې موجود
وی او معنے بعیده وه - تغیر فاحش وی - نو په دے سره هم مونځ فاسد یږی - لکه د "هذا
الغراب" په ځائے "هذا الغبار" ووے - او دارنګ که مثل ئے په قرآن مجید کښې نه وی -
او څه معنے ورلره هم نه وه - لکه د "سرائر" په ځائے ئے "سرائل" ووے - نو هم دغه
حکم دے - او که مثل ئے په قرآن مجید کښې وی - او معنے بعیده وه - خو تغیر فاحش نه وی - نو د
طرفینو په نزد په دے صورت کښې مونځ فاسد یږی - او په دے کښې احتیاط دے - او
بعضے مشائخ وائی چه نه فاسد یږی - ځکه چه بلوی عامه ده - او دا قول دے د امام ابو یوسف رح
او که مثل ئے په قرآن مجید کښې موجود نه وو - او معنے ئے نه بدلیده - لکه د "قوامین"
په ځائے "قیامین" ووے - نو د طرفینو په نزد ئے مونځ نه فاسد یږی - او د امام ابو یوسف رح

---

[1] شامی ۱۲ [2] فتح القدیر و شرح المنیه و شامی ۱۲

صاحب په نزد فاسد یږي. نو مطلب داشه. چه معنیٰ که ډیره نه متغیره کیده. نو دَ امام ابویوسف صاحبؒ په نزد به بې مونځ هله نه فاسد یږي. چه دَ هغې مثل په قرآن شریف کښې موجود وي. اودَ طرفینو په نزد هله چه په معنیٰ کښې ئې موافقت وي.

دا قول قواعد څمونږ دَ متقدمینو عالمانو په نزد دي. او څمونږ متاخرین عالمان وائي چه خطائي که په اعراب کښې وه نو هر څنګه چه وي مونځ بې نه فاسدیږي. ځکه چه عوام په زور زیر پیښ وغیره کښې پوره پوره امتیاز نشي کولې. او په قاضي خان کښې ئې راوړي دي. چه دَ متأخرینو قول وسیع دے. او دَ متقدمینو په خبره کښې احتیاط دے. او که خطائي دَ یو حرف په بدلولو سره وه په بل حرف. نو که دَ دغه دوؤ حرفونو په مینځ کښې جدائي بې تکلیفه کیدے شوه. لکه صاد (ص) او طے (ط) وغیره مثلاً دَ صالحات په ځائے طالحات او وے. نو دَ دي اتفاق دے چه مونځ بې فاسدیږي. او که دَ دواړو حرفونو په مینځ کښې جدائي ګرانه وه. لکه تے او طے وغیره نو اکثر وائي چه نه فاسدیږي. ځکه چه بلوئ عامه ده.

دَ ذلّة القاري بیان په مختصره طریقه سره و لیکلے شه. خو دا بیان تفصیل طلب دے. جزئیات ئې ډیر دي. لهٰذا که چرې دا سے موقعه راغله. نو یو مستند عالم ته دې رجوع وکړے شي.

**فائده** :- په قرآن کښې دَ جمع دَ واؤ نه پس چه الف راشي هغه نه لوستے کیږي. لکه قالُوا. اٰمَنُوا. وغیره. او نور اتلس[ل] مقامات هم داسے دي چه په رسم الخط کښې الف لیکلے کیږي. لیکن الف نه لوستل ضروري دي. دَ آسانئ دَ پاره په لاندې نقشه کښې درج دي.

| نمبرشمار | سیپاره اورکوع اوآیت | نمبرشمار | سیپاره اور کوع اوآیت |
|---|---|---|---|
| ۱ | دَ آلِ عمران شروع " الٓمٓ اِ ﷲ " | ۷ | ومامن دابة رکوع ۲ ۵ " ثمُوْدَ اِ " |
| ۲ | لن تنالوا رکوع ۲ ۵ " اَفَاْئِن مَّاتَ " | ۸ | وماابرئ رکوع ۱۰ ۵ " تَتْلُوَاْ " |
| ۳ | " رکوع ۸ ۵ لَاِ اِلَى اللهِ " | ۹ | سبحٰن الذی رکوع ۱۴ ۵ " لَنْ نَّدْعُوَاْ " |
| ۴ | لایحب رکوع ۹ ۵ " تَبُوْءَ اِ " | ۱۰ | " رکوع ۱۶ ۵ " لِشَایْءٍ " |
| ۵ | قال الملاُ رکوع ۳ ۵ " مَلَاْئِهٖ " | ۱۱ | " رکوع ۱۷ ۵ " لٰکِنَّا " |
| ۶ | واعلموا رکوع ۱۳ ۵ " لَاِ اَوْضَعُوْا " | ۱۲ | وقال الذین رکوع ۱۷ ۵ لَاِ اَذْبَحَنَّهٗ " |

[ل] او دَ تفصیلي قواعد وځائے علم تجوید او علم قرأت دے ۱۲ منه

| نمبر شمار | سیپاره او رکوع او آیت | نمبر شمار | سیپاره او رکوع او آیت |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱۳ | سورهٔ حجرات رکوع ۲ ه ۱ "بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ" | ۱۶ | سورهٔ نجم رکوع ۳ ه ۱۹ " ثَمُودَا " |
| ۱۴ | ومالی رکوع ۶ ه ۴ " لَاِلَی الْجَحِیْمِ " | ۱۷ | سورهٔ دهر رکوع ۱ ه ۴ " سَلٰسِلَا " |
| ۱۵ | سورهٔ محمدؐ رکوع ۴ ه ۳ " نَبْلُوَا " | ۱۸ | " رکوع ۱ ه ۱۵ " قَوَارِیْرَا۟ قَوَارِیْرَا " |

**دَجماعت بیان** | دَپنځهٔ وقته فرض مونځ دَپاره جماعت کځے والیٔ چه سنت موکده دے او ځینے والیٔ واجب - خوغوره قول دَ وجوب دے - لیکن وجوب ئے په هغه چا دے چه درے شرایط ورپکښې موجود وی۔

یُو دا چه نارینه وی - ځکه چه په ښځهٔ واجب نه دے - دوئیم دا چه آزاد سړے وی۔ په مریٔ واجب نه دے - دریئم دا چه دَعذر نه خالی وی - او که عذر موجود وُ نو جماعت پے واجب نه دے - لیکن که سره دَ دغه عذر نه ئے مونځ دَ جماعت وکه نو بهتره ده او هغه عذرونه دادی :-

(۱) لاسونه او خپے ئے پریکړی شوی وی - یا دَ کاره وتی وی - یا ړوند وی - یا مریض - یا عُمر خوړلے یا فالج وهلے یا ګوډ چه تلے راتلے نه شی۔

(۲) دَجماعت په لار کښې دومره خټے وی چه تله راتله پکښې ګران وی - لیکن امام ابویوسف صاحبؒ وائی چه ما په دے بابت کښې دَ امام اعظم صاحبؒ نه تپوس وکه - نو په جواب کښې ئے وفرمائیل - چه جماعت پریخودل زه نه خوښوم۔

(۳) دَ سخت باران وریدو په حالت کښې هم که جماعت له نه ځیٔ نو اجازت خوشته۔ لیکن پریخودل ئے ښه نه دی۔

(۴) زبردسته یخنی وی - چه جمات له په تللو راتللو کښې خوف وی دَ ناجوړه کیدلو۔

(۵) بے نهایته تیاره وی - د تللو راتللو رڼښی لیدے - لیکن که انتظام ئے کیدے شه نو بیا دے جماعت نه پریدی۔

(۶) شپه وی او بے اندازه سیلیٔ۔

(۷) جمات ته په تللو کښې دَ مال و اسباب دَ غلا کیدو نویره وی - یا دَ دشمن خطره۔

(۸) جمات ته په تللو کښې ئے دقرض خواه دَ نیولو خوف وی - او حال داوی چه دے وی تنګ سنت - او که نه وی نو دے ظالم دے - بیا ورله دَ جماعت پریخودلو اجازت نشته۔

(۹) دَ ډُوډئے نه ئے ټول فکر په طعام کښې وی - او طعام راوړے شوے وی - یا راوړے کیدونکے۔

---

له درالمختار ورد المحتار ۱۲

(۱۰) دَ مریض په تیمارداری کښې مشغوله وی - او په یوازے پریخودلو کښې ئے اندیښه وی -

(۱۱) واره یالوئے بول په زوره ورغلی وی -

(۱۲) اراده ئے وی دَ سفراو دَ جماعت په انتظار کښې ئے دَ قافلے یا دَ ګاډی وغیره یا دَ ملګرو روانیدلو یره وی -

(۱۳) دَ سترعورت دَ پاره ورځمه څه ز پوکے وغیره نه وی -

**مسئله** :- جماعت کم ازکم په دوو تنوسره کیږی - یعنے یو امام یو مقتدی - نو په امام لپسے صرف یوتن نیت وتاړه - برابره خبره ده چه سړے وی اوکه ښځه - مریئے وی اوکه آزاد - بالغ وی اوکه نابالغ - لیکن وی هوښیار - نو جماعت کیږی - او دَ جمعے او دَ اختر په مانځه کښے دَ جماعت دَ پاره کم ازکم درے کسان ضروری دی - سوا دَ امام نه -

**مسئله** :- دَ جمعے او دَ اختر دَ پاره جماعت شرط دے - ځکه چه دا مونځو نه یوازے نه شی اداکیدے - او دَ تراویح دَ پاره سنت کفایه دے - او دَ رمضان په وترو کښې مستحب دے - او دَ رمضان نه سوا دَ بل وقت په وترو کښې مکروه - لیکن بعضے عالمان وائی چه دَ اهتمام صورت ئے نه وی نو بیا مکروه نه دی - او دَ نفلو جماعت مکروه تحریمی دے - خو هله که په اهتمام سره دَ - یعنے په اذان او اقامت سره - یا په بله ذریعه ورله خلق رابللے کیده - اوکه داسے نه وه - بلکه بے دَ اهتمام نه یوتن دوو په نفل کونکی پسے نیت دَ نفل وتاړه - نو خیر دے خو دوام دے پے نه کوی -

**مسئله** :- په جمات کښې دَ یو وقت دَ فرض مونځ دویم جماعت مکروه تحریمی دے خو هاله که درے خبرے وی - **یوه** داچه دَ اول جماعت دَ پاره بانګ او اقامت با قاعده او چت آواز سره شوے وی **دوهمه** داچه اول جماعت دَ دغه محلے باشندګانو اداکړے وی یعنے دَ چا په تصرف کښې چه دغه جمات وی هغو **دریمه** داچه جمات په عام رهګذر کښې نه وی بلکه دَ محلے وی - یعنے امام او مقتدی ئے معلوم وی - نو که جمات دَ محلے نه دَ - بلکه په عامه لار کښې دَ - یا دَ دَ محلے خو اول جماعت په کښې راهرو انو اداکړے دَ - یا دَ هغه ځائے کسان دَ خو بانګ او اقامت ئے نه دَ کړے - یا کړے ئے دَ - خو نه په جهر سره - نو په دے ټولو صورتونو کښې بل جماعت بے کراهته جائز دے - او امام ابو یوسف صاحبؒ دَ بل جماعت دَ کراهت دَ پاره دا خبره هم ضروری ګڼلے ده - چه اول جماعت په کوم هیأت سره اداکړے شوے دے - دا دویم جماعت هم په هغه هیأت سره اداکړے شی - نو که هیأت بدل کړے شه - مثلاً

---

له شامی ۱۲ سه شرح التنویر و ردالمحتار ۱۲ سه درمختار و شامی ۱۲

دَدویم جماعت امام په محراب کښې نه وُولاړ- بیا په کښې کراهت نشته - او دے قول ته صحیح ویلی شوی دی - او دَنن ورزے دَ اکثرو خلقو عمل رَآمد هم په دے دے - چه جماعت ثانیه کوی

**مسئله[۱]**:- دَ ښځو جماعت کول مکروه تحریمی دی - او که کوی ئے نو امامه ښځه به دَ ښځو په مینځ کښې ودریږی - نه په مخکښې-

**مسئله[۲]**:- دَ ښځو جماعت مکروه تحریمی دے - لیکن که مونځ دَ جنازے وُ - او صرف ښځے وے - سړے هیڅ نه وُ- چه مونځ دَ جنازے وکی - نو بیا به دغه ښځے دَ جنازے مونځ په جماعت سره کوی -

**مسئله[۳]** دُ رستنو عالمانو فتویٰ په دے خبره ورکړے ده - چه ښځے دے جماعتونو ته نه حاضریږی - اګر که جماعت دَ جمعے وی - یا دَ اختر - یا عام مجلس وی - دَ وعظ وغیره ځکه چه دَ عامو خلقو حالات خراب شوی دی - دَ فتنے یره ده -

دَامامت بیان[ع] | دَ تندرستو سړو دَ امامت دَ پاره شپږ شرطونه دی - که یو پکښې فوت شه نو امامت ئے صحیح نه دے - **یو** شرط اسلام دے - نو دَ کافر امامت نه صحیح کیږی - **دویم** بلوغ دے - **دریم** عقل دے - نو دَ لیونی امامت نه صحیح کیږی - په حالت دَ لیونتوب کښې - **څلورم** دا دے چه نارینه وی - **پنځم** قرأت دے - نو چا چه اُمی سړے دَ قاری امامت نه شی کولے - **شپږم** شرط دا دے چه معذور نه وی - یعنے دَ وړو بولو بیماری یا دَ زخم بینولو عارضه وغیره وغیره ئے نه وی - کوم چه په کتاب دَ طهارت کښې بیان شوے دا شپږ شرطونه دَ هغه چا دَ پاره دی چه امامت کوی دَ تندرستو سړو - نو که جماعت دَ ښځو وُ - دَ هغوی دَ امامت دَ پاره سړے ضروری نه دے - او که جماعت دَ نابالغو وُ - نو بالغ والے ورله ضروری نه دے او که جماعت دَ معذورینو وُ - نو دغه رنګ خالی والے ورله ضروری نه دے - خو دومره ضروری ده چه دَ امام حال قوی وی دَ مقتدی نه - یا ورسره برابر وی - باقی تفصیل ئے په راتلونکی باب کښې بیان شی -

**مسئله[۴]**:- دَ ټولونه اول دَ امامت مستحق هغه سړے دے چه دَ مانځه مسئلے

---

[۱] درمختار ردالمحتار ۱۲ [۲] درمختار وشامی - [۳] نورالایضاح ۱۲ [۴] درمختار وشامی ۱۲

[ع] امامت په دوه قسمه دے یو کبریٰ بل صغریٰ - امامت کبریٰ ریاست عامه ته وائی یعنے دَ خلقو دینی او دنیوی مصالح دَ پاره مشری په طور دَ نیابت دَ نبی صلی الله علیه وسلم - او امامت صغریٰ دَ مانځه امامت ته ویلے شی - په هغے کښې دَ مقتدی مونځ دَ یو څو شرطو په ذریعه دَ امام دَ مانځه سره تړلے وی - او دا ځائے دَ امامت نه مراد امامتِ صغریٰ دے بس ۱۲

منه

ورته ښې معلومے وی - او څومره قدر قرأت چه مسنون دے - هغه ورته یاد وی - او قرآن شریف صحیح لولی - او ظاهراً دَ فسق څه خبره ورکښې نه وی - بیا هغه سړے چه قرآن شریف ښه لولی - یعنې قرأت ئې دَ قاعدے سره مطابق وی - بیا هغه سړے چه زیات وی په پرهیزګاری کښې - بیا هغه سړے چه عُمر ئې زیات وی - بیا هغه سړے چه خوئے خصلت ئې ډیر ښه وی - بیا هغه سړے چه ښکلے وی - بیا هغه سړے چه په شرافت کښې زیات وی - بیا هغه سړے چه خوش آوازه وی - بیا هغه سړے چه ښځه ئې ښایسته دَ وی (یعنې دَ ده به غالباً ډیره خوښه وی - نو پردو ښځو ته به نه ګوری - نو په پاکدامنئ کښې زیات شه - او دا معلومیدے شی دَ خپلوانو او دَ ګاونډیانو په ذریعه سره) بیا هغه سړے چه مال زیات لری - بیا هغه سړے چه رُعب او وقار ئې زیات وی - بیا هغه سړے چه جامے ښې اغوندی - بیا هغه سړے چه سر ئې غټ وی - خو په اندازے سره - او مقیم غوره دے دَ مسافر نه - او چا چه تیمّم دَ او دس کړے وی - هغه غوره دے دَ هغه چا نه چه تیمّم کړے وی دَ غسل - لیکن ځینې عالمان وائی چه دَ غسل تیمّم کونکے غوره دے دَ او دا سه دَ تیمّم کونکی نه -

**مسئله** [1]:- څوک چه عالم دَ مسئلو وی - او قرآن شریف هم صحیح لولی - هغه غوره دے - دَ هغه چا نه چه عالم نه وی او قرأت ښه کوی - یا خوش آوازه وی یا حافظ وی مثلاً - او په مذکوره مسئله کښې چه دَ غوره والی کوم صفتونه ذکر شوی دی - که په هغې سره امتیاز نه راشی او دَ مذکوره صفتونو سره مطابق مستحقین ګنړ وی نو فیصله به ئې په خسنړی سره کیږی - یا دَ قوم په کثرتِ رائے سره -

**مسئله** [2]:- دَ کوم جُمات چه خپل امام مقرر وی - دَ هغه په موجود والی کښې بل سړے دَ امامت مستحق نه دے - بلکه هغه مقدم دے دَ نورو نه - دارنګه دَ چا په کور کښې جماعت کیده - او صاحب خانه قابل دَ امامت وُ نو هغه دَ نورو نه زیات مستحق دے - اګر که نورتے په علم او په قرأت کښې ښه دی - او که صاحب خانه وکلید - بل ئې مخکښې که په سبب دَ علم یا دَ مشر والی وغیره - نو بیا هغه غوره دے -

**مسئله** [3]:- که بادشاه اسلام یا شرعی حاکم یا قاضی حاضر وُ - نو دَ امامت حق ده لره دے - او که دوئ قبول نو ځائے شو - نو مینه حق دَ بادشاه

---

[1] در مختار وشامی ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] در المختار ورد المحتار ۱۲

دے۔ بیا دُحاکم۔ بیا دَ قاضی۔ نو دی دَ ټولو نه مخکښې دی دَ صاحب خانه نه۔ او دَ جماعت دَ امام نه هم مخکښې دی۔

**مسئله**[۱] :- که قوم تے ناراضه وُ۔ او امامت ئې ورله کاوُ۔ نو دا مکروه دې هاں[۲] که په نه څه خبره تے څه کسان ناراضه وُو۔ لکه نن زمان چه په اکثرو ځایونو کښې دا حال دے۔ نو دا دَ غه کسانو خود غرضی ده۔ امام له پکښې هیڅ کراهت نشته وبال په دوئ دے۔ بلکه قوم که دَ هغه نه ټول ناراض وُو۔ او دے اَحَقُّ بِالْاِمَامَتْ وُ۔ نو هم پکښې ده لره کراهت نشته۔ بلکه غلطی دَ قوم ده۔

**مسئله**[۳] :- دَ فاسق او بدعتی امامت مکروه دے۔ بلکه بعضو کتابونو کښې داوړی دی چه مکروه تحریمي دی۔ هاں که دَدی نه سوا بل سړے قابل دَ امامت وُ نه۔ بیا کراهت نشته۔ دارنګ که بل سړے خو موجود وُ۔ لیکن دَ دغه فاسق بدعتی لرے کول ګران وُو۔ یا په معزوله کولو کښې فتنه برپا کیده۔ بیا هم په مقتدیانو کراهت نشته۔

**مسئله**[۴] :- دَ مریٔ امامت مکروه تنزیهي دے۔ اګر که هغه آزاد کړے شوے وی دارنګ دَ بانډه چی سړی۔ اودَ ړوند او دَ شمکور چه احتیاط دَ پاکئ او ناپاکئ نه کوی۔ او دَ ولد الزنا یعنے دَ حرامی امامت هم مکروه تنزیهي دے۔ هاں! که دی علم او فضل لرونکی وُو۔ او دَ خلقو خوښ وو بیا کراهت نشته۔

**مسئله**[۵] :- دارنګ مکروه تنزیهي دے۔ امامت دَ بے وقوفه سړی او دَ فالج زده او دَ ابرص چه برص ئې زیات وی۔ او دَ بی لاسی او دَ کوډ چه په پوره خپه نه او دریږی او دَ نوجوان هلک چه بیره ئې نه وی راختلے۔

**مسئله**[۶] :- سړی له په کور کښې یوازے دَ ښځې امامت کول مکروه تحریمي دی لیکن که بل سړے ورسره وُ۔ یا دَ ده ښځه یا دَ ده محرمه لکه خور مور وغیره ورسره وه۔ نو بیا مکروه نه دے۔

**دَ اقتدا صحیح کیدلو شرطونه**

دَ اقتدا صحیح[۷] کیدلو دَ پاره یوولس شرطونه دی۔ که په دے کښې یو شرط فوت شه۔ نو اقتدا صحیح نه ده۔ یو[۱] شرط دا دے۔ چه مقتدی دَ مانځه دَ نیت سره په امام پسے نیت دَ اقتدا هم وکی۔ یعنے په زړه کښې اراده وکی۔ چه دَ نن فلانی وقت مونځ کوم ادا رم په دے حاضر امام پسے۔ دویم[۲] شرط دا دے چه دَ

---

۱ه قاضی خان ۱۲ ۲ه یعنے بلا وجه شرعی ۱۲ ۳ه درمختار و شامی ۱۲ ۴ه شرح التنویر ۱۲ ۵ه شرح التنویر ۱۲ ۶ه شرح التنویر ۱۲ ۷ه ردالمحتار ۱۲

امام او د مقتدی مکان یعنی ځائے یو وی۔ برابره خبره ده۔ چه په حقیقت کښې یو وی۔ یا په
حکم کښې د یو وی۔ د اول مثال دادے چه امام او مقتدی دواړه وی په یو جُمات کښې یا
په یو کور کښې مثلاً۔ او د دویم مثال دادے چه مثلاً امام د دریاب په یوه غاړه وی۔ او څه
مقتدیان په بله غاړه۔ او دوئ په مینځ کښې په پل باندے هم باقاعده صفونه ولاړ وی
نو په دے صورت کښې اګر که د دغه امام او د راپورے مقتدیانو په مینځ کښې دریا واقع
دے۔ پس مکان ئے جدا جدا دے۔ لیکن په مینځ کښې صفونه ولاړ دی۔ له دے وجے
نه د امام او د راپورے مقتدیانو مکان حکماً یو شه۔ نو دا اِقتدا صحیح ده۔ مونځ
ئے کیږی۔

مسئله ۱:- که مقتدی د جُمات په چت ولاړ وُ۔ او امام په جُمات کښې دننه
او د چت دروازه جمات ته وه۔ او د امام حال نه مشتبه کیده۔ نو دا اِقتدا صحیح
ده۔ ځکه چه د دواړو مکان حکماً یو دے۔

مسئله ۲:- که جماعت ئے په ځنګل کښې کاؤ۔ او د امام او د مقتدیانو په
مینځ کښې دومره خالی میدان وُ۔ چه دوه صفه پکښې راتلے شو۔ نو دا دواړه ځایونه
یعنی کوم ځائے چه امام ولاړ دے۔ او کوم ځائے چه دا مقتدیان ولاړ دی۔ دا دواړه
ځایونه به غیر غیر ګڼړلے شی۔ نو د دی اقتدا صحیح نه ده۔ او جُمات ټول یو مکان دے۔
لیکن که بے نهایته لوے وُ۔ نو حکم ئے په شان د ځنګل دے۔ خو بعضے وائی چه نه۔
او دارنګ حکم دے د کور۔

مسئله ۳:- دارنګ که د امام او د مقتدی په مینځ کښې یو دومره نهر وُ۔
چه په هغے کښې کشتئ تلے شوه۔ یا عامه لاروه چه په هغے کښې د غوانو کاړی وغیره
تلے شو۔ او کم نه کم د دریو سړو صف په کښې نه وُ۔ نو دا دواړه مکانونه به جدا جدا
ګڼړلے شی۔ نو د دی اقتدا صحیح نه ده۔ دارنګ حکم دے د هغه دوؤ صفونو چه
په مینځ کښې ئے مذکوره نهر یا حوض یا عامه لار واقع وی۔ نو د راپورے صف اقتدا
صحیح نه ده۔

مسئله ۵:- که د صفونو په مینځ کښې ده در ده حوض واقع وُ۔ نو که چاپیره
تے باقاعده صفونه متصل وُو۔ د راپورے مقتدیانو اقتدا هم صحیح ده۔

مسئله ۶:- د پیاده سړی اقتدا په سور لیسے صحیح نه ده۔ او دارنګ د سور په

ـه عالمګیری ۱۲ ـه شرح التنویر و رد المحتار ۱۲ ـه درمختار و شامی ۱۲ ـه شامی ۱۲ ـه شرح التنویر ۱۲ ـه یعنی لس په لس ۱۲

پیاده پسے - او دَ بُوسوړ په بل سور پسے - ځکه چه دَ دواړو مکان متحد نه دے - هاں که دواړه په
په یو اَس وغیره سواره وُو - بیا صحیح ده۔

**دریم**[۱] شرط دا دے چه دَ امام او مقتدی مونځ غیر غیر نه وی - که غیر غیر وُ
نو اِقتدا صحیح نه ده - مثلاً امام دَ ماز یګر مونځ کاوُ - او مقتدی دَ ماسپخین - یا امام
دَ نننی ماسپخین مونځ ادا کاوُ - او مقتدی دَ پرونی ماسپخین مونځ قضا داوه - یا
امام دَ پرونی ماسپخین قضا مونځ کاوُ - او مقتدی دَ نننی - نو دا اقتدا صحیح نه ده -
هاں که دواړو دَ نننی ماسپخین مونځ کاوُ - یا دواړو دَ پرونی ماسپخین قضا مونځ کاوُ
نو بیا اقتدا صحیح ده - او په فرض کُونکی پسے دَ نفل کُونکی اقتدا صحیح ده۔

**مسئله**[۲] :- که مقیم په مسافر پسے څلور رکعته فرض وکړه - او مسافر څلور رکعته
پوره وکړه - حال داوُ چه نیت دَ اقامت ئے لا نه وُ کړے - نو دَ مقتدی مونځ ورپسے وُنشه
ځکه چه آخری دوه رکعته په حق دَ امام کښې نفل شو - او په مقیم څلور رکعته فرض دی
او په نفل کُونکی پسے اقتدا دَ فرض کُونکی صحیح نه ده -

**مسئله**[۳] :- که دَ یوے ورځے دَ ماسپخین یا دَ ماز یګر یا دَ ماسختن مونځ قضا
شوے وُ - دَ مقیم او دَ مسافر بیائے قضا راګرزاوُ - نو په دغه مانځه کښې دَ مسافر
اقتدا په مقیم پسے صحیح نه ده - ځکه چه دَ ادا په وقت کښې احتمال شته - چه مسافر
نیت دَ اقامت وکی - لیکن چه قضا شه - نو اُوس خو دَ هغه په حق کښې قصر متعین شو یدے

**مسئله**[۴] :- که مقتدی تراویح کول غواړی او په نفل کُونکی پسے یا په فرض
کُونکی پسے نیت تړی دا اِقتدا صحیح نه ده -

**مسئله**[۵] :- دَ نذر مونځ چه کول غواړی په دے مانځه کښې اقتدا په فرض کُونکی
پسے صحیح نه ده - دَ نذر مونځ دا دے چه مثلاً سړی ویلی وی - که څما فلانے کار وشه نو
زه به څلور رکعته نفل کوم - بیائے کار شوے وی - نو دا څلور رکعته پے وس واجب دی

**څلورم**[۶] شرط دَ امام دَ مانځه صحیح والے دے - او مقتدی به دَ امام مونځ صحیح ګنړی
نو که دَ امام مونځ ناسده شه او دا ته معلومه شوه - نو دَ ده مونځ هم فاسد شه - برابره
خبره ده چه دا فساد په مانځه کښې معلوم شوے وی - او که پس - لکه دَ امام په بدن
یا په جامه نجاست غلیظه لګیدلے وُ - زیات دَ یو درهم نه - بیا ورته په مانځه کښې
یا پس دَ سلام نه معلومه شوه - یا دَ امام او دس نه وُ - بیائے یادشو په مانځه

[۱] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [۲] شامی ۱۲ [۳] درمختار و شامی ۱۲ [۴] شرح التنویر ۱۲ [۵] شرح التنویر ۱۲ [۶] درمختار ورد المحتار ۱۲

کښې یا دَ مانځهٔ نه ورستو۔

**مسئله**:۔ که دَ امام مونځ په څه وجه فاسد شه۔ نو هغه له پکار دی چه دَ هغې اطلاع مقتدیانو ته وکی۔ دَپاره دَ دے چه هغوئی ئے راوګرځوی۔ برابره خبره ده چه اطلاع دَ سړی په ذریعه کوی۔ یا په ذریعه دَ خط۔

**پنځم** شرط دا دے چه په مانځهٔ کښې ورسره محاذات دَ ښځې نه وی راغلے۔ که بے دَ جنازے دَ مانځهٔ نه په بل شریک مونځ کښې ورسره محاذات راغے۔ او امام په شروع کښې دَ ښځې دَ امامت نیت هم کړے وُو دَ دے سړی مونځ فاسد شه۔ دکوم سره چه محاذات راغلے۔ او که امام په شروع کښې نیت دَ امامت دَ ښځې نه وُ کړے۔ نو صرف دَ ښځې مونځ وُنه شه۔ او دا مسئله به په تفصیل سره بیان شی۔

**شپږم** شرط دا دے چه مقتدی دَ امام نه مخکښې نه وی ولاړ۔ او مخکښې دریدو نه به هله ګڼړے شی چه پونده ئے دَ امام دَ پوندے نه مخکښې وی۔ او که پونده ئے نه مخکښې نه وه۔ خو دَ قدم دَ اوږدوالی په وجه ئے ګوتے دَ امام دَ ګوتو نه مخکښې وے۔ یا دَ قد دَ اُوچتوالی په وجه ئے په سجده کښې سر دَ امام دَ سرنه وړاندے وُ۔ نو خیر دے۔ څه حرج نشته۔ اقتدا صحیح ده۔

**اووم** شرط دا دے چه مقتدی ته دَ امام دَ انتقالاتو ریعنے دَ بنکته کیدو پورته کیدو) علم وی۔ برابره خبره ده چه دَ امام یا دَ بل مقتدی په لیدو سره وی۔ او که دَ امام یا دَ مکبّر آواز په آوریدو سره۔ او که مقتدی ته دَ امام دَ انتقالاتو علم نه وُ۔ په سبب دَ دے چه په مینځ کښې څه حایل وُ۔ یا بل څه وجه وه۔ نو اقتدا صحیح نه ده۔ اګر که په مینځ کښې څه حائل وی۔ لکه پرده وغیره۔ خو هله چه نور شرایط دَ اقتدا هم موجود وی۔

**اتم** شرط مقتدی ته دَ امام دَ حال معلوم والے دے۔ چه دے مقیم دے۔ او که مسافر۔ برابره خبره ده چه دَ مانځهٔ دَ فراغت نه مخکښې ورته علم شوے وی۔ او که پس۔ خو دا معلوم والے په هغه صورت کښې ضروری دے۔ چه امام په ښار کښې یا په کلی کښې څلور رکعتی مونځ دوه رکعته وکی۔ نو پته نه لګی چه سهو شه او که مسافر دے

**نهم** شرط دا دے چه مقتدی په ټولو ارکانو دَ مانځهٔ کښې دَ امام سره شریک وی برابره خبره ده چه ورسره ئے اداکی۔ یا ورستو یا مخکښې۔ خو امام ورته رارسیدلے وی۔

---

له درمختار و ردالمحتار ۱۲ له درمختار و ردالمحتار ۱۲ له شامی ۱۲ له شامی ۱۲ له شرح التنویر و ردالمحتار ۱۲ له مراقی الفلاح ۱۲

دَ اول مثال دا دے چه مثلاً امام رکوع له لاړ نو دے ورسره هم یو ځائے رکوع له لاړ۔ بیا چه امام دَ رکوع نه سر اوچت که۔ ده ورسره هم اوچت که۔ او دوئیم مثال دا دے چه مثلاً امام رکوع وکړه۔ بیا د رکوع نه پا سیدو۔ بیا دے رکوع له لاړ۔ رکوع ئے پوره کړه۔ دَ دریم مثال دا دے۔ چه مثلاً دے دَ امام نه مخکښ رکوع له لاړ۔ او په رکوع کښ دومره ساعت حصاؤ شه۔ چه امام ورته هم راورسید۔ یعنے شرکت په رکوع کښ راغے۔

**مسئله**:۔ که دَ امام سره په یو رکن کښ شرکت فوت شه۔ مثلاً په امام پسے ئے نیت وتاړه۔ او قیام ئے اومنده۔ بیا امام رکوع وکړه۔ لیکن ده رکوع بالکل ونکړه۔ بیا چه امام سجدے له لاړ۔ نو دے ورسره هم لاړ۔ یا مثلاً په دے مثال کښ ئے دَ اول رکعت رکوع خو وکړه۔ لیکن امام دوه سجدے وکړے او ده صرف یوه۔ نو اقتدا ئے فاسده شوه۔ دَ دے مقتدی مونځ ونشه۔ دارنګ مقتدی که یو رکن دَ امام نه مینه وکه او په هغے کښ ورسره امام شریک نشه۔ مثلاً مقتدی دَ امام نه مینه رکوع له لاړ۔ بیا د رکوع نه اُوچت شه۔ په دا سے حال کښ چه امام لا رکوع له نه وُتلے۔ او بیائے دَ امام سره یا دَ امام نه ورستو هم دغه رکوع ونکړه نو اقتدا فاسده شوه۔

**لسم**[۱] شرط دا دے چه دَ امام حال دَ مقتدی دَ حالت نه قوی وی دَ مانځه په ارکانو کښ۔ او دَ مانځه په شرائطو کښ۔ یا ورسره برابر وی۔ لکه دا را تلونکی صورتونه شو:۔

(۱) په ولاړے چه باقاعده مونځ کوی۔ دَ هغه اقتدا په خپل مثل پسے صحیح ده دارنګ دَ هغه اقتدا په هغه چا پسے هم صحیح ده۔ چه په سبب دَ عذر سره مونځ په ناستے کوی۔ سره دَ رکوع وسجود۔ ځکه چه په شریعت کښ دَ معذور ناسته په شان دَ ودریدو ده۔

(۲) که امام تیمم کړے وُ په سبب دَ دے چه او بو ئے نه وے موندلے۔ او مقتدی ئے اودس لرونکے وُ۔ او او به ورځنه نه وے۔ نو دا اقتدا صحیح ده۔ برابره خبره ده چه تیمم دَ غسل کوی او که دَ اودس۔ او که امام دَ څه مرض په وجه تیمم کړے وُ۔ نو بیا مقتدی ځنه اګر که څه او به موجودے وے هم ئے اقتدا صحیح ده۔ ځکه چه اودس او غسل او تیمم په حکم دَ طهارت کښ یو شان دی۔ کمی بیشی پکښ نشته

(۳) چا چه مسح کړے په موزو یا په پټئ په هغه پسے اقتدا دَ اینځونکی جائزه ده

---

[۱] مراقی الفلاح ۱۲ [۲] درمختار و شامی ۱۲

ځکه چه شرعي مسح او اینجل په طهارت کښ برابر دي۔

(۴) دَچاړا اِقتدا په چاړا پسې او دَ اُمي په اُمي پسې جائزه ده۔ اُمي هغه څوک دے چه په یادو یو آیت هم نه شي لوستے۔

(۵) څوک چه په اشاره مونځ کوي۔ دَ هغه اقتدا په بل داسے سړي پسې صحیح ده لیکن که امام په ملا سته اشاره کوله او مقتدي په ولاړے یا په ناستے نو بیا صحیح نه ده۔

(۶) دَ تندرست سړي اقتدا په کوزه پشت (شا ټیټي) پسې صحیح ده۔ آکرکه ټیټوالے ئے دَ رکوع حد ته رسیدلے وي۔ او دارنګ دَ تندرست سړي اقتداء په کوډ[1] پسې هم صحیح ده۔ لیکن بل تے غوره دے۔

(۷) دَ ښځے او دارنګ دَ نابالغ اقتدا په بالغ سړي پسې صحیح ده۔

(۸) دَ ښځے اقتدا په ښځه پسې صحیح ده۔ خو سره دَ کراهت نه۔

(۹) دَ نابالغ هلک او دارنګ دَ نابالغے جینۍ اقتدا په نابالغ هلک پسې صحیح ده۔

(۱۰) دَ یو معذور اقتداء په بل پسې صحیح ده۔ خو هله چه دواړه معذوروي۔ په یو عذر سره مثلاً دواړو ته بیماري دَ دړو بولو دَ څڅیدلو وي۔ یا دواړه مبتلا وي دَ بادو تلو په عارضه کښ۔

(۱۱) دَ نفل کونکي اقتدا په هغه چا پسې چه فرض کوي۔ یا واجب کوي صحیح ده۔ مثلاً سړي دَ ماسپخین مونځ کړے وُ۔ بیا دَ ماسپخین جماعت ودریدو۔ نو ده پسے هم نیت وتاړه۔ یا دَ اختر مونځ ئے یو ځائے کړے وُ۔ بیا دَ اختر په مانځه کښ شریک شه۔ نو دا دویم مونځ دَ ده په حق کښ نفل دے۔ اقتداء صحیح ده۔

(۱۲) دَ نفل کونکي اقتدا په نفل کونکي پسې جائزه ده۔

(۱۳) که چا حلف وکه۔ یعنے قسم ئے وکه۔ چه زه به دوه رکعته نفل کوم۔ بیائے په بل نفل کونکي پسې دا مونځ وکه۔ نو قسم ئے په ځائے شه۔ اقتداء ئے صحیح ده۔ ځکه چه دَ قسم دا مونځ هم په واقع کښ نفل دے۔

(۱۴) دَ نذر مونځ چه کوي۔ دَ هغه اقتدا په بل داسے سړي پسې صحیح ده۔ خو شرط دا دے چه دَ دواړو نذر یو وي۔ مثلاً زید دوه رکعته په ځان نذر و منل پس بکر هم دغه دوه رکعته په ځان نذر و منل۔ او که صورت دارنګ نه وُ۔ بلکه زید جدا نذر منلے وُ۔ او بکر جدا۔ بیا اقتدا صحیح نه ده۔ دا بیان دَ هغه صورتونو وُ چه دَ امام حال دَ

---

[1] که کوډ والے ئے زیات وُ ۱۲ منه

مقتدی نه قوی وُ۔ یا برابر نو اقتدا صحیح ده۔

**پاتے شه بیان** دَهغه صورتونو چه دَ امام حال کمزوری دَ مقتدی نه په طریقه دَ یقین یا په طریقه دَ احتمال سره۔ نو اقتدا صحیح نه ده۔ او هغه دادی:-

(۱) نابالغ پسے دَ بالغ اقتدا صحیح نه ده۔ برابره خبره ده چه دا بالغ نروی او که ښځه۔

(۲) په ښځه پسے دَ نارینه اقتداء صحیح نه ده۔ نارینه بالغ وی او که نابالغ۔

(۳) دَ خنثیٰ اقتدا په خنثیٰ پسے جائزه نه ده۔ ځکه چه احتمال دے چه په واقع کښں دا خنثیٰ امام ښځه وی۔ او خنثیٰ مقتدی نر۔

(۴) دَ خنثیٰ اقتدا په ښځه پسے صحیح نه ده۔ ځکه چه احتمال شته چه دا خنثیٰ نروی

(۵) دَ کومے ښځے نه چه دَ خپل حیض ورزے هیرے شوے وی۔ او دَ څه مرض په وجهٔ وینه برابر بهیږی۔ په هغے پسے دبلے دغه شان ښځے اقتدا صحیح نه ده ځکه احتمال دے کومه ښځه چه اِمامه ده دا ورزے دَ هغے دَ حیض وی او کومه چه مقتدیه ده۔ دا دَ هغے دَ پاکوالی وی۔

(۶) په بے هوشه او په لیونی سړی پسے اقتدا صحیح نه ده۔ کوم چه بالکل لیونے وی۔ هاں که لیونتوب ئے داسے وُ۔ چه کله به وُ۔ کله نه۔ نو دَ صحت په وقت کښں ورپسے اقتدا صحیح ده۔

(۷) دَ غیر معذور اقتداء په معذور پسے صحیح نه ده۔ (عذر هغه دے کوم چه په کتاب دَ طهارت کښں مینځه بیان شوے دے۔ لکه دَ وړو بولو بیدلو بیماری شوه وغیره وغیره) لیکن که دُعذر نه بندیدلو نه پس ئے اودس وکه او بیائے مونځ پوره که۔ او عذر ئے لا نه وُ ښکاره شوے۔ نو په دغه مانځهٔ کښں په ده پسے که چا اقتدا کړے وی۔ هغه صحیح ده۔ (۸) کومه ښځه چه روغه جوړه وی دَ هغے اقتدا په مستحاضے ښځے پسے صحیح نه ده۔

(۹) څوک چه یو عذرلری دَ هغه اقتدا په دوه عذرلرونکی پسے صحیح نه ده۔ مثلاً دَ چا صرف دَ وړو بولو بیدلو بیماری وی۔ دَ هغه اقتدا په بل داسے سړی پسے چه دَ هغه هم دغه بیماری وی۔ او هم ئے هر وقت باد روان وی۔

(۱۰) څوک چه معذور وی په یو عذر سره دَ هغه اقتدا په بل داسے سړی پسے چه هغه معذور وی په بل عذر سره صحیح نه ده۔ مثلاً دَ یو سړی هر وقت وړه بول بهیږی۔ او دَ بل هر وقت باد جاری وی۔

(۱۱) دَ قاری اقتدا په اُمی پسے صحیح نه ده۔ قاری هغه څوک دے چه هغه ته دَ قرآن مجید

نه کم از کم دومره یادوی - چه مونځ پرې صحیح کیږی - او اُمی هغه څوک دے چه دومره ورته هم نه وی یاد -

(۱۲) دَ کوم سړی عورت چه پټ وی دهغه اقتدا په لغړ پسے صحیح نه ده -

(۱۳) دَ امی اقتدا په چاړا پسے صحیح نه ده - ځکه چه امی خو دَ تکبیر تحریمه قدرت لری او په چاړا کښ دَ دے قدرت هم نشته -

(۱۴) که په امی پسے امی او قاری دواړه اقتدا وکړه نو دا اقتدا صحیح نه ده - مونځ دَ یو هم وُ نشه - ځکه چه په دے صورت کښ دَ امی امام مونځ فاسد شه - په وجه دَ دے چه قاری ئے تمکین کولے شه - نو دَ هغه قرأت به ټولو مقتدیانو له کافی شوے وُ - او چه دَ امام مونځ فاسد شه - نو دَ امی مقتدی مونځ هم ونشه - او دَ قاری اقتدا خو خود په امی پسے صحیح نه ده -

(۱۵) که بربنډ سړی امامتی وکړه دَ لغړ او دَ جامے اغوستونکو نو دَ امام او دَ لغړ مقتدیانو مونځ وشه - او دَ دغه نورو مقتدیانو ونشه - دا رنګ که په معذور پسے نورو معذورانو او غیر معذورانو اقتداء وکړه - نو دَ معذورو مونځ وشه - او دَ غیر معذورو ونشه - په دے مسئله او په اوله مسئله کښ فرق دا دے - چه دَ امام قرأت کافی کیږی دَ پاره دَ مقتدی - او دَ امام طهارت او ستر عورت دَ مقتدی دَ پاره نه کافی کیږی -

(۱۶) دَ رکوع او سجده کونکی اقتدا په هغه چا پسے چه دَ دے دواړو نه عاجز وی صحیح نه ده - دا رنګ په هغه چا پسے چه هغه صرف دَ سجدے کولو نه عاجز وی -

(۱۷) دَ فرض کُونکی اقتدا په نفل کونکی پسے نه صحیح کیږی -

(۱۸) دَ نذر مونځ چه کوی دَ هغه اقتدا په نفل کونکی پسے صحیح نه ده - ځکه چه دَ نذر مونځ واجب دے -

(۱۹) چا چه مثلاً قسم خوړلے وی چه زه به دوه رکعته نفل کوم - په دهٔ پسے اقتدا صحیح نه ده - دَ هغه چا چه دَ دوو رکعتو نذر ئے په ځان منلے وی - ځکه چه دَ نذر مونځ واجب دے - او دَ قسم نفل - وجه دا ده چه قسم پوره کیدل ضروری دی - او هغه په دے طریقه هم پوره کیږی چه کفاره ورکی - او دغه نفل وُ نه کی -

(۲۰) څوک چه دَ حروفو ادائیګی بنه کولے شی - دَ هغه اقتدا په هغه چا پسے چه بنه ادائیګی نه شی کولے - مثلاً دَ سین (س) په ځائے ثے (ث) وائی - یا دَ ے (ر)

په ځلئ غین (غ) صحیح نه ده - هاں که یو نیم لفظ ئے داسے او خوت او معنیٰ پے خرابه
نه - نو خیر دے دا اقتدا نه منعه کوی -

**تولسم**[۱] شرط دا دے چه امام واجب الانفراد نه وی - یعنی اقتدا په داسے
سړی پسے صحیح نه ده چه د هغه تنهائی ضروری وی - لکه مسبوق شه - ځکه چه د
امام د سلام ګرځولو نه پس چه به دے کوم قضا رکعتونه راګرځوی - هغه ورله یوا
کول ضروری دی - په ده پسے که بل څوک اقتدا کوی هغه صحیح نه ده - دا رنګ د
اقتدا د پاره دا هم ضروری ده - چه امام په حالت د امامت کښں د چا مقتدی
نه وی - نو اقتدا په داسے سړی پسے صحیح نه ده چه هغه مقتدی وی د بل - برابره
خبره ده چه حقیقةً مقتدی وی - لکه مدرک شه - یا حکماً لکه لاحق شه - ځکه چه
د لاحق حکم د باقی شوی رکعتونو په کولو کښں داسے دے لکه مقتدی - نو که څوک
د مدرک یا د لاحق اقتدا کول غواړی - نو دا اقتدا صحیح نه ده - دا رنګ که لاحق په
مسبوق پسے یا مسبوق په لاحق پسے اقتدا کول غواړی - دا هم صحیح نه ده -

په جماعت کښں د شاملېدلو او د نه شاملېدلو بیان

**مسئله**[۲] :- که سړی لا مونځ نه وُ کړے - نو د بانګ نه
پس ورله د جمات نه وتل مکروه تحریمی دی - برابره خبره
ده چه بانګ د ده د دا خلېدو نه مخکښے شوے وی - یا د ده په موجودګئ کښں
بلکه بانګ که نه وُ شوے او وقت داخل شه نو هم دغه حکم دے چه وس ورله
د جمات نه وتل مکروه دی - لیکن که شرعی وجه وه - مثلاً دے د بل جمات مؤذن
وُ - یا امام - یا په مجلس د وعظ کښں د شرکت د پاره بل جمات له ته - یا د استاذ جمات
له ورته د پاره د سبق - یا د څه ضرورت په وجه اووت - او اراده ئے د دوباره
راتللو وه - نو په دے صورتونو کښں کراهت نشته - دا رنګ که د خپلے محلے په
جمات کښں لا مونځ نه وُ شوے او دے هلته ورته نو هم خیر دے - خو په دے
صورت کښں د عالمانو اختلاف شته - نو بنه دا ده چه په دغه پردی جمات
کښں مونځ وکی - ځکه چه په وتلو کښں ئے تهمت دے -

**مسئله**[۳] :- که سړی مونځ کړے وُ - بیا پس د بانګ نه د جمات نه راووتو
نو خیر دے کراهت په کښں نشته - لیکن که وخت د ماسپخین وُ - یا د ماسخو
او اقامت شروع شه - وس ورله وتل مکروه دی - وُزی دے نه - بلکه په نیت

[۱] درمختار ۱۲ [۲] درمختار ورد المختار ۱۲ [۳] شرح التنویر و شامی ۱۲

دَ نفل دے دَ جماعت سره شامل شی۔ نو فرض خو ئے مینه کړی وُ۔ دا به ئے نفل شی۔

او که وقت دَ سحر وُ۔ یا دَ ماز یګر یا دَ ماښام نو دَ جماعت سره دے نه شاملیږی۔ ځکه چه دَ سحر او دَ ماز یګر دَ مانځهٔ نه پس نفل نشته۔ او که دَ ماښام په مانځه کښې دَ جماعت سره شاملیږی او درے رکعته کوی نو درے رکعته نفل نشته۔ او که یوُ ورسره بل ملګ کوی۔ په دے کښې مخالفت دَ امام دے۔

**مسئله** :۔ که چا فرض ادا مونځ یوازے شروع کړے وُ۔ په دا سے حالت کښې هلته دَ دغه مانځهٔ جماعت وُدریږی۔ او مونځ څلور رکعتی وُ۔ نو که ده دَ اول رکعت سجده لا نه وی کړے مونځ دے مات کی۔ یعنے په ولاړے دے سلام وګرځوی په جماعت کښې دے شامل شی۔ او که دَ اول رکعت سجده ئے کړے وه۔ نو دویم رکعت دے ورسره پوره کی۔ او په شفعه دے سلام وګرځوی۔ دا ئے نفل شو۔ او دَ امام سره دے په فرضو کښې شریک شی۔ او که دَ دریم رکعت سجده ئے کړے وه۔ نو وُس دے څلورم رکعت هم پوره کی۔ فرض ئے پوره شو۔ او دَ امام سره دے شامل شی۔ دا به ئے نفل شی۔ البته دَ ماز یګر دَ مانځهٔ نه پس چونکه نفل نشته۔ په دا سے صورت کښې دے بیا دَ جماعت سره نه شاملیږی۔

**مسئله** :۔ که چا فرض ادا مونځ دَ سحر یا دَ ماښام شروع کړے وُ۔ په دے دوران کښې جماعت وُدریږی۔ نو که ده لا دَ اول رکعت سجده نه وه کړے۔ په ولاړے دے سلام وګرځوی۔ او په جماعت کښې دے شریک شی۔ او که دَ اول رکعت سجده ئے کړے وه۔ خو دَ دویم رکعت سجده ئے لا نه وه کړے نو هم دغه حکم دے۔ او که دَ دویم رکعت سجده ئے کړے وه۔ نو وس دے مونځ پوره کی۔ او په جماعت کښې دے نه شاملیږی۔

**مسئله** :۔ که چا نفل مونځ شروع کړے وُ۔ او دَ فرضو جماعت ودریږی نو دے دِ نفل نه ماتوی۔ بلکه په دوه رکعته دے با قاعده سلام ګرځوی اګر که نیت ئے تړلے وی دَ څلورو۔

**مسئله** :۔ که دَ ماسپخین یا دَ جمعے څلور رکعته سنت مؤکده ئے شروع

---

له شامی ۱۲ ځه درمختار ورد المحتار ۱۲ ځه درمختار ۱۲ ځه درمختار ورد المحتار ۱۲

کړے وُ- په دے دوران کښې جماعت ودریږی - یا خطبه شروع شوه - نو د امونځ به نه

ماتوی -

پاتے شوه داخبره چه سلام به په دوه رکعته کرځوی - او دَ فرض نه پس به ئے

بیا قضا راوړی - اوکه څلور به پوره کوی - په دے کښې اختلاف دے - ځینې عالمان

وائی چه دوه رکعته به پوره کی - سلام به با قاعده وګرځوی - او ځینې وائی چه

څلور به پوره کوی - خو دا بیان هله دے - که دریم رکعت ئے لا نه وُ شروع کړے

اوکه دَ دریم رکعت سجده ئے کړے وه - نو وَس ئے پوره کول ضروری دی -

اوکه دریم رکعت ئے شروع کړے وُ - خو دَ هغې سجده ئے لا نه وه کړے - نو په دے

کښې هم اختلاف دے - څوک وائی چه پوره دے کی - خو دَ قرأت په تخفیف

سره - او ځینې وائی چه راوُ دے ګرځی - کے دِ نی سلام دے وګرځوی -

**مسئله** :- که یو ئے وه چه دَ ماسپخین یا دَ جمعے دا مخکښې سنت مؤکده

که څه کوم - جماعت به وُدریږی - اول رکعت به ونه رسوم - نو وس دے

نه کوی - بلکه هغه دے دَ جماعت نه پس په وقت کښې قضا راوړی - یعنې

دَ فرضونه پس چه کوم سنت مؤکده دی - دَ هغې نه مینه دے دغه مخکښې وکی

او ځینې عالمان وائی - چه دَ هغې نه پس -

لیکن دجمعے په سنتو کښې اختلاف دے - ځینې عالمان وائی چه دَ فرضونه پس

دَ هغه اولنی سنتو کول بالکل نشته - او ځینې وائی چه شته - لکه چه مخکښې

ذکر شو -

**مسئله** :- که سړے دَ سحر مانځه له په داسے حالت کښې راورسید

چه جماعت ولاړو - یا اقامت شروع شو - او دهٔ لا سنت نه وُکړی - نوکه دَ

ده یقین یا غالب ګمان وی - چه کم نه کم یو رکعت به دَ جماعت سره لاندے

کم - نو دَ جمات دَ دروازے څخه دے سنت وکی - اوکه دَ جمات دَ دروازے څخه

څه داسے ځائے نه وُ - نو په صف کښې دے سنت نه کوی - بلکے ورپسے دے تهٔ دَ ستنې

شاته یا بل بیرته ځائے دے وکی - اوکه یو رکعت ورنه هم دَ امام سره نه شه

ملاویدے - بیا دے سنت پریږدی -

او ځینې عالمان وائی که دَ امام سره ورته تشهد ملاویدے شه - سنت

---

ے درمختار وشامی ۱۲ ے شرح التنویر ۱۲

دے وکی۔ کنی نو نه۔

**مسئله**[1] :۔ که دَ سحری پیره وه چه دَ سحر سنت که څه باقاعده مکمل ادا کوم جماعت به را نه فوت شی۔ نو په داسے صورت کښې ولہ پکار دی۔ چه کوے خبرے په مانځه کښې فرض او واجب دی۔ په دغه سنتو کښې دَ هغې خیال وساتی۔ او کوے چه سنت او مستحب دی۔ هغه پکښې پرېږدی۔

**مسئله**[2] :۔ که دَ جماعت سره ئې صرف قعده آخره او موندله۔ نو فضیلت دَ جماعت ورته حاصل شه۔ او جماعت ئې وُنه موندلو۔ نو که خدانخواسته قسم ئې خوړلے وُ۔ چه زه به دَدے وقت مونځ په جماعت سره ادا نکړم۔ په دے صورت کښې حانث نه دے۔

دَمقتدی په حق کښې | **مسئله**[3] :۔ که مقتدی یو وُ او وُ سړے یا نابالغه هلک نو هغه به دَ امام ښی جانب ته دَ امام سره برابر یا لږ راپسته ودرېږی۔ که کس جانب ته یا شاته ودریږی نو مکروه دی۔

**مسئله**[4] :۔ که مقتدیان دَ یونه زیات وُو۔ نو دَ امام شاته ورله په صف ودریدل پکار دی۔ که یو دَ امام ښی جانب ته ودریږی او بل کس جانب ته او وُو دوه نو داسے ودریدل مکروه تنزیهی دی۔ او که کښې وُو نو مکروه تحریمی۔ ځکه چه مقتدیان دَ دوؤ نه زیات وی۔ نو په داسے صورت کښې امام له مخکښې وُدریدل واجب وی۔

**مسئله**[5] :۔ که دَ مونځ شروع کولو په وقت کښې مقتدی یو وُ۔ دَ امام ښی جانب ته ودریږی۔ بیا نور مقتدیان را غلل۔ نو وس اولنی مقتدی له راپس کیدل او دَ نورو سره باقاعده په صف کښې ودریدل پکار دی۔ او که په خپله راپس نه شه نو دے را تلونکی مقتدی له پکار دی چه هغه راکش کړی۔ او دَ امام شاته باقاعده صف جوړ کی۔ او که شاته دَ راپس کیدلو ځائے نه وُ۔ یا وُ خو دا را تلونکی مقتدیان هم دَ امام ښی یا کس جانب ته وُدریدل۔ په سبب دَ دے چه مسئله ورته معلومه نه وه مثلاً۔ نو امام له پکار دی چه مخکښې شی۔ دَ پاره دَ دے چه شاته ئې صف باقاعده وُدرېږی۔

**مسئله**[6] :۔ که مقتدی ښځه وه یا نابالغه جینئ۔ هغه به دَ امام شاته

---

[1] شامی ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] عالمگیری ۱۲ [4] شرح التنویر ۱۲ [5] شامی ۱۲ [6] شرح التنویر ۱۲

ودریږی۔ یوه وی او که دوه او که زیاتے۔

**مسئله**[1] :- که په مقتدیانو کښې نوے واړه ښځے نر هر قسم وُو نو امام له دَ دوئ صفونه په دے ترتیب قائمول پکار دی۔ مینه دَ سړو ورپسے دَ نابالغه هلکانو ورپسے دَ خنثا ګانو ورستو دَ ښځو۔ بیا دَ نابالغه جینکو۔

**فائده**[2] :- په مانځه کښې غوره صف دَ نارینه وُ هغه دے چه امام ته نژدے وی۔ بیا دویم۔ بیا دریم۔ دارنګ په ترتیب سره۔ البته دَ جنازے په مانځه کښې غوره صف آخری دے۔ بیا چه دے ته کوم نژدے وی په ترتیب سره۔

**مسئله**[3] :- امام له پکار دی چه مینه مقتدیانو ته حکم دَ صفونو برابرولو وکی۔ او څوک چه وړاندے وُرستو وی۔ هغه ته اووائی چه مخکښې شه۔ پس شه۔

په صف کښې خالی ځائے پرېښودل نه دی پکار۔ بلکه یو بل ته نژدے۔ او اوګے دَ اوګو سره برابر پکار دی۔ او څوک چه عالم یا حافظ وی۔ هغه دے په اول صف کښې وُدریږی دَ پاره دَ دے چه دَ نځے یا دَ خلیفه ینولو که ضرورت پیښ شی۔ چه تکلیف نه وی۔

**مسئله**[4] :- بل صف دے هله جوړه وی چه اول پوره شی۔ که په اول صف کښې ځائے وُ۔ او دویم صف قائم کړے شه۔ دا مکروه دی۔

**مسئله**[5] :- دَ صف شاته یوازے وُدریدل مکروه دی۔ که په صف کښې ځائے وُ۔ په هغے کښې دے وُدریږی۔ او که نه وُ۔ او بل نوے مقتدی رائغے۔ نو دَ دغه صف نه دے یو تن شاته راکاږی۔ دَ ځان سره دے وُدروی۔" لیکن په دے زمانه کښې جهل عام شوے دے۔ خلقو ته مسئلے نه دی معلوم۔ ویره ممکنه ده چه دَ صف هغه مقتدی جنګ ته تیار شی۔ یا به خپل مونځ مات کی۔ نو په داسے صورت کښې غوره ده چه یوازے ودریږی۔ چاله کوے نه وروړی"۔

**مسئله** :- که مقتدی لا التحیات دَ عبده وَ رسوله پورے نه وه پوره کړے۔ او امام دَ قعدهٔ اولٰی نه پاسیږی۔ نو مقتدی به پوره کوی۔ هله به پاسی۔ او که دَ مقتدی خیال وُ۔ چه دَ التحیات پوره کولو په صورت کښې به امام دَ دریم رکعت رکوع له لاړ شی۔ هم خیر دے۔ التحیات دے پوره کی۔ بیا دے پاسی۔ نو که امام رکوع له تلے وُ۔ دے دِ په قدر دَ درے تسبیح قیام وکی۔ او رکوع له دے لاړ شی۔ او که امام سجدے ته رسیدلے وُ هم خیر دے۔ دے دِ رکوع وکی۔ بیا قومه۔ بیا دے سجدے ته لاړ شی۔ غرض دا دے چه دَ امام نه په

---

[1] بحر رائق ۱۲ [2] شرح التنویر و در المنتقیٰ ۱۲ [3] شامی و در مختار ۱۲ [4] طحطاوی ۱۲ [5] در مختار و رد المحتار ۱۲

ورسته والې سره اقتدا نه باطلیږي - داځکه چه په قعده اخیره کښې مقتدي التحیات ذ عبده ورسوله پورې نه وه پوره کړې - او امام سلام وګرځاوه - نو مقتدي به پوره کوي - هله به سلام ګرځوي - هاں که په رکوع یا په سجده کښې مقتدي لا درې ځله تسبیح نه وه پوره کړې - یا یو ځل ئې هم نه وه ویلې - او امام را پورته شه - نو دے به د امام متابعت کوي - پاسي به -

مسئله[1] :- که امام په قعدهٔ اولے ناست وُ - او مقتدي ورپسې نیت وتاړه - شریک شه - بیا امام پاسید او مقتدي لا تشهد نه وُ پورې کړے پوره کوي به لیکن که ونه کړه - هم ئې مونځ کیږي -

مسئله[2] :- که مدرک په قعده اولی کښې تشهد د امام نه مخکښې خلاص که - نو دے به همره چپ کیني - او مسبوق له مستحب دي - چه د امام په قعدهٔ اخیره کښې تشهد په دمه دمه لولي - چه د امام د سلام پورې ئې ورسوي - او ځینې وائي چه تشهد که ئې د امام نه مخکښې ختم که - نو وس دے همره کلمه د شهادت مکرره وي - او ځینې وائي چه بیا دے د سره کي - او ځینې وائي چه چپ دے کیني - او ځینې وائي چه درود او دعا دے مکرره وي -

مسئله[3] :- که مقتدي په قعده آخره کښې تشهد پوره کړے وُ - خو درود شریف ئې لا نه وُ لوستے - یا آخري دعا - او په دے دوران کښې امام سلام وګرځاوه نو مدرک مقتدي به د امام متابعت کوي - سلام به ګرځوي - او که دے مقتدي درود او دعا پوره کړه - او امام لا نه وُ پوره کړے - بیا مقتدي د امام نه مخکښې سلام وګرځاوه نو مونځ ئې وشه - خو بې د عذره داسے کول مکروه تحریمي دي - هاں که عذر وُ مثلاً د اودس ماتیدو ویره وه - یا بله څه معقوله وجه وه بیا خیر دے -

مسئله[4] :- که مقتدي د امام نه مخکښې رکوع له لاړ - او دومره حصار شه چه امام ورته راورسید نو رکوع وشوه - لیکن که مقتدي دومره مخکښې تلے وي - چه امام د هغې نه پس د فرضو مقدار قرأت کړے وي - نو دومره مخکښې وړاندې مکروه تحریمي دے -

د امام نه مخکښې تلل لوئے ګناه دے - په حدیث شریف کښې سخت وعید راغلے دے -

---

[1] شرح المنیه ۱۲ [2] ذخیره ۱۲ [3] درود ۱۲ [4] درمختار ورد المحتار ۱۲ [5] شرح التنویر ۱۲

**مسئله** :- که مقتدی په جلدئ کښې دَ امام نه مخکښې دَ رکوع نه سر اوچت که او امام لا په رکوع کښې وُ- نو دے مقتدی له پکار دی چه بیا رکوع ته وکړځی۔ دَ امام سره راپا سی۔ او په دے صورت کښې به دا دوه پیرے مینځل په یوه رکوع حسابیږی۔

**مسئله** :- که امام په رکوع کښې وُ- او سړی ورپسے نیت وتاړه- او امام لا سر نه وُ اوچت کړے- چه دے ورسره په رکوع کښې شریک شه- نو دغه رکعت به مونږ لے حسابیږی۔ او که ده ورپسے نیت وتاړه۔ بیا دے لا رکوع له نه وُتلے چه امام دَ رکوع نه سر اوچت که- نو دغه رکعت خو ئے ونه مونږ۔ لیکن چه نیت ئے تړلے دے- وس وله دَ دغه رکعت په دواړو سجدو کښې هم متابعت[۱] واجب دے۔ اګر که دا سجدے ئے حساب نه دی۔ بلکه دَ امام دَ قرأت نه بعد به دا رکعت کوی سره دَ دواړو سجدو۔

ځینے خلق چه دَ نیت تړلو نه پس رکوع وُنه رسوی- نو بیا پس شی- دا سے کول منعه دی۔

**مسئله** :- مقتدی به په دے پنځو وُ کښې دَ امام متابعت کوی- یعنے داکه دَ امام نه هیرشو- پرےئے خوده- نو مقتدی به ئے هم نه کوی- یو دَ وتر و قنوت دے۔ خو بعضے وائی چه رکوع که ئے رسولے شوه وُ دے وائی- دویم[۲] اوله قعده ده- دریم[۳] دَ اختر دَ مانځه تکبیرات دی۔ **څلورم**[۴] سجدهٔ تلاوت **پنځم**[۵] سجده سهو- او په دے څلوروکښې به دَ امام متابعت نه کوی- یعنے امام که اوو کړو- مقتدی به ئے نه کوی- یو دَ اختر په مانځه کښې زائد تکبیر دے- سوا دَ منقوله تکبیرونو نه- خو هله چه دَ امام نه ئے براوه راست واورِی- دا رنګ دویم[۲] دَ جنازے په مانځه کښې پنځم تکبیر۔ **دریم**[۳] دَ رکن زیادت- یعنے په یو رکعت کښې دویمه رکوع یا دریمه سجده- **څلورم** پاسیدل دی پنځم رکعت ته-

او اته[۸] خبرے دا سے دی چه مقتدی به ئے کوی- اګر که امام ونکړی۔ او هغه دادی :- دَ تکبیر[۱] تحریمه دَ پاره لا سونه اوچتول- ثنا ویل[۲] خو هله که امام لا قرأت په جهر سره نه وُ شروع کړے- تکبیر[۳] دَ انتقال یعنے رکوع سجدے له دَ تللو

---

[۱] درمختار و شامی ۱۲ [۲] درمختار و شامی ۱۲ [۳] لیکن که په دے کښې ئے متابعت وُنکه نو مونځ ئے په دے سره نه فاسدیږی ۱۲ منه [۴] درمختار و بحر ۱۲

وغیره تکبیر - رَبَّنَا لَكَ الْحَمْد وئیل - ځکه امام سَمِعَ اللّٰهُ نوی ویلی - په رکوع سجود کښې تسبیح ویل - رکوع پورے چه امام په هغې کښې وی - تشهد ویل په قعده کښې یعنې امام که په قعده کښې کیناست - نو ګرکه تشهد ئے وُنه وے هیر ئے شه - مقتدی به ئے وائی - اوکه امام قعده اولیٰ پریخوده نوځی دَدے به ئے متابعت کوی - لکه چه مینه ذکرشوی دی - بل سلام دے - یعنې امام که دَ ماځه دَ سلام په ځائے په څه بله ذریعه ووت - مقتدی به سلام ګرځوی - بل تکبیرات تشریق یعنې دَامام که هیرشو - نو هم به ئے مقتدی وائی - په نه ویلو کښې به ئے متابعت نه کوی -

**مسئله** :- مقتدی په څلور قسمه دے - مُدرک - مسبُوق - لاحِق - مسبوق لاحق
**مُدرک** هغه دے چه دَ امام سره په ماځه کښې دَاول نه دَ آخر پورے شریک وی - او **مسبُوق** هغه مقتدی دے - چه یو رکعت یا څه رکعتونه ئے شوی وی بیا دَ جماعت سره شامل شوے وی - دَ هغه حکم دا دے چه دَ امام دَ سلام ګرځولو نه پس به خپل تلی رکعتونه اداکوی - په دغه رکعتونو کښې به دَ منفرد په شان قرائت هم شته - اوکه سهوشه - نو سجده سهو هم شته - کوم رکعتونه چه مسبوق نه دی مونډلی - هغه به پس دَ امام دَ سلام نه په دے طریقه ادا کوی - چه مینه به ډک کوی - بیا نتش - او قعده به دَ هغه رکعتونو په حساب کوی کوم چه ئے دَ امام سره کړی - یعنې په دغه حساب چه کوم دویم راځی - په هغې به قعده کوی - نو که مونږ دوه رکعتی وُ - دغه به ئے قعده آخرښی - ګنی نو قعده اولیٰ -

مثلاً فرض که چه دَ ماز یګر جماعت ولاړ وُ - درے رکعته شوی وُو - زید راغے په څلورم رکعت کښې شامل شه - نو زید مسبوق دے - کوم وقت چه امام سلام وګرځوی - دے به ودریږی ثنا ، اعوذ بالله ، بسم الله به اووائی - بیا به سورة فاتحه او بل سورة ولولی - او دَ رکوع سجدے نه پس به په قعده اولیٰ کیني - ځکه چه یو رکعت ئے مونډلے وُ دَ امام سره اویو دا شه - نو په دے حساب سره ئے دارکعت دویم شه - بیا چه دَ قعدے نه پاسی - الحمد او سورة به ولولی - رکوع سجده به وکی - خو قعده به نه کوی - ځکه چه کوم رکعت ئے دَ امام

ے شرح التنویر و فتح القدیر و بحر ۱۲

سره موندلے وُ- دَ هغے په حساب ئے دا دریم دے- بیا به څلورم رکعت وکی- خو تش- یعنے الحمد به په کښې وئیلی- بس- او دَ رکوع سجود نه پس به اخیره قعده وکی- او دَ قعدے کوم ترتیب چه ذکر شه دا دَ امام محمدؒ صاحبؒ قول دے- او ځینے وائی چه دَ صاحبینؒ قول دے-

او امام اعظم صاحبؒ وائی چه مسبوق که یو رکعت دَ امام سره او موندهٔ نو دَ امام دَ سلام نه پس به باقی په دے طریقه ادا کوی- چه دوه رکعته به وکی یک- یعنے په هر یو کښې به الحمد او سورة لولی- دو ستو به قعدهٔ وکی- نو که دَ مابنام مونځ وُ- دا ئے اخیره قعده شوه- او که څلور رکعتی وُ- دا ئے اوله قعدهٔ شوه- دَ عَبْدُہٗ وَرَسُوْلُہٗ نه پس به پاسی- یو رکعت به وکی- تش- یعنے صرف الحمد به په کښې ولولی- ورستو به باقاعده اخیره قعده وکی- نو طریقے دواړه جائز دی- خو دَ اکثرو کتابونو دَ ظاهر نه معلومیږی چه اوله طریقه غوره ده-

مسئله :- دَ مسبوق دَپاره غوره داده چه امام دواړو غاړو ته سلام وکړځوی پس دَ هغے نه پورته کیږی- دَپاره دَدے چه دَ امام دَ سهو شک ئے پاتے نه شی-

مسئله :- مسبوق له دَ امام دَ سلام نه مخکښې پاسیدل بے دَ عذره مکروه تحریمی دی- او که عذر وُ نو خیر دے-

مثلاً په ځان ئے دَ اودس ماتیدو ویره وه- یا وقت ډیر کم وُ- دو تو بره ئے وه- دَ سحرو- یا دَ جمعے- یا دَ اختر- یا دے معذور وُ- یا دَ مسحے موده ئے ختمیدهٔ- وغیره وغیره- نو که مسبوق دَ امام دَ سلام نه مخکښې پاسید په دا سے حال کښې چه امام لا په قدر دَ تشهد نه وُ ناست- نو په دے کښې څلور صورته دی ځکه چه دے به یا مسبوق وی په یو رکعت سره یا په دوه یا په درے یا په څلورو نو که مسبوق وُ په یو رکعت سره پس گورو به چه دَ امام ناسته په قدر دَ تشهد سره څو مره چه ده- دَ هغے نه پس دے مسبوق په قیام کښې دومره قرأت کړے دے چه مونځ پرے جائز کیږی او که نه- که کړے ئے وی معتبر دے- که دغه مونځ روان وساته- پوره ئے که- نو وشه- او که نه ئے وی کړے نو هغه قرأت نه دے معتبر- نو که په هغے ئے اکتفا وکړه- مونځ ئے فاسد دے- وجه

---

لہ شرح المنیه ۱۲ لہ فتح القدیر و کبیری ۱۲

داده - چه دَکوے پورے امام دَ تشهد نه نوی فارغ شوے - دَ مسبوق قیام او قرأت نه دی معتبر - او که مسبوق په دوه رکعته سره وُ - نو دَ هغې هم دا حکم دے او که مسبوق په درے رکعته یا په څلور رکعته سره وُ - نو که دَ امام دَ تشهد نه پس ئې فرض قیام کړے وی - بس دا پوره دے - اګر که قرأت ئې نه وی کړے مونځ ئې کیږی - ځکه چه قرأت پے په دوه رکعته کښ فرض دے - نو دَ دے رکعت نه پس به ئې په نورو دوؤ کښ وُکی - نو که په نورو دوؤ کښ ئې هم وُنکه - مونځ ئې فاسد دے -

**مسئله** :- که دَ مسبوق هیر وُو - دَ امام دَ سلام پسے ئې په هیره سلام وُګرځاوُ - نو په مسبوق سجده سهوه لازمه ده - په آخر کښ به ئې کوی - وجه داده چه دے دَ امام دَ سلام نه پس منفرد ریوازے) شه - او که مسبوق دَ امام دَ سلام نه مخکښ سلام وُګرځاوُ په هیره نو سجده سهوه پے نشته - ځکه چه دے لا تراوسه مقتدی دے -

**مسئله** :- که امام څلور رکعته وکړه - اخیره قعده ئې هم وکړه - بیا په غلطئ سره پنځم رکعت ته پورته شه - نو که مسبوق ئې متابعت وکه - دَ مسبوق مونځ فاسد شه - او که امام اخیره قعده نه وه کړے او پنځم رکعت نه ودریده - او مسبوق ئې متابعت وکه - نو مونځ ئې نه فاسدیږی - البته که دَ پنځم رکعت سجده هم وکړے شوه نو مونځ دَ یو هم وُنه شه - نه دَ امام نه دَ مقتدی - نه دَ مسبوق - بلکه نفل به ګرځی - لکه چه مخکښ بیان شوی دی -

**مسئله** :- که مسبوق دَ امام سره په قدر دَ تشهد قعده وکړه - بیا دَ هغه دَ سلام نه مخکښ ودریده - بیا ورته معلومه شوه چه په امام سجده سهو واجب ده - نو که دے مسبوق دَ خپل رکعت سجده نه وی کړی - دَ امام سره دِ سجده سهو وکی - او په دے مینځ کښ چه ده قیام او قرأت او رکوع کړے هغه او نورځیده - بیځے بیا چه ودریږی - خپل رکعت به دَ سره شروع کوی - او که دَ خپل رکعت سجده ئې کړے وه - یا سجده خو ئې نه وه کړے لیکن دَ امام سره ئې په سجده سهو کښ ځان شریک نه که - نو پوازے دے په آخر کښ سجده سهو وکی (استحسانًا)

---

ے شامی وکبیری ۱۲ ؎ در مختار وکبیری ۱۲ ؎ در ودر دکبیری ۱۲ -

**مسئله** :- لاحق هغه چاته ویلے شی چه په امام پسے ئے اقتدا کړے وی بیائے یو رکعت یا ټول یا څه رکعتونه تلی وی۔ مثلاً په امام پسے ئے نیت تړلے ؤ خو بیائے اودس مات شه۔ نو اوداسه له لاړه۔ چه راغے څه رکعتونه تے شوی ؤ۔ دَ لاحق حکم دادے چه دے به مینځه خپل تلی رکعتونه اداکوی۔ دَ هغے نه پس که جماعت لا نه ؤ ختم شوے۔ او امام ئے ورساوُ۔ دَ امام متابعت به کوی۔ او که ختم شوے ؤ۔ نو خپل مونځ به پوره کوی۔ او لاحق چه کوم تلی رکعتونه اداکوی په هغے کښں به دے مقتدی گڼړلے شی۔ نو څرنګ چه په مقتدی قرأت نشته لاحق به هم قرأت نه کوی۔ یعنے الحمد او سورة دیل پے نشته۔ او څه رنګ چه دَ مقتدی په سهو سره سجده سهوه نه لاز میږی۔ دَ لاحق هم دغه حکم دے۔

او که یو سړے هم لاحق ؤ او هم مسبوق۔ مثلاً یو رکعت تے شوے ؤ۔ پس دَ هغے نه ئے په امام پسے نیت وتاړه۔ او په جماعت کښں دَ شرکت نه پس تے هم څه رکعتونه لاړل۔ نو کوم رکعت چه امام دَده دَ شرکت نه مینځه کړے دے دَ هغے په لحاظ سره دے مسبوق دے۔ او کوم رکعتونه چه تے پس دَ شرکت نه تلی دی۔ دَ هغے په لحاظ سره لاحق دے۔ داسے سړی له پکاردی۔ چه مینځه هغه رکعتونه اداکی۔ کوم چه تے پس دَ شرکت نه تلی دی۔ نو قرأت به په کښں نه کوی ځکه چه دے په هغے کښں لاحق دے۔ نو په قیام کښں به په قدر دَ قرأت خاموش ودریږی۔ او دَ قعدے دَ پاره به دَ امام دَ ترتیب خیال ساتی۔ بیا که جماعت ختم شوے ؤ۔ مونځ به ځان له پوره کی۔ او که نه ؤ ختم شوے۔ نو متابعت دَ امام به وکی او دَ امام دَ سلام نه پس به هغه رکعت ؤکی۔ کوم چه امام دَده دَ شرکت نه مینځه اداکړے ؤ۔ او په هغے کښں به قرأت کوی په شان دَ منفرد۔ ځکه چه دے دَ هغے په لحاظ سره مسبوق دے۔ او که جماعت ختم شوے ؤ۔ نو دَ لاحق والی د رکعتونو دَ فراغت نه بعد به دَ مسبوق والی رکعت سره دَ قرأته اداکی۔

مثلاً فرض که چه دَ ماسپخین جماعت ولاړو۔ یو رکعت شوے ؤ۔ زید راغے په دوئیم رکعت کښں شامل شه۔ دَدے نه بعد دَ زید اودس مات شه۔ او داسه له لاړه چه پس دَ اوداسه نه بیا راغے۔ په دے مینځ کښں جماعت ختم شوے ؤ۔ او

ے درمختار وردالمحتار ۱۲

زیں بناکول غواړی۔ نو وُس ورله پکاردی۔ چه په جماعت کښې دَ شرکت نه پس چه تے کوم رکعتونه تللی وُ۔ مینه هغه اداکی۔ خو داسے به ئے اداکوی۔ لکه مقتدی۔ یعنی قرأت به په کښې نه کوی۔ بلکه چپ به ودریږی۔ لکه په امام پسے چه ولاړوی۔ او دَ هغے په اول رکعت به قعده کوی۔ ځکه چه دغه اول رکعت دَ امام دویم رکعت وُ۔ او امام پسے قعده کړے وه۔ بیا په دویم رکعت پسے به قعده نه کوی۔ ځکه چه دغه دویم رکعت دَ امام دریم وُ۔ او په دریم رکعت پسے به قعده کوی ځکه چه دغه دریم دَ امام څلورم رکعت وُ۔ او امام پے قعده کړے وه هغه به وُکی۔ په دے طریقه چه ثناء اعوذ، بسم الله به وائی۔ بیا به الحمد او سورة ولولی۔ ځکه چه دے دَدے رکعت په لحاظ سره مسبوق دے۔ او چه دَدے رکعت دَدویمے سجدے نه سرپوره کی۔ بیا به قعده هم کوی۔ ځکه چه دا رکعت دَده څلورم دے په دے باندے قیاس که۔ هغه صورت چه دَلاحق والی دَ رکعتونو دَ فراغت نه بعد لا جماعت نه وی ختم شوے۔

**مسٔله** :- که دَ څلور رکعتی مونځ دَ امامت دَپاره مسافر مخکښې شه۔ او مقیم ورپسے اقتدا وکړه۔ نو امام چه دوه رکعته وکی۔ باقاعده به سلام وګرځوی او دا مقتدی به دَ هغه دَ سلام نه پس پاسی۔ خپل باقی دوه رکعته به پوره کی۔ خو په دے دوؤ کښې به دے قرأت نه کوی۔ یعنی الحمد او سورة به نه لولی۔ ځکه چه دے لاحق دے۔ نو په قیام کښې به په قدر دَ قرأت چپ وُدریږی۔

او که دا مقتدی مسبوق هم وُ۔ نو دَ مسبوق والی هغه به دَلاحق والی دَ هغے نه پس اداکوی۔ سره دَ قرأته۔ او دَ هغے په شروع کښې به ثناء، اعوذ، بسم الله باقاعده ولولی۔

دَبِنا صحیح کیدلو شرطونه | **مسٔله**[۲] :- که په مانځه کښې دَچا اودس مات شه هغه له جائزه ده چه اودس وکی۔ بیا دغه مونځ پوره کی۔ یعنی دَ مانځه څومره حصه چه ئے کړے ده۔ هغه شوے۔ خو باقی پوره کی۔ او دے ته بِنا ویلے شی لیکن په داسے صورت کښې مونځ بیا دَسره کول غوره دی۔ بناء غوره نه ده۔ او جائزه ده۔

**مسٔله**[۳] :- دَ بنا صحیح کیدو دَپاره ډیر شرطونه دی۔ یو[۱] شرط دا دے

---

[۱] درمختار و شرح المنیه ۱۲ [۲] درمختار ۱۲ [۳] شرح التنویر و شامی ۱۲

چه دغه حدث سماوی وی - یعنی اختیاری نه وی - دَ اختیاری مطلب دا دے چه په هغې کښې یا دَ هغې په سبب کښې بنده له دخل وی - لکه سړے قصداً اودس مات کړی - یا دَ چت دَ پاسه څوک روان وُ - دَ هغه دَ حرکت په وجه دَ بلۍ نه کټه راولویده - او دَ مونځ کونکي په بدن ولګیده - بدن ئې ویخ شه - نو چونکه په دے قسم صورتو نو کښې دا حدث اختیاری دے - بناء صحیح نه ده - بلکه مونځ ئې مات شه - خو دَ چت په دے مسئله کښې ځینې عالمانو اختلاف کړے دے -

دویم[۲] شرط دا دے چه دغه حدث موجب دَ غسل نه وی - که موجب دَ غسل وُ - لکه په مانځه کښې ئې په خراب فکر سره انزال وشه - مثلاً نو مونځ ئې مات شه - بناء صحیح نه ده -

دریم[۳] شرط دا دے چه دغه حدث نادر الوقوع (یعنی کم پیښیدونکے) نه وی - لکه قهقهه شوه یا بے هوشی وغیره -

څلورم[۴] دا دے چه په حال دَ حدث کښې ئې یو رکن نه وی ادا کړے -

پنځم[۵] دا چه په تلو راتلو کښې ئې یو رکن نه وی ادا کړے - نو که دَ حدث نه پس چه اودا سه له روان وُ - که په دغه حالت کښې ئې قرأت دَ قرآن وکه - یا دَ اودس پوره کولو نه پس په حالت دراتلو کښې - نو بیا بنا صحیح نه ده - مونځ به دَ سره کوی -

شپږم[۶] دا چه کوم فعل دَ مانځه سره منافی دے - هغه ئې نه وی کړے - نو که پس د دغه سماوی حدث نه ئې قصداً اودس مات کړه - یا ئې خبرے اوکړے نو بنا صحیح نه ده - مونځ ئې فاسد شه -

اووم[۷] دا چه دَ کوم کار نه بچ کیدل ممکن وی - بے ضرورته ئې دا سے کار نه وی کړے نو که اوبه نژدے موجود وے - او دے بے ضرورته دَ هغې نه اخوا نو روا وبوله لاړ - او دَ دواړو اوبو په مینځ کښې دَ دوؤ صفونو نه زیاته فاصله وه - وس بنا صحیح نه ده - هاں که نژدے اوبه په کوهی کښې وے - بیا دغه لرے اوبوله تلے شی - ځکه چه دَ کوهی نه اوبه راویستل مانع دَ بنا دی په مذهب مختار کښې - او دارنګ په اشارے سره اوبه طلبول هم مانع دی -

اتم[۸] دا چه پس دَ اودس ماتیدلو نه بے ضرورته په قدر دَ ادا کولو دَ یو رکن حصار شوے نه وی - بلکه فوراً اودا سه له روان شوے وی - هاں که دَ عذر په وجه حصار شوے وُ -

---

[۱] یعنی بے اودسی ۱۲

مثلاً ګنهه ډیره وه. یائے پوزه ماته شوے وه. بیا دا درنګ تیرول بناء لره نه منعه کوی. بنا صحیح ده.

نهم[۹] داچه مخکنی حدث ئے نه وی ظاهر شوے. لکه تیریدل د مُدے د مسحے شو. یا لیدل د تیمم کونکی شو اوبو لره. وغیره وغیره.

لسم[۱۰] داچه قضا فرض مونځ ورته نه وی یاد شوے. په داسے حال کښں چه دے صاحب ترتیب وی.

یولسم[۱۱] داچه مقتدی دغه مونځ بغیر د محلِ اقتدا نه بل ځائے نه پوره کوی. نو که د مقتدی یا د امام اودس مات شه. بیا اودس له لاړ. اودغه مونځ ئے هلته پوره کاؤ. او حال داؤ. چه د دغه ځائے نه اقتدا په امام لیسے صحیح نه وه. او جماعت لا نه وُ ختم شوے نو د دهٔ بنا صحیح نه ده. هله به صحیح کیږی. که د جماعت سره په ځائے د اقتدا کښں شریک شه.

دولسم[۱۲] داچه امام خپل خلیفه هغه څوک نه وی کړځوے چه هغه قابل نه وی د امامت. نو که په مانځه کښں د امام اودس مات شه. او په خپل ځائے ئے نابالغه هلک ودراؤ. یا ښځه. یا امی. نو د مقتدیانو مونځ هم مات شه. او د امام هم. اوس بنا صحیح نه ده.

**مسئله**[۱] :- که په مانځه کښں ئے اودس مات نه شه. خو مثلاً نجاست پے دومره ولګیدا چه مونځ ورسره نه کیده. نو په داسے صورت کښں بنا صحیح نه ده.

**مسئله**[۲] :- که چا ځان له مونځ کاؤ. او په مانځه کښں ئے اودس مات شه. نو هغه له پکار دی چه سمدستی اودس وکی. هرڅومره زر چه کیدے شی. لیکن اودس پوره پکار دے. یعنے کوم خبرے چه په اودس کښں سنت او مستحب دی. د هغے دے هم پوره پوره خیال وساتی. او څه خبره دے نه کوی. او په که تږے دے وے لرے دے نه ځی. غرض دا چه دکوم نقل وحرکت نه لابُدی وی د هغے نه دے زیاتے نه کوی نو چه اودس ئے وکه. وس د ده خوښه ده. که باقی مونځ دغه ځائے پوره کوی. او که بیا هغه مخکنی ځائے له ورځی. هلته ئے پوره کوی. خو غوره طریقه اوله ده. ځکه چه حرکت پکښں کم دے. او که په مانځه کښں د مقتدی اودس مات شه. نو هغه له هم پکار دی چه دوباره فوراً اودس وکی. پس د اودس نه که جماعت لا نه وُ ختم

شوے۔ شریک دے شی۔ او په خپل مینځنی ځائے دے ودریږی۔ او که په دغه امام پسے
بل داسے ځائے اودریږی چه اقتدائے صحیح کیده هم خیر دے۔
او که جماعت ختم شوے وُ۔ وُس دَ مقتدی اختیار دے۔که په مقام دَ اقتدا کښ
ئے پوره کوی۔ او که په ځائے دَ اودس کښ۔ خو غوره خبره دا خیری ده۔

**مسئله** :- که په مانځه کښ دَ امام اودس مات شه۔ نو هغه له پکار دی
چه سمد ستی اودس له روان شی۔ بے ضرورته دے نه حصاریږی۔ او په مقتدیانو
کښ چه کوم سړے صالح گنړی دَ پاره دَ امامت هغه دے په خپل ځائے خلیفه کی۔
په اشاره دے پوهه کی۔ یا دے محراب ته راکش کی۔ که امام په خپل ځائے مسبوق
خلیفه که نو جائیزه ده۔ خو مدرک خلیفه کول غوره دی۔
خپل خلیفه دے په اشارے سره پوهه کی چه په ما دومره رکعتونه وغیره
پاتے دی۔ دَ رکعتونو دَ پاره دے اشاره وکی په گوتو سره۔ مثلاً که یو رکعت
باقی وُ۔ نو گوته دے اوچته کی یوه۔ او که دوه باقی وو۔ نو دوه۔که رکوع پاتے وه۔ نو
لاس دے کیدی په زنګنونو۔که سجده پاتے وه نو په تندی۔ که قرأت پاتے وُ۔ نو
په خولے۔که سجده دَ تلاوت وه پے۔ نو په تندی او په ژبه۔ او که سجده سهو پے
وه۔ نو په سینه دے لاس کیدی۔
خو دا هله که خلیفه ته معلومه نه وه۔ او که علم وته وُ۔ چه فلانے فلانے رکن
پاتے دے۔ بیا اشارے ته ضرورت نشته۔ بیا دغه سابق امام چه اودس وکی۔ نو
که جماعت باقی وُ۔ په خپل خلیفه پسے دے ودریږی۔ په داسے ځائے کښ چه دَ
هغه نه اقتدا صحیح وی۔ او که جماعت ختم شوے وُ۔ هم بنا کولے شی۔ خو بنه ئے
خپله ده۔که دَ اودس په ځائے ئے کوی۔ او که خپل مینځنی ځائے له ورځی۔

**مسئله** :- که امام په قرأت کښ بند شه دَ وجے دَ شرم یا دَ خوف و دهشت
نه۔ نو خلیفه ودرول ورله جائز دی۔

**مسئله** :- که اوبه دَ جماعت په فرش کښ وے۔ یا هلته په څه لوښی وغیره
کښ بیا خلیفه وُدرولو ته ضرورت نشته۔که ودروی۔ او که نه۔ دواړه خبرے جائزے
دی۔ نو که امام په داسے صورت کښ خلیفه ونه دراوه۔ مقتدیان دے انتظار
وکی۔ او پس دَ اودس نه دے امام خپلے مصلیٰ له راشی۔ او باقی مونځ

---

۱؎ شامی ۱۲ ۲؎ بحرالرائق ۱۲ ۳؎ شرح المنیه ۱۲

دَامامت دے پوره کی۔

**مسئله** :- که امام په خپل ځائے څوک خلیفه ونه دراوه۔ بلکه مقتدیانو یو تن مخکښې که۔ یا څوک مقتدی په خپله مخکښې شه۔ او دَ امام په ځائے په نیت دَ امامت ودریږ دا جائز دی۔ څو هله که دغه ودریدو پورے امام دَ جمات نه لا نه وی وتے۔ او که مونځ دَ جمات نه باهر په میدان کښې وُ۔ نو هله چه امام دَ صفونو نه یا دَ سُترے نه نوی اوخته۔ او که امام ددے حدونو نه اوخته وُ۔ پس دَ هغے نه خلیفه ودریږ، نو دَ ټولو مونځ فاسد شه۔ وُس دغه مونځ خلیفه نشی پوره کولے۔

**مسئله** :- که امام په خپل ځائے مسبوق ودراوه۔ دغه مسبوق له پکار دی چه دَ امام نه څومره حصه دَ مانځه پاتے شوے ده۔ هغه اداکی۔ او په آخر کښې څوک مدرک په خپل ځائے وُدروی۔ دَپاره دَدے چه هغه سلام وَګرځوی نو دامسبوق به خپل مینځی فوت شوی رکعتونه شروع کی۔

**مسئله** :- دَخلیفه ودرولو نه پس بیا امام دَدے خلیفه مقتدی وَګرځی نوکه دَامام دَ اودس کولو نه پس جماعت ختم شوے وُ۔ دغه سابق امام به خپل مونځ په شان دَ لاحق پوره کوی۔ او دا رنګ حکم دے۔ دَهغه مقتدی چه اودس ئے مات شوے وی۔ بیا پس دَده دَ اودس نه جماعت ختم شوے وی۔ او دے کوی بِنا۔ نو خپل پاتے رکعتونه به پوره کوی په شان دَ لاحق۔

**مسئله** :- که امام په دے ګمان سره چه څما اودس مات شه۔ په خپل ځائے څوک خلیفه که۔ یائے بل څوک خلیفه نه که۔ څو دَ جماعت نه اووت۔ بیا معلومه شوه۔ چه اودس ئے نه دے مات۔ نو مونځ فاسد شه۔ وس بنا صحیح نه ده۔

**مسئله** :- فرض که چه امام خلیفه ودراوُ۔ یا دَ هغه په ځاے څوک مقتدی په خپله خلیفه شه۔ بیا دغه سابق امام اودا سه له دَ جمات نه بهر اووت۔ او هلته ئے خبرے وکړے۔ یائے دَ مانځه منافی بل عمل وکه۔ نو دَ هغه مونځ فاسد شه۔ او دَ مقتدیانو مونځ په حال دے۔

**مسئله** :- که مونځ کونکی لا په قدر دَ تشهد قعده نه وه کړے۔ اولیونے

ک شرح التنویر ۱۲ ک بحرالرائق ۱۲ ک در مختار و ردالمحتار ۱۲ ک شرح التنویر ۱۲ ک در و رد ۱۲ ک شامی ۱۲

شه - یا به هوشه - یا به غسل واؤ ختیده - یا ئے قصداً اودس مات که - نو مونځ ئے فاسد شه - بنا صحیح نه ده -

**مسئله** :- کوم وقت چه ئے په مانځه کښ اودس مات شه - بیا اودس له لاړه - او لیس دَ اودس نه په مانځه وردیده - په دے قول وقت کښ به هم دے حکماً په مانځه کښ کنړلے شي - بشرطیکه په مینځ کښ ئے څه خبرے وغیره نه وي کړے - نو که بنا کول نه غواړي - بلکه مونځ بیا دَ سره شروع کوي - مینه دے خبرے وکی - یا دے دَ مانځه سره منافي یو بل عمل وکی - دَ پاره دَ دے چه وُځي دَ اول مانځه نه - او دوباره دَ سره شروع کی -

**فائده** :- چونکه دَ بنا مسئلے گرانے دي - او اختلاف په کښ هم شته - او نن ورځ دَ علم کمی هم ده - نو غوره داده چه په داسے صورت نو کښ مونځ دَ سره اوکی - او بنا نه کوي - هاں که دَ امام اودس مات شه - نو خلیفه نیول ورله چینے عالمان وائي چه واجب دي - او چینے وائي که وقت پریږدُ نو افضل دي - او که لږ وُ نو واجب -

| پهٔ کومو چیزونو سره چه مونځ ماتیږي دَ هغے بیان | **مسئله** :- که په مانځه کښ ئے لا تعده اخیره په قدر دَ تشهد نه وه پوره کړے - او خبره ئے وکړه قصداً یا په هیره |
|---|---|

یا په سبب دَ نا پوهئ - یا په سبب دَ دے چه بل چا مجبور کړے وُ - نو په دے ټولو صورتو نو کښ ئے مونځ فاسد شه - بلکه مختار قول داد ے - چه په مانځه کښ که اوده شه - او خبره ئے په اوده وکړه - هم پے مونځ ماتیږي -

**مسئله** :- که په مانځه کښ دَ خولے نه آه اووت - یا اوه - یا اُف - یا ئے په آواز سره وُژړل - نو که داد څه درد یا دَ مصیبت په وجه وُو - مونځ ئے فاسد شه - او که دَ مرض په وجه بے اختیاره اووت - او شرعی مجبوري وه - نو نه ماتیږي - او که دَ جنت یا دَ دوزخ دَ ذکر په وجه وه - نو هم پے نه ماتیږي -

**مسئله** :- که په مانځه کښ ویرنجید - لیس الحمد لله ئے اووے - یا ئے ځان ته یرحمک الله اووے - په دے سره مونځ نه ماتیږي - خو نه دي ویل پکار - او که بل څوک اوپرنجید - او مونځ کونکی ورته په مانځه کښ یَرحَمُکَ الله اووے - نو مونځ ئے فاسد شه -

**مسئله** :- که چا مونځ کاؤ - او په دغه حالت کښ ورله چا زیرے ورکه - او ده دَ

---

له درمختار ورد المحتار ۱۲ - ته شامی ۱۲ ته درمختار ورد المحتار ۱۲ ته شرح التنویر ۱۲ ته شرح البدایه ودرمختار ۱۲ ته شرح التنویر ۱۲

هغه په جواب کښې اوویل - الحمد لله نو امام صاحبؒ وائی چه مونځ ئې مات شه -

دارنګ که په مانځه کښې ورله چا ناکاره خبر راوړې - او ده د هغې په جواب کښې اوویل إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ ۔ نو په دے سره ئې مونځ فاسد شه -

**مسئله**[1] :- که په مانځه کښې ئې د اَللّٰهُ اَکْبَرُ ویلو په وخت کښې د الله الف اُوږد که آللّٰهُ اَکْبَرُ ئې اووے - یا اَللّٰهُ آکْبَرُ ئې اووے - نو مونځ ئې نه کیږی - دارنګ که د اَکْبَرُ بے (ب) ئې ولاړه کړه - یعنے اَللّٰهُ اَکْبَارُ ئې اووے - په دے سره هم مونځ فاسدیږی -

**مسئله**[2] :- که چا مونځ کاوُ - او بل ورته آواز وکه - نو ده د هغه د خبرو لو د پاره چه زه په مانځه کښې یم - قرأت په زوره که - یا ئې سُبْحَانَ اللّٰه اووے - نو غوره قول دا دے - چه مونځ ئې نه فاسدیږے - دارنګ که مثلاً امام د قعدهٔ اخیرے په ځائے ودریږی - او مقتدی ورته په نیت د فتح سبحان الله اووے - نو خیر دے - بلکه ښه ده -

**مسئله**[3] :- که په مانځه کښې ئې په چا سلام واچاوُ - قصداً وی - او که په هیره - نو مونځ ئې فاسد شه - اګرکه علیکم ئې ورسره نه وی ویلی - خو صرف السلام ئې ویلے وی - دارنګ که مونځ کونکی د سلام جواب په خولے سره ورکه - نو هم پے مونځ فاسدیږی -

**مسئله**[4] :- که نیت ئې تړلے وُ - د څلورو یا د دریو رکعتو نو - او سلام ئې وګرځاوُ په قعدهٔ اولے - په دے ګمان سره چه مونځ مې پوره که - نو په دے سره مونځ نه ماتیږی - چه خبرے وغیره ئې نه وی کړے - یا دے ئې - او پوره دے کی - هاں که د ماسختن فرض ئې کول - او په دوه رکعته ئې سلام وګرځاوُ په دے ګمان چه دا تراویح دی - نو مونځ ئې فاسد شه - دارنګ که مقیم دوه رکعته فرض د ماسپخین وکړه - او سلام ئې په دے ګمان وګرځاوُ - چه زه مسافر یم - یا دا وخت د صبا دے - یا دا مونځ د جمعے دے - نو مونځ ئې فاسد شه -

دارنګ که چا په ولاړے بے د جنازے د مانځه نه په بل مونځ کښې سلام وګرځاوُ په دے خیال چه مونځ مې پوره که - او پوره کړے ئې نه و - نو مونځ ئې فاسد شه -

**مسئله**[5] :- که په مانځه کښې ئې غاړه تازه کړه - او څه حروف تے پیدا شو -

---

[1] شامی ۱۲ [2] درمختار و شامی ۱۲ [3] منیه و غنیه ۱۲ [4] درمختار و ردالمحتار ۱۲ [5] شامی و غنیه ۱۲

نو مونځ ئې فاسد شه. هاں که د شرعي مجبورئ صورت وُ. بیا خیر دے. او که د یو صحیح غرض د پاره ئې غاړه تازه کړه. لکه تحسین د آواز شه. نو ځینې عالمان وائی صحیح خبره داده چه نه ماتیږی. او ځینې وائی چه نه بلکه ماتیږی.

**مسئله**:- که په مانځه کښې ئې په کتاب یا په څه خط نظر وکتیده. او پوهه پې نه شه. یا د هغې مطلب ئې ذهن ته راغئ خو په ژبه ئې ونه لوست. نو صحیح خبره داده چه مونځ پې نه ماتیږی. او که په ژبه ئې اووے. نو مونځ پے ماتیږی.

**مسئله**:- که په مانځه کښې ئې په قرآن شریف کښې کتل. او د هغې نه ئې قرأت کاؤ. نو مونځ ئې مات شه. لیکن کوم مقدار چه ئې ولوست. که هغه ورته په یادو یاد وُ. او قرآن شریف ئې اوچت کړے نه وُ. او قرأت ئې کاؤ. نو مونځ پې نه فاسدیږی. او ځینې عالمان وائی چه کم از کم یو آیت په قرآن شریف کښې په کښې ولولی. او هغه ئې په یادو یاد نه وی. هله به پې مونځ ماتیږی.

**مسئله**:- که په مانځه کښې ئې عمل کثیر وکه. او دغه عمل د مانځه د جنسه نه وُ. او د مانځه د اصلاح د پاره هم نه وُ. نو مونځ پې فاسدیږی. او عمل کثیر هغه دے چه د لرے نه سړے دا مونځ کونکے سره د دغه عمله ایښی. غالب ګمان له ئې دا راځی چه دے په مانځه کښې نه دے. هاں که دغه عمل د مانځه د اصلاح د پاره وُ. لکه اودس ئې مات شه. او اراده ئې د بناوه. پس اودس له لاړ. راغئ. په دے عمل کثیر سره ئې مونځ نه ماتیږی. بنا صحیح ده. لکه چه مخکښې ذکر شوی دی.

**مسئله**:- که په مانځه کښې ئې څه اوخوړل. یا وُ سکل. نو مونځ ئې فاسد شه. بلکه یوه دانه د کونځلے که ئې اوچته کړه. او وے خوړه. اګر که په هیره سره وی. نو مونځ پے ماتیږی.

هاں که په غاښونو کښې ئې د خوراک څه شے نښتے وُ. او وُ د چنے د دانے نه کم او په مانځه کښې ئې تیر که. نو مونځ پې نه فاسدیږی. او که د چنے هومره وُ. یا ئے زیات وُ. نو مونځ پے فاسدیږی.

**مسئله**:- که څه خوږ شے ئې په خوله کښې ایخے وُ. نه ئې وُ جویلے. بیائے

---

له شرح البدایه ۱۲ ته بحر رایق ددر مختار ۱۲ سه شامی ۱۲ لکه زیلعی ۱۲ شه خلاصة الفتاوی ۱۲

ورسره مونځ کاوه- اوخوږ والے ئے تیریده - نو مونځ ورسره نه کیږی-

**مسئله** :- که څه خوږ شے ئے اوخوړو- او تیرئے که- خوله ئے صفا کړه- او مونځ ئے شروع که- خوخوند دَ خوږ والی ئے دَ خولے نه نهٔ وتلے- بلکه دَ تو کانړو سره تیریده- نو په دے سره مونځ نه فاسدیږی۔

**مسئله** :- که څوک مونځ کاوُ- او په دغه حالت کښ ئے بچی تے وروده- نو مونځ ئے فاسد شه- هاں که پئے ئے بالکل نه وی راکوز شوی- نو مونځ ئے نه ماتیږی-

**مسئله** :- په حالت دَ مانځه کښ دَ خپل امام نه سوا بل چاله په فتح ورکولو سره مونځ فاسدیږی- یعنے که په قرأت کښ چا غلطی وکړه- او دے مونځ کونکی ورته په نیت دَ فتحے سره هغه ځائے برابر که- نو په دے سره دَده مونځ فاسد شه-

**مسئله** :-که مقتدی خپل امام له فتح ورکړه- په دے سره مونځ نه فاسدیږی نه دَ مقتدی او نه دَ امام- برابره خبره ده- چه امام په قدر دَ ضرورت قرأت کړے وی- او که نه- او بل آیت ته ئے انتقال کړے وی- او که نه- او فتحه مکرره شوی وی- او که نه- صحیح خبره هم داده- چه ذکرشوه-

**مسئله** :- مقتدی له پکار دی چه په فتح ورکولو کښ جلدی نه کوی- داسے کول مکروه دی-

هاں که سخت ضرورت وُ- مثلاً امام غلط ولوست او مخکښ ئے نورلوستل غوښتنه- یا چپ ودریده- او رکوع ئے نه کوله- بیا ورله فتح ورکول پکار دی- او که داسے ضرورت ئے نه وُ- او فتحه ئے ورکړه هم په مونځ نه فاسدیږی- لکه چه مخکښ ذکر شو-

**مسئله** :- امام له پکار دی چه مقتدی په فتحه ورکولو نه مجبوره کوی- مکروه دی- بلکه په داسے حالت کښ دے بل آیت ته انتقال وکی- چه دَ هغے په یوځائے کولو سره معنیٰ نه خرابیږی- یا دے بل سورة ته انتقال وُکی- یا دے رکوع وُکی- هله که په قدر دَ ضرورت ئے قرأت کړے وی

ے خلاصة الفتاوےٰ ۱۲ ے شرح التنویر ۱۲ ے بحرالرائق ودر مختار ۱۲ ے بحرالرائق و درمختار ۱۲ ے بحرو درمختار ۱۲ ے بحروشامی ۱۲

یعنے څومره مقدار چه فرض دے۔ هغه۔ او بل روایت دا دے چه مقدار مسنونه۔

**مسئله**[1] :- که مقتدی دَ بل چا لوستل واوریدل۔ خپل امام لہ ئے دَ هغے نه فتحه ورکړه۔ یا ئے په قرآن شریف کښں کتل۔ او خپل امام لہ ئے دَ هغے نه فتحه ورکړه۔ او امام دغه فتحه واخستله۔ نو دَ ټولو مونځ فاسد شه۔

**مسئله**[2] :- که چا مونځ کاؤ۔ او بل هغه چا له ئے فتحه ورکړه چه هغه دَ ده امام نه وُ۔ نو دَ فتحه ورکونکی مونځ فاسد شه۔ برابره خبره ده چه هغه بل په مانځه کښں وی او که نه۔ لکه چه مخکښں بیان شوی دی۔

**مسئله**[3] :- که مونځ کونکی له چا فتحه ورکړه۔ او فتحه ورکونکے دَ ده مقتدی نه وُ۔ برابره خبره ده چه په مانځه کښں وی۔ او که دَ مانځه نه بهر۔ نو دَ فتحه آخستونکی مونځ به فاسد شی۔ هاں که ده ته په خپله یاد شو۔ او دَ هغه دَ فتح ورکولو په کښں څه دخل نه وُ۔ او ده صرف په خپلو یادو اعتماد وکه۔ وُئے لوست نو مونځ ئے نه فاسد یږی۔

**مسئله**[4] :- که دَ امام اودس مات شه۔ او په خپل ځائے ئے څوک ونه دراؤ۔ او دَ ده په ځائے څوک مقتدی په خپله هم ونه دریں۔ او امام دَ جمات نه باهر اووت نو دَ ټولو مقتدیانو مونځ فاسد شه۔ خو دَ امام نه دے فاسد شوے۔ نو امام ځان له بِنا کولے شی۔ که شرائط دَ بنا موجود وی هله۔

**مسئله**[5] :- که امام په خپل ځائے څوک داسے خلیفه وُدراوه۔ چه هغه قابل دَ امامت نه وُ۔ لکه یوازے سړے یا نابالغه هلک یا ښځه نو مونځ دَ ټولو مقتدیانو فاسد شه سره دَ امام نه۔

**مسئله**[6] :- که په مانځه کښں دَ سړی سره محاذات دَ ښځے راغے۔ یعنے ښځه دَ سړی سره داسے ولاړه ده چه دَ یو اندام دَ بل دَ اندام سره مقابل وُ۔ نو مونځ ئے فاسدیږی۔ خو هله که دا تلونکی شرائط موجود وی۔ نو که په سجدے کښں دَ ښځے سر دَ سړی دَ خپو سره محاذی شه۔ هم به مونځ فاسد یږی۔ او هغه شرائط دا دی :-

(۱) ښځه بالغه وی۔ ځوانه وی۔ او که بوډئ یا نابالغه وی۔ خو قابل دَ جماع۔ نو که نابالغه وړه جینئ په مانځه کښں محاذی شوه۔ مونځ نه فاسد یږی۔

[1] بحر رایق ۱۲ [2] شامی ۱۲ [3] رد المحتار ۱۲ [4] دروشامی ۱۲ [5] دروشامی ۱۲ [6] عالمگیری ۱۲

(۲) دواړه په مانځه کښې وي - نو که يو په مانځه کښې ؤ - او بل نه - نو په محاذات سره ئې مونځ نه فاسديږي -

(۳) په مينځ کښې څه حائل نه وي - نو که په مينځ کښې څه پرده وه - يا په مينځ کښې دومره ځائے خالي ؤ - چه يو سړے پکښې ودريدے شه - نو مونځ نه فاسديږي -

(۴) د مانځه د صحت شرطونه په ښځه کښې موجود وي نو که ښځه بيوشے وه - يا په حالت د حيض او نفاس کښې وه - د هغې په محاذات سره نه فاسديږي -

(۵) مونځ د جنازے نه وي - که د جنازے په مانځه کښې محاذات راشي - نو مونځ پے نه فاسديږي -

(۶) دا محاذات کم نه کم په قدر د يو رکن باقي وي - نو که محاذات د دومره مقدار نه دکم وقته پورے ؤ - مثلاً دومره لږ ساعت پورے ؤ - چه په هغې کښې رکوع يا سجده نه شوه کيدے - بيا زائل شه - نو په دے سره مونځ نه فاسديږي -

(۷) تحريمه د دواړو يوه وي - يعنې دا ښځه د دغه سړي مقتديه وي - يا دواړه مقتديان وي د يو امام -

(۸) د ښځے د امامت نيت امام د مانځه په شروع کښې کړے وي - که امام په ابتدا کښې د دے د امامت نيت نه ؤ کړے نو په محاذات سره ئے د سړي مونځ نه ماتيږي بلکه د دے مونځ ونشه

مسئله :- که چا سجده د تلاوت اد اکوله او په هغې کښې ئې محاذات د ښځے سره راغے - نو سجده د تلاوت پے نه فاسديږي -

مسئله :- که په مانځه کښې د ارنګ محاذات ښځې هلک سره راغے - نو اصل مذهب دا دے - چه مونځ پے نه فاسديږي -

فائده :- د محاذات مسئله کم پيښيدونکے ده - له دے وجې نه زيات تفصيل ونه ليکلے شه

مسئله :- که سړے په مانځه کښې ؤ - او دے په دغه حالت کښې ښځے ښکل که - نو د ده مونځ نه ماتيږي - هاں که د سړي شهوت شوے وي - نو مونځ به ئے مات شي - او که ښځے مونځ کاؤ - او هغه په دغه حالت کښې سړي ښکل کړه - نو د ښځے مونځ لاړ - برابره خبره ده چه د ښځے شهوت شوے وي او که نه - او سړي په شهوت سره ښکل کړې وي او که بے شهوته -

مسئله :- که په مانځه کښې ئے سجده په يو بيلمازه ځائے وکړه - او د پاسه پے څه

---

له هدايه ۱۲ ئه در مختار ۱۲ ئه شرح التنوير وشامي ۱۲ ئه در مختار وشامي ۱۲

پاک شی نو ـ نو ظاهر الروایت دَامام صاحبؒ نه داده چه مونځ ئې ونشه ـ اګر که بیائې دغه سجده په یو پاک ځائې د اګر څوک وي ـ

**مسئله** :- که په مانځه کښې دَ څه ضرورت په وجه دَ سجدې ځائې ته په یو واړی وړاندې شه ـ او سینه ئې دَ قبلې نه نوه ګرځیدلې ـ نو که امام وُ ـ او دَدهٔ او دَ سجدې دَځائې په مینځ کښې فاصله دوه مره وه ـ لکه چه دَده او دَ شاته صف په مینځ کښې ـ نو دومره حرکت چه ئې کړې دې ـ په دې سره ئې مونځ فاسد نه شه ـ او که زیاته وي نو فاسد یږي ـ او که مقتدي وو ـ او مخکښې ئې صفونه وُو ـ او په یو ځل په قدر دَ صف وړاندې شه ـ نو مونځ ئې نه فاسد یږي ـ او که منفرد وُ ـ او په یو وار دَ سجدې ځائې ته وړاندې شه مونځ ئې نه فاسد یږي ـ بلکه په دې دریو اړو صورتو نو کښې دکوم حده پورې چه وړاندې کیدل مفسد نه دي ـ لکه چه ذکر شو ـ که په یو وار هغې ته وړاندې شه ـ بیا په قدر دَ اداکولو دَ یو رکن حصار شه ـ او بیا دومره مقدار وړاندې شه ـ نو هم نه فاسد یږي بلکه په دې طریقه هر څو ځله چه وړاندې شي ـ نه فاسد یږي ـ خو هله چه اختلاف دَ مکان نه وي راغلې ـ یعنې که مونځ ئې په جمات کښې کاؤ ـ نو چه دَ جمات نه نوي وتې او که په ځنګل کښې ئې کاؤ ـ نو چه دَ صفونو دَ حد نه نوي باهر شوې ـ مثلاً ـ او دا رنګ تفصیل دې په هغه صورت کښې چه په مانځه کښې حرکت وکې شاته ـ یا ښي جانب ته ـ یا ګس ته ـ او سینه ئې نه وي ګرځیدلې دَ قبلې نه ـ لیکن په مانځه کښې بې دَ سخت ضرورت نه داسې حرکت کول منع دي ګناه دې ـ

**مسئله** :- که په مانځه کښې ئې عورت ښکاره شه ـ یا په نجاست ولګیدو ـ کوم مقدار چه مانع وې ـ هغه او کم از کم دَ دومره وقت پورې وُ ـ چه درې ځله پکښې سبحان الله ویلې کیدې شه ـ نو دَ احتیاط خبره داده ـ چه مونځ ئې فاسد یږي ـ

**مسئله** :- که چا یو رکن په مانځه کښې پریخود ـ او بیائې ادا نکه ـ نو مونځ ئې مات شه ـ دا رنګ که مقتدي په حالت دَ خوب کښې یو رکن دَ امام سره ادا که ـ او بیائې په ویخه دَ هغې اِعاده ونکړه ـ نو مونځ ئې فاسد شه ـ

**مسئله** :- که دَ مونځ کونکي په مخ کښې سپې یا پیشو یا خاروې یا انسان تیر شه ـ نو په دې سره مونځ نه ماتیږي ـ لیکن تیریدونکې انسان ګنهګار

---

۱ شرح التنویر ورد المحتار وغنیه ۱۲ ۲ غنیه ـ ۳ در مختار ۱۲ ۴ در مختار وشامي ۱۲ ۵ شامي ۱۲

دے - برابره خیره ده - چه سړے وی اوکه ښځه - په حدیث شریف کښې راغلی دی چه دَ مونځ کونکی په مخ کښې چه څوک تیریږی - که هغه ته معلومه دے چه په دے کښې څومره گناه دے - نو دَ څلویښت کاله پورے به په خپل ځائے ولاړ شوے وُ - یعنې په ځائے به دومره موده ولاړ وُ - تیرشوے به نه وُ - ختم شه مضمون دَ حدیث - نو مونځ داسے ځائے پکار دے - چه مخکښې څوک تیریږی را تیریدی نه او خلقو ته پکښې تکلیف نه وی -

دَ سُترے بیان

**مسئله** :- که په ځنګل کښې یا په میدان کښې مونځ کوی - امام وی او که منفرد - هغه له مستحب دی چه خپلے مخے ته دَ وروزو په برابر ښی یا کس جانب ته یو داسے شے ودروی - چه کم نه کم دَ یو لاس نه اوږد وی - او دَ گوتے نه غټ - دے ته سُتره ویلے شی - فائده ئے داده - چه دَ دے نه آخوا که څوک تیریږی خیر دے - لیکن دَ سُترے او دَ مونځ کونکی په مینځ کښې تیریدل منع دی - او دَ امام سُتره کافی ده دپاره دَ مقتدیانو - او که مونځ ئے په جماعت کښې کاوُ - یا په داسے ځائے چه مخے ته دَ تیریدو دا تیریدو خطره نه وه - نو دَ سُترے ودرولو ته ضرورت نشته -

**مسئله** :- که په جماعت کښې یا په کور کښې ئے مونځ کاوُ - نو دَ هغه په مخ کښې تیریدل منع دی - دَ هغه دَ قدم نه مخامخ دَ قبلے دَ دیوال پورے چه څومره فاصله ده - دَ دے ټولو حکم یو دے - یعنې دَ مونځ کونکی مخے ته که سُتره نه وه - نو تیریدل منعه دی - او که جماعت ډیر لوئ وُ - یائے مونځ کاوُ - په ځنګل کښې نو دَ هغه دَ سجدے په ځائے تیریدل منعه دی - او ځینے عالمان وائی چه کوم وقت سړے په عاجزئ سره مونځ کوی - او ځائے ته دَ سجدے ته گوری - نو په دغه حالت کښې چه ئے نظر دَ کومے پورے رسیدلے - په دغه حد کښې تیریدل منعه دی - او هورته خیر دے -

**مسئله** :- دَ مونځ کونکی په مخ کښې په آس سور تیریدل هم منعه دی - داړنګه که چا مونځ کاوُ په یو اوچت ځائے او دَ هغے اوچت والے دَ تیریدونکی دَ قامت نه کم وُ - او دَ تیریدونکی ځینے اندامونه دَ مونځ کونکی دَ ځینے اندامونو سره محاذی کیدل نو دا هم منعه دی - خو په دے صورت کښې نور قول وبه دَ عالمانو هم

ـه درمختار ورد المحتار ۱۲ ـه درمختار ورد المحتار ۱۲ ـه درمختار ورد المحتار ۱۲ -

شته

**مسئله**:- دَ مونځ کونکی نه تر مخه رنګ چه تیریدل منعه دی۔ دارنګ هغه نه مخامخ راتلل هم منعه دی۔

**مسئله**:- که دَ مونځ کونکی په مخ کښې سُتره نه وه۔ او څوک تیریده۔ یا سُتره وه۔ خو دَ سُترے نه دے خوا تیریده۔ نو که دے ئے په مناسبه طریقه دفعه کول غواړی۔ اجازت[۱] ورته شته۔ مثلاً په لاس دے ورته اشاره وکی۔ یا په سترګو یا په سر۔ یا دے سُبحان الله اووائی۔ یا دے لږ قرأت په زوره کی۔

لیکن ځینې عالمان وائی چه په سرّی مونځ کښې جهر نه دے پکار۔ په هرحال دوه خبرے دے نه جمع کوی۔ بلکه یوه دے وکی۔ یعنے یا اشاره یا تسبیح یا جهر او که دَ منعه کولو دَ پاره ئے بل څه عمل وُکه۔ او هغه عمل کثیر وُ۔ نو مونځ به ئے ناسد شی۔

کوم خبرے چه په مانځه کښې مکروه دی دَ هغے بیان

**مسئله**:- په مانځه کښې دَ ځیلے جامے یا دَ بدن سره لوبے کول مکروه تحریمی دی۔ دارنګ کینټۍ اړول یا راټول هم مکروه دی۔ لیکن که دَ هغے په وجه ئے پوره سجده نه شوه کولے۔ نو په یو وار دوه برابر کولو کښې ئے کراهت نشته۔ خو په داسے حالت کښې ئے نه برابر کول غوره دی۔

**مسئله**:- سجدے له دَ تلو په وقت کښې ځان نه جامے راټولول مکروه دی بلکه ځینې عالمان وائی۔ چه مکروه تحریمی دی۔ اګر که دَ خاورو او دَ دوړو نه دَ ساتلو په خیال وی۔

**مسئله**:- که په مانځه کښې وو ریده په داسے حال کښې چه لمن ئے راټوله کړے وه۔ یا مثلاً دَ اودس دَ پاره ئے لستونړی رانغښتی وُو۔ بیا پس دَ اودس نه دغه شان په جماعت کښې په جلدئ شریک شه۔ نو اے په مانځه کښې به ئے کوزوی او که نه۔ نو په دے کښې اختلاف دے۔ خو ظاهره خبره داده۔ چه دَ هغے په کوزولو کښې که عمل کثیر نه ضرورت نه وُ۔ نو برابر دے کی۔

**مسئله**:- کوم ځائے چه فکر او خیال پراګنده کیږی۔ او دَ مانځه په توجه

---

[۱] درمختار ورد المحتار ۱۲ [۲] شامی په کتاب الحج کښې دَ بعضے عالمانو نه دا خبره نقل کړے ده چه دَ کعبے دَ څنګه که چا مونځ کاوه۔ نو په مخ کښې تیریدل جائز دی منعه کول ئے نه دی پکار ۱۲ [۳] شامی و شرح البدایه ۱۲ [۴] شرح التنویر ۱۲ [۵] در و شامی ۱۲ [۶] شرح التنویر ۱۲

کښې فرق راځی - هلته مونځ کول مکروه دی - لکه ځائے د لهو لعب وغیره -

مسئله[1] :- که په مینځ کښې څه حائل نه وُ - نو د بل مخ ته مونځ کول مکروه تحریمي دی - او که مخ ته څوک ناست یا ولاړ وُ - خبرے ئے کولے - یائے څه کار کاوُ - نو د هغه شاته مونځ کول مکروه نه دی - لیکن که هغه ته د حصاریدو په وجه تکلیف وَ نو په داسے حالت کښې ...... د هغه شاته نه ودریږی - دارنګ که هغه دو مره په زوره خبرے کولے چه ده ته په مانځه کښې د خطا کیدو او د سهو کیدو یره وه بیا دغه ځائے مونځ کول مکروه دی -

مسئله[2] :- په مانځه کښې د کوتو نه تقا اېستل بے ضرورته په ګنثی لاس ایخودل او ښی جانب نه یا ګس جانب ته په مخ سترګو سره نظر کول دا ټول خبرے مکروه تحریمي دی - هاں که مخ ئے قبلے ته برابر وُ - خو د سترګو په کونو نو ئے ښی یا ګس جانب ته وکتل - نو مکروه خو نه دی - لیکن بے ضرورته دے دا هم نه کوی -

مسئله[3] :- که د سلام جواب ئے په خولے ورکه - نو لکه چه په تیر شوی باب کښې بیان شوی دی - مونځ ئے مات شه - او که په لاس په سرے ورکه نو مکروه دی -

مسئله[4] :- که مخ ته قرآن شریف وُ - یا توره وه - آویزانه دی - او که پرته - یا مخ ته ډیوه بلیده - یا شمعه - نو په دے سره په مانځه کښې څه کراهت نه راځی او ځینے عالمان وائی چه د ډیوے او د شمع په صورت کښې کراهت شته - لیکن غوره خبره اوله ده -

مسئله[5] :- که سړی سرتور سر مونځ کاوُ - نو دا مکروه دی - البته که د خشوع او د عاجزئ په نیت ئے داسے کول نو مکروه نه دی - دارنګ که څه شے ئے د پسرولو نه مونده - نو په دے صورت کښې هم کراهت نشته -

مسئله[6] :- که غوپئ یا بیتکے تے په مانځه کښې پریوت - نو غوره داده چه بیائے په سر کی - لیکن که تړل ئے غوښته - یا بار بار اوچتول - یعنے عمل کثیر په کښې راته - نو نه دے راخلی -

مسئله[7] :- نارینه له په سجدے کښې دواړه څنګلے په ځمکه پریښتل مکروه

---

له عالمګیری وشامی ۱۲ ئه شرح البدایه ۱۲ ئه درمختار ۱۲ ئه شرح التنویر ۱۲ ئه درمختار ۱۲ ئه درمختار ۱۲ ئه هدایه ۱۲

تحریمي دی۔

مسئلہ[۱] :۔ په کوم فرش وغیره چه دَ جاندار ځیز تصویرونه ږغلږي شوي وي۔ په هغې مونځ کیږي۔ کراهت په کښې نشته۔ وے هله که سجده په تصویرونه راتله لیکن دَ دا سے شي استعمال او دا رنګ تصویر په کور کښې ساتل منعه دی۔

مسئلہ[۲] :۔ که دَ جاندار شي تصویر دَ مونځ کونکي دَ سر دَ پاسه وُ۔ مثلاً په چت کښې۔ یا مخې غاړے ته وُ۔ یا ښي جانب ته یا ګس جانب ته۔ نو مونځ مکروه دے۔ دا رنګ که شاته وُ۔ نو هم کراهت راځي۔ او که دَ خپو دَ لاندے وُ۔ بیا کراهت نشته۔ او که تصویر دومره وړوکے وُ۔ چه که په زمکه کیخودے شي۔ نو سړے ئې په ولاړے ښه نه شي لیدے۔ یا پوره نه وُ۔ بلکه سر یا مخ ئې پریکړے شوے او وران کړے شوے وُ۔ یا تصویر دَ غیر ذي روح وُ۔ نو په دے صورتونو کښې په مانځه کښې کراهت نه راځي۔

مسئلہ[۳] :۔ په مانځه کښې آیتونه یا سورتونه یا تسبیح وغیره په ګوتو شمارل مکروه دي۔ هاں که دَ یادداشت دَ پاره ئې صرف په ګوتو زور کاوه۔ نو خیر دے۔

مسئلہ[۴] :۔ په دویم رکعت کښې دَ اول رکعت دَ قرأت نه دَ درے آیتونو په مقدار زیات قرأت مکروه دی۔

مسئلہ[۵] :۔ په مانځه کښې سترګے بندساتل مکروه دي۔ لیکن که په سترګو پټولو سره ئې خشوع خضوع زیاتیده او په مانځه کښې ئې یکسوئی راتله۔ بیا کراهت نشته۔

مسئلہ[۶] :۔ په مانځه کښې بے ضرورته خراشکے توکل غورزول مکروه دي۔ هاں که ضرورت وُ۔ مثلاً دَ توخي سره خراشکے راغے۔ نو ګسے غاړے ته ئې توکلے شي۔ وے هله که په جماعت کښې نه وُ۔ او که په څه ذړوکي ئې اومکه۔ نو هم خیر دے۔ لیکن قبلے طرف ته او ښي طرف ته دے نه توکي۔

مسئلہ[۷] :۔ که په یو رکن کښې ئې بې ن په یو لاس درے پیرے ګرځاوُ۔ او په هر وار ئې لاس اوچت که۔ نو دَ عمل کثیر په وجه ئې مونځ فاسد شه۔

مسئلہ[۸] :۔ په مانځه کښې دَ دواړو ولاړو خپو په پوندو سره کیناستل مکروه دي۔ او دَ سپي په شان کیناستل هم مکروه تحریمي دی۔ دَ سپي ناسته داده۔ چه دواړه ورنونه ئې ودرولي او سینے ته ئې راښکلي دے کړي وي۔ او کوناټي ئې په زمکه لګولي وي۔ او

[۱] شامی ۱۲ [۲] شرح التنویر ۱۲ [۳] در مختار ۱۲ [۴] در مختار ۱۲ [۵] شرح التنویر ۱۲ [۶] منیه وکبیری ۱۲ [۷] شامی وکبیری ۱۲ [۸] در مختار ورد المحتار ۱۲

لاسونه ئے ایخی وی په زمکه -

مسئله :- په مانځه کښې مربّع کیناستل مکروه دی - لیکن که د عذر په وجه با قاعده نه شي کینا ستے - نو بیا هر څنګ چه کینی خیر دے -

مسئله :- په مانځه کښې تلثّم مکروه تحریمي دے - ځکه چه دا طریقه د مجوسیا نو ده - په وقت د آتش پرستئ کښې - او تلثّم دے ته وائی - چه سرې خوله او پوزه په څپیړه وغیره تړلی وی - یعنې جبونړ او تربوزک ئے وهلے وی -

مسئله :- اعتجار مکروه تحریمي دے - اعتجار دے ته وائی - چه پټکے ئے په سر تاؤ کړے وی - او مینځ ئے خالی پریخے وی - لاندے تے ټوپئ وغیره نه وی -

مسئله :- مونځ په بنو جامو کښې مستحب دے - او پوازے په پرتوګ کښې جائز دے - خو مکروه دے - دارنګ کوم جامے چه بے کاره وی - او د زمیدارے وغیره کاروبار د پاره ئے اغوندی - په هغے کښې مکروه دے - لیکن که نورے نه وے - بیا په کښې کراهت نشته -

مسئله :- روپئے یا پیسه - یا بل دا سے شے ئے که په خوله کښې نیولے وُ او قراءت ئے ورسره با قاعده کولے شه - او مونځ ئے ورسره کاؤ - دا مکروه تنزیهي دی - او که د هغے په وجه ئے په مانځه کښې قراءت نه شه کولے - نو مونځ ئے ورسره نه کیږی -

مسئله :- که څادرئے په اوګو هسے ارتولے وُ - یا په څټ یا په سر او دواړه پیڅکی ئے زنګیدے - یعنې پلونه ئے په ځان اچولی نه وُ - نو دا سدل دے - مکروه تحریمي دے - دارنګ که قمیص یا چُغه وغیره ئے هسے په ځان اچولے وُ - او لاسونه ئے په لستونړو کښې نه وُ ورکړی - اغوستے ئے نه وه - دا هم مکروه تحریمي دی -

مسئله :- په فرض مانځه کښے بے ضرورته په دیوال وغیره تکیه لګول مکروه دی -

مسئله :- که طعام تیار وُ او دے ډیر وږے وُ - نو مینه دے طعام وخوري بیا دے مونځ کوی - په داسے حالت کښې مینه مونځ کول مکروه دی - هاں !

---

له درمختار ۱۲ سله درمختار ورد المحتار ۱۲ سله منیه وغنیه ۱۲ سله شرح التنویر ۱۲ سله درمختار وشامی ۱۲ سله منیه ۱۲ سله شامی ۱۲

که دَ مونځ قضاکیدلو یره وی - نو ادا دے کی -

**مسئله** :- که داړه یالویځ بول یاباد وړلوه په زوره ورغلی وُ- او په وقت کښې گنجایش وُ- نو په داسے حالت کښې سونځ کول مکروه تحریمي دی - برابره خبره ده - که مونځ ئے شروع کړے وی - او که نه -

**مسئله** :- که سورة ئے لا نه وُ پوره کړے - یو کلمه دوه لا پاتے وے - چه رکوع له لاړو - او په رکوع کښې ئے پوره کوی - نو دا مکروه دی -

**مسئله** :- په مانځه کښې یو سورة مقرره ول چه همیشه صرف دغه سورة لولی نه - بل - دا مکروه دی -

**مسئله** :- امام له په محراب کښې دننه وودریدل مکروه تنزیهي دی - هاں که قدمونه ئے باهر وو - او سجده ئے په محراب کښې دننه راتله - نو په دے کښې کراهت نشته -

**مسئله** :- دَ امام یوائځ وودریدل په یو داسے اوچت ځائے چه دَ هغے اوچتوالے یو شرعي گز وی - یا دَدے نه زیاتت وی - مکروه دی - هاں که دَ امام سره څه مقتدیان هم په دغه ځائے وو - نو بیا خیر دے - او ځینې عالمان وائی - چه دَ امام دَ وودریدلو ځائے که په واقع کښې دَ یو شرعي گز نه کم وُ - خو په نظر کښې دَ دغه ځائے اوچتوالے ممتاز معلومیده نو هم کراهت شته - په هغه صورت کښې چه امام دغه ځائے ولاړوی تنها -

**مسئله** :- که ټول مقتدیان دَ امام نه اوچت ولاړ وُو - نو دا هم مکروه دی - او که ځینې دَ امام سره هم وُو - نو بیا خیر دے - او که ضرورت وُ - مثلاً خلق ډیر وُ - او ځائے کم وُ نو په داسے صورت کښې که تنها امام بنکته ولاړوی - هم خیر دے - کراهت په کښې نشته - او د ارنگ حکم دے په اولو دواړو مسئلو کښې - په حالت دَ ضرورت کښې -

**مسئله** :- مقتدی له دَ امام نه مخکښې رکوع یا سجده کول یا دَ هغې نه سرا اوچتول مکروه تحریمي دی -

**مسئله** :- مقتدی له په امام پسے قرائت کول مکروه تحریمي دی - نه به

---

له شرح التنویر ۱۲ که منیه ۱۲ که شرح التنویر وهدایه ۱۲ که در مختار وشامی ۱۲ که در مختار وهدایه ۱۲ که هدایه ودر مختار ۱۲ که عالمگیری ۱۲ که در مختار ۱۲

پسې فاتحه لولی - نه بل سورة - که مونځ جهری وُ - نو دَ امام قرأت ته به غوږ کړی - او که سرّی وُ - نو چپ به ولاړ وی -

**مسئله** :- چه مخې ته قبروی داسې ځائے مونځ مکروه تحریمی دے - دا رنګ په مقبره کښ - لیکن که دَ مانځه دَ پاره څه ځائے په مقبره کښ داسې جوړ وُ چه قبر پکښ نه وُ - او قبلے ته هم قبر نه راته - او ځائے دَ نجاست نه پاک وُ - نو دغه ځائے مونځ مکروه نه دے -

**مسئله** :- دَ کعبے شریفے دَ پاسه مونځ مکروه دے - ځکه چه بے ادبی ده - او مکروه دے په لار کښ او په اصطبل کښ - او دَ څاروو تړلو په ځائے کښ - او په جرنده کښ او کومه زمکه چه ئے دَ بل نه په زور نیولی وی - په هغې کښ -

**مسئله** :- دَ کوم فرض مانځه نه بعد چه سنت شته - په هغې پسې دے اُوږده دعا نه کوی - ځکه چه دَ اصل مذهب په بنا باندے په سنتو کښ تاخیر راوستل مکروه دی - په حدیث شریف کښ راغلی دی - چه نبی علیه السلام به دَ فرض مونځ سلام ګرځولو نه پس په خپل هیأت صرف اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ ط په قدر کیناستو بس - او امام له دا دے فرضو نه پس په خپل ځائے سنت کول مکروه دی - نو ځائے دے بدل کی - او دَ منفرد او دَ مقتدی دَ پاره په خپل ځائے سنت کول مکروه خو نه دی - لیکن ځائے بدلول ورله غوره دی - امام محمّد صاحبؒ وائی چه کسر دَ صفونو مستحب دے - بلکه دَ دے نه لا غوره خبره داده چه سنت کور وکی - خو هله که څه مانع نه وُ - او دَ پریخې دلو یره ئے نه وه -

**مسئله** :- که مونځ دَ سحر وُ یا دَ ماز یګر نو پس دَ سلام نه چه امام راګرځی - که مخې ته ئے مسبوق نه وُ - قوم ته دے مخ کړی - ورنه ښی طرف یا چپ طرف ته دے ورو ګرځی -

دَ جُمات احکام | **مسئله** :- دَ جُمات دروازه بندول مکروه تحریمی دی - لیکن که وخت دَ مانځه نه وُ - او دَ مال اسباب دَ حفاظت دَ پاره ئے بندوله - خیر دے -

**مسئله** :- دَ جمات په چت واړه یا لوئے بول یا جماع کول داسې دی - لکه دننه په جمات کښ - ځکه چه جمات بره دَ آسمانه پورے جمات دے -

**مسئله** :- په کوم کور کښ چه یو ځائے دَ مانځه دَ پاره خاص کړے شوے وی - دَ

---

له قاضی خان وحلیه ۱۲ ـه درمختار ۱۲ ـه ۳ ـه درمختار وشامی وشرح المنیه ۱۲ ـه دَ جمات کوم احکام چه دَ وقف سره تعلق لری هغه به په کتاب الوقف کښ ذکر شی - دا ځائے دَ احکام نه مراد نور احکام دی ۱۲ منه
ـه هدایه وعالمګیری ۱۲ ـه هندیه وبحر رایق ۱۲ ـه بحر وهندیه ۱۲

دغه کورحکم په شان دَ جُمات نه دے۔ بلکه په دغه خاص ځائے باندے هم دَ جمات ټول احکام نه جاري کيږي۔

**مسئله** :- دَ جُمات په فرش او په درو ديوار وغيره توکل پوزه سونړول بد کار دے۔ که سخت ضرورت ئے نو په ذړوکي دے واخلي۔ پاک دے کي۔

**مسئله** :- که دَ چا په خپو څه ختيه وغيره لګيدلے وه۔ او هغه ئے دَ جُمات په ديوال يا په ستن وغيره راخکو دله۔ نو دا مکروه دي۔

**مسئله** :- په جُمات کښې خريد و فروخت مکروه تحريمي دي۔ منعه دي ليکن دَ اعتکاف په حالت کښې په قدر دَ ضرورت په جُمات کښې کولے شي۔ خو دَ خرڅ هغه شے دے جمات ته د ننه نه حاضروي۔

**مسئله** :- جُنب او حايضے له جمات ته داخليدل منعه دي۔

**مسئله** :- دَ جمات په درو ديوار وغيره نقش و نګار کول که په خپلو پيسووی نو څه باک نشته۔ ليکن په محراب او دَ قبلے په ديوال وائی مکروه دے۔ او که دَ جمات په پيسو وي۔ نو جائز نه دے۔ که متولي دا سے وکړه۔ پيسے به دَ هغه دَ جيبه وصولولے شي۔

**مسئله** :- وائی چه دَ جُمات په ديوال يا په محرابونو دَ قرآن شريف آيتونه يا سورتونه ليکل غوره نه دي۔ ځينې عالمانوئے وجه دا بيان کړے ده۔ چه دَ هغے دَ راتاويدلو او دَ پائمال کيدلو يره وي۔

**مسئله** :- جُمات لار کول جائز نه دي۔ هاں که دَ سړي سخت ضرورت ئے۔ او شرعي مجبوري وه۔ نو بيا په کښې تلے راتلے شي۔ خو تحيّة المسجد اداکول ورله هم پکار دي۔

**مسئله** :- په جمات کښې دے وُنے نه لګوي۔ ځکه چه دا دستور دے دَ اهلِ کتاب۔ ليکن که په هغے کښې دَ جمات فائده وه۔ نو بيا خير دے۔ مثلاً دَ جُمات په زمکه کښې نمي زياته وه۔ يره وه چه ديوالونه به ئے او غورزيږي۔ نو دَ نمي جذب کولو دَ پاره وُنه لګولے شي۔ دارنګ که دَ عامے فايدے په خاطر ئے دَ سوري دَ پاره ولګوله او ځائے پے نه تنګيده۔ او په صفونو کښې خلل نه راته۔ نو هم خير دے۔

**مسئله** :- په جُمات کښې پکښې او دس کول۔ مضمضه کول مکروه تحريمي

---

له هنديه وبحر ۱۲ ٢ه عالمګيري ۱۲ ٣ه درمختار وشامي ۱۲ ٤ه هدايه وعالمګيري ۱۲ ٥ه هنديه وشامي ۱۲
٦ه هنديه ودرمختار ۱۲ ٧ه هنديه وشامي ۱۲ ٨ه هنديه وشامي ۱۲ ٩ه هنديه وشامي ۱۲

دی - هاں که د اودس د پاره په کبنې څه ځائے روغ کړے شوے وُ - نو هغلته کولے شی -

**مسئله[۱]** :- په جمات کبنې خوړل اوده کیدل جائز نه دی - لیکن معتکف او مسافرله جائز دی[۲] - د دے نه سوا که بل څوک په جمات کبنې خوراک یا خوب کول غواړی نو هغه له پکار دی چه د لږ ساعت د پاره نیت د اعتکاف وکی - او جمات ته د داخلید و نه پس مونځ وکی - یا څه نور څه عبادت - بیا خپله اراده پوره کی -

**مسئله[۳]** :- د پیشے والا د پاره په جمات کبنې خپله پیشه کول جائز نه دی - ځکه چه جمات د دینی کارونو د پاره او خصوصاً د مانځه د پاره دے - نو مثلاً درزی که په جمات کبنې گنډل کول - یا کاتب په جمات کبنې خپل کتابت کاؤ په اُجرت سره دا جائز نه دی - هاں که د جمات د حفاظت د پاره ناست وُ - او د هغے په ضمن کبنې ئے دا کار هم کاؤ نو خیر دے -

**مسئله[۴]** :- په جمات کبنې ځان له د مانځه د پاره یو ځائے مقرر ول چه همیشه خاص په دغه ځائے کبنې مونځ کوی - مکروه دی -

**مسئله[۵]** :- د جمات د صفائیۍ د پاره د جمات نه د بنا پیرک او د کو ترے وغیره جاله لرے کول غورزول جائز دی -

| **مسئله[۶]** :- د وتر مونځ واجب دے - او واجب فرض ته نژدے دی - په پریښودلو کبنې ئے ډیر گناه دے - او که قضا شه - نو قضا اوړل ئے واجب دی - | د وتر بیان |
|---|---|

**مسئله[۷]** د وتر درے رکعته دی - د دویم رکعت نه پس چه په قعده کبنی - او التحیات د عبده ورسوله پورے ولولی - فوراً د ے دریم رکعت ته پاسی - او پس د الحمد او سورة نه دے د الله اکبر ویلو سره دواړه لاسونه د غوږونو د نرے پورے اوچت کی - او که ښځه وه نو د اوګو پورے - بیا به سرې دواړه لاسونه با قاعده د نامه لاندے ونړی - او که ښځه وه نو په سینه به ئے با قاعده کیدی - او دُعاءِ قنوت به ولولی - بیا دے با قاعده رکوع او سجود وکی - او پس د تعدهٔ اخیره د تمام کولو نه دے سلام وگرځوی - او دُعاء قنوت دا ده :-

اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ وَنُؤْمِنُ بِكَ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ وَنُثْنِيْ عَلَيْكَ الْخَيْرَ - وَنَشْكُرُكَ وَلَا نَكْفُرُكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ

[۱] هندیه وشامی ۱۲ [۲] طالب العلم هم په دے حکم کبنې داخل دے - ۱۲ منه [۳] هندیه ۱۲ [۴] شامی ۱۲ [۵] در مختار ۱۲ [۶] شرح البدایه ۱۲ [۷] البدائع والصنائع وشرح البدایه ۱۲

مَنْ يَّفْجُرُكَ - اَللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَلَكَ نُصَلِّيْ وَنَسْجُدُ وَاِلَيْكَ نَسْعٰى وَنَحْفِدُ وَنَرْجُوْا رَحْمَتَكَ وَنَخْشٰى عَذَابَكَ اِنَّ عَذَابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ ط

**مسئله**[1] :- دعاء قنوت په مختلفو لفظونو سره منقوله ده- نو هره یوه منقوله دُعا چه ئې ولوسته پوره ده- او که د مذکوره دُعا سره ئې دا دُعا هم ولوسته نو ډیره غوره ده- اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَعَافِنِيْ فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَتَوَلَّنِيْ فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَبَارِكْ لِيْ فِيْمَا اَعْطَيْتَ- وَقِنِيْ شَرَّ مَا قَضَيْتَ فَاِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ اِنَّهٗ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ وَصَلَّى اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ-

**مسئله**[2] :- که چاته دعاء قنوت یاده نه وی- نو صرف دے دا دُعا لولی- رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ ط یا دے درے پیرے اووائی اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ- یا درے ځله یَا رَبِّ نو دا هم کافی کیږی.

**مسئله**[3] :- د وترو دُعاء قنوت دے په پټه لولی- برابره خبره ده چه منفرد وی او که امام وی- او که مقتدی.

**مسئله**[4] :- که په دریم رکعت کښې ئې دعاء قنوت لوستل هیر شو- او رکوع له لاړ- په رکوع کښې ئې یاد شو- نو اوس دے نه لولی- خو د مانځه په ختم دے سجدهٔ سهو وکی- او که رکوع ئې پریخوده- بیا واپس ودریدو- او دعاء قنوت ئې ولوسته- او بیا ئې رکوع هم ونکړه خو سجدے له لاړ- نو دا ئې کول ښه نه دی خو مونځ ئې وشه- او سجدهٔ سهو په دے صورت کښې هم واجبه ده-

**مسئله**[5] :- که سورهٔ فاتحه ئې ولوسته- او سورة ئې نه لوسته- هیر ئې شو- او دعاء قنوت ئې ولوسته- بیائې یاد شو- نو راګرځی به- سورت به لولی- او دعاء قنوت به بیا لولی- او رکوع به کوی-

**مسئله**[6] :- د روژے میاشت وه- د وترو جماعت ولاړ و- یو سړے راغے- د دریم رکعت په قیام کښې شامل شه- نو چه امام دُعاء قنوت لولی- دے به هم لولی- د امام متابعت به کوی- او که د دریم رکعت په رکوع کښې شامل شه نو د امام قنوت ورله کافی دے- په دواړو صورتونو کښې چه دا مسبوق د امام د سلام ګرځولو نه پس خپل تلی دوه رکعتونه پوره کوی- په هغې کښې به قنوت نه لولی

[1] غنیه ١٢ [2] هندیه ورد المحتار ١٢ [3] شامی ١٢ [4] شرح التنویر ١٢ [5] قاضیخان ١٢ [6] در مختار ورد المحتار ١٢

ځکه چه دَ امام سره چه کوم رکعت مونده دے۔ هغه دَده اخیری رکعت دے۔ او باقی دوه ئے اول دی۔ په حق کښې دَ قرأت وغیره۔ نو قنوت په خپل مقام کښې لوستے شوے دے۔

مسئله[1] :- که مقتدی لا دعاء قنوت نه وه ختم کړے۔ او امام رکوع له لاړه نو مقتدی دے نوره دعا قنوت پریدی۔ او دَ امام سره دے رکوع له لاړ شی۔ او که مقتدی لا دعاء قنوت نه څه قدر دے حصه هم نه وه لوستے۔ او امام رکوع له لاړه۔ نو که دَ ده خوف وُ۔ چه زهٔ دعاء قنوت لولم۔ امام به دَ رکوع نه سر وچت کی۔ نو نه دے لولی۔ او که خوف ئے نه وُ۔ نو وُدِ لولی۔

مسئله[2] :- خدا نخواسته که په مسلمانانو باندے یو عام تکلیف او مصیبت راغے۔ په داسے حالت کښې دَ خپل نجات او دَ کامیابئ دَ پاره دَ سحر په مانځهٔ دجماعت کښې قنوت لوستل پکار دی۔ یعنے پس دَ رکوع نه دے په قومه کښې په داسے حال کښې چه لاس ئے با قاعده تړلی وی۔ په عربئ ژبه داسے دُعا ولولی۔ چه هغه مشابه نه وی دَ خلقو دَ خبرو سره۔ او کوم وقت چه امام به زوره دعاء قنوت لولی۔ مقتدیان به ورپسے آمین وائی۔ دے ته قنوت نازله ویلے شی۔ نبی علیه السلام په داسے موقعه کښې دَ یو مے میاشتے پورے کړے وُ او صحابه کرامو هم حسب ضرورت موقعه به موقعه کړے دے۔ او اوس هم مشروع دے۔ په وقت دَ ضرورت کښې کیدے شی۔ او ځینے عالمان وائی چه دا قنوت عند الضرورت په ټولو جهری مونځونو کښې مشروع دے۔

| دَ سنتو او دَ نفلو بیان |
|---|

مسئله[3] :- سحر دَ فرضونه اول دوه رکعته سنت مؤکده دی۔ په حدیث شریف کښې دَ دے ډیر تاکید راغلے دے۔ بلکه ځینے عالمانو ورته واجب ویلی دی۔ یو حدیث دے چه "دا دوه رکعته مه پریدئ۔ اګرکه تاسو لره آسونه پامال کی"۔ بل حدیث دے۔ چه "دا دوه رکعته بهتر دی دَ دنیانه۔ او څه چه په دُنیا کښې دی۔ دَ هغے نه"۔

مسئله[4] :- دَ ماسپخین په وقت کښې به مینځه څلور رکعته سنت مؤکده کوی۔ بیا څلور فرض۔ بیا دوه سنت مؤکده۔ په حدیث شریف کښې دَ دے شپږو واړو سنتو هم تاکید راغلے دے۔ بے وجے دے نه پریدی۔

---

[1] خانیه وشامی ۱۲ [2] درمختار وشامی وغنیه ۱۲ [3] شرح التنویر بعد المختار ۱۲ [4] درمختار ورد المحتار ۱۲

**مسئله**[1] :- د جمعے اول څلور سنت موکده دی - بیا دوه فرض - بیا څلور سنت موکده - او امام ابویوسف صاحبؒ وائی چه د جمعے د فرضونه پس شپږ سنت موکده دی مینه څلور وروسته دوه - او متأخرو عالمانو د امام ابویوسف صاحبؒ قول غوره کړے دے او ځینے وائی چه د جمعے د فرضونه پس دے کله څلور کوی - کله شپږ - د پاره د دے چه عمل دُ شی په دواړو قولو باندے -

**مسئله**[2] :- ماز یګر دے مینه څلور رکعته سنت کوی - بیا څلور فرض - لیکن دا سنت سنتِ موکده نه دی - بلکه په کولو کښے ئے ثواب دے - او په نه کولو کښے ئے څه حرج نشته -

**مسئله**[3] :- د ماښام درے رکعته فرض دی - او په هغے پسے دوه سنت موکده -

**مسئله**[4] :- د ماسختن څلور رکعته فرض دی - بیا دوه سنت موکده - بیا درے وتر او غوره او مستحب خبره داده - چه مینه څلور سنت زوائد وکی - بیا څلور فرض - بیا دوه سنت موکده - او د دے نه پس که دوه رکعته نفل کوی - نو هم غوره ده - بیا دِ وتر وکی -

**فائده** :- د کومو سنتو چه تاکید راغلے دے - هغے ته سنت موکده ویلے شی - او د کومو چه تاکید نه دے راغلے - بلکه په کولو کښے ئے ثواب دے - او په نه کولو کښے ئے څه حرج نشته هغے ته سنت زوائد ویلے شی - نو بے د سنتو زوائدونه د پنځه وقته مونځونو د رکعتونو حساب دادے :-

د سحر څلور رکعته دی - دوه سنت بیا دوه فرض - او د ماسپخین لس - څلور سنت څلور فرض - بیا دوه سنت - او د جمعے هم لس - څلور سنت دوه فرض بیا څلور سنت - او د امام ابویوسف صاحبؒ د قول په بنا باندے په آخر کښے دوه سنت هم شته - نو ټول دولس شو - او د ماز یګر صرف څلور رکعته دی فرض - او د ماښام پنځه رکعته دی - درے فرض - بیا دوه سنت - او د ماسختن نهه دی - څلور فرض دوه سنت درے وتر -

**مسئله**[5] :- د روژے په میاشت کښے تراویح هم سنت موکده دی - ښځه وی او که سړے - تراویح دے بے وجه نه پریږدی - د ماسختن د فرضو او د دوه رکعته سنتونه پس دے شل رکعته کوی - نیت دے تړی دوه دوه رکعتونو - چه شل پوره شی بیا دے وتر وکی - او د تراویح بیان به راشی په تفصیل سره -

---

[1] مجمع الانهر ۱۲ [2] منتقی ۱۲ [3] صغیری ۱۲ [4] شرح التنویر ۱۲ [5] شرح التنویر ۱۲

**مسئله:-** که دَ سنتو او دَ فرضو په مینځ کښې څه خبرې وکړې ۔ یائې بل منافی عمل وکړ بے دَ عذره ۔ نو ځینې عالمان وائي چه سنت اوغورزیدل ۔ لیکن صحیح خبره داده چه په دے سره سنت نه غورزیږي ۔ خو په ثواب کښې کے راځي۔

**مسئله[1]:-** مذکوره مونځونه دَ شریعت دَ جانب نه مقرر دي ۔ باقي که څوک دَ دے نه زیات کول غواړي ۔ نو هرڅومره نفل چه کولے شي بنه ده ۔ هروقت کولے شي ۔ خو دومره خبره ده چه په کومو وقتونو کښې نفل مونځ مکروه دے ۔ لکه چه دَ مانځه په اوقاتو کښې بیان شوي دي ۔ په هغې کښې دے نه کوي ۔

**مسئله[2]:-** دَ ورځے که نفل کوي خو بنه ئے خپله ده ۔ که نیت دَ دوؤ رکعتونو تړي ۔ اوکه دَ څلورو ۔ او دَ ورځے دَ څلورو رکعتونو دَ زیات نیت تړل مکروه دي ۔ یعنې په یو سلام شپږ یا اته رکعته کول مکروه دي ۔ او دَ شپے که یودم دَ شپږو یا دَ اتو نیت تړي هم خیر دے ۔ لیکن په یو سلام سره دَ اتو نه زیات دَ شپے هم مکروه دي ۔ او صاحبین رح وائي چه دَ شپے دے په یو سلام سره صرف دوه دوه رکعته کوي۔

**مسئله[3]:-** نفل څلور څلور رکعته کول غوره دي ۔ ورځ وي اوکه شپه ۔ او صاحبین رح وائي چه دوه دوه ۔

**مسئله[4]:-** که نیت ئے دَ څلورو رکعتو نفلو تړلے وُ ۔ او اراده ئے دَ پوره کولو وه ۔ نو چه پس دَ دوه رکعتونه په قعده کیني ۔ او التحیات دَ عبده ورسوله پورے ولولي ۔ وُس ئے اختیار دے ۔ که په دے پسے درود شریف او اللّٰهم ربنا لولي ۔ اوبیا بے دَ سلام گرځولو نه دریم رکعت ته پاسي ۔ او په هغې کښې سبحانک اللّٰهم او اعوذ بالله بسم الله وائي ۔ بیا الحمد شروع کوي ۔ دا طریقه هم جائزه ده ۔ او که په قعده اولی کښې صرف التحیات دعبده ورسوله پورے لولي ۔ بیا دریم رکعت دَ بسم الله او الحمد نه شروع کوي ۔ نو هم جائزه ده ۔ بیا به دَ څلورو رکعتونه پس التحیات او درود شریف او دعا ولولي او سلام به وګرځوي ۔ او که نیت ئے دَ شپږو رکعتو تړلے وُ او په یو سلام ئے شپږ واړه پوره کول غوښتل ۔ نو په دے کښې هم مذکوره دواړه طریقے جائز دي ۔ یعنې دَ دوؤ رکعتونه پس که په قعده کښې التحیات او درود شریف او دعا لولي ۔ او بے دَ سلام گرځولو نه دریم رکعت ته پاسي ۔ او هغه دَ سبحانک اللّٰهم

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] شرح البدایه ۱۲ [3] مجمع الانهر و درمختار ۱۲ [4] شرح التنویر و بحرالرائق ۱۲ [5] در المنتقی و مجمع الانهر ۱۲

نه شروع کوی۔ اوکه صرف دَ التحیات نه پس دریم رکعت ته پاسي۔ او هغه دَ بسم الله او دَ
الحمد نه شروع کوی۔ دواړه خبرے جایزے دی۔ داړنګ دَ څلورو رکعتونه پس چه په قعدهٔ کینی
بیائے اختیار خپل دے۔ که التحیات او درود شریف او دعا ولولی۔ او بے دَ سلام ګرځولو نه پنځم
رکعت ته پاسي۔ او هغه دَ سبحانک اللّٰهم نه شروع کوی۔ نو هم کولے شی۔ اوکه صرف دَ التحیات
نه پس پنځم ته پاسی۔ او هغه دَ بسم الله او الحمد نه شروع کوی نو هم کولے شی۔ بیا دَ شپږم
رکعت نه پس په قعده کښې تشهد او درود او دُعا ولولی۔ او سلام دے وګرځوی۔ اوکه
نیت ئے دَ اتو رکعتونو تړلے وُ۔ نو دَ شپږم رکعت نه پس چه په قعده کینی۔ بیا ورله
مذکوره دواړه خبرے جایزے دی۔ غرض دا دے چه دَ هر دووَ رکعتونو نه پس چه په
قعده کښې تشهد ولولی۔ بیا ورله دَ دے دواړو خبرو اختیار دے۔ او په اخیری قعده
کښې به تشهد او درود او دعا ولولی۔ نو سلام به وګرځوی۔

**مسئله** :- دَ وترو او دَ سنت او دَ نفل رکعتونه ټول ډک دی۔ تش پکښې نشته
که دَ الحمد سره ئے قصداً سورة ونه لوست نو ګناه دے۔ اوکه هیر شوے ئے وو۔ په
دے وجه ئے سورة ونه لوست نو سجده سهو پے لازمه ده۔

**مسئله** :- په نفل کښې دَ قیام اوږد والے غوره دے۔ دَ کثرت رکوع او سجود
نه۔ مثلاً که دوه رکعته ئے وکړه۔ او قیام ئے په کښې وکړه۔ اوږد نو دا غوره دی۔ دَ هغه
څلورو رکعته نفل نه چه قیام په کښې مختصروی۔ او وقت په دواړو کښې لګی یوشان۔

**مسئله** :- که چا نفل مونځ شروع که په صحیح طریقه سره۔ نو وس ئے پوره کول
واجب شو۔ بے دَ عذر نه ئے ماتول ګناه دے۔ اوکه په عذر سره ئے مات کړه نو ګناه څو
نشته۔ لیکن قضا راوړل پے په هر حال شته۔ څو دومره خبره ده۔ چه نفل هر دوه
دوه رکعته مستقل مستقل دی۔ نو که دَ څلور رکعته نفل په نیت چا مونځ شروع
کړے وُ۔ بیائے لا دوه نه وُو پوره کړی چه مات ئے کړه۔ نو وس به صرف دوه قضا راوړی
اوکه دوه رکعته ئے پوره کړي وُ۔ او قعده ئے وکړه او سلام ئے وګرځاوُ۔ نو دوه رکعته
نفل ئے وشو۔ او دَ باقی دووَ قضا پے نشته۔ ځکه چه په هغے کښې ئے لا شروع نه وه کړے
نو هغه نه دی لازم شوی۔

**مسئله** :- که نیت ئے دَ څلورو رکعتو نفل تړلے وُ۔ او دوه رکعته ئے وکړه

---

له او څینے عالمان وائی چه صرف اوله طریقه دے کوی ۱۲ منه ۲ه درمختار ۱۲ ۳ه بدائع وغنیه
۴ه منیه وشرح التنویر ۱۲ ۵ه فتح القدیر ۱۲

او په دریم یا څلورم کښې ئې مونځ مات که - نو که د اول دوه رکعتونو نه پس په قعده ناست وي او تشهد ئې لوستې وي - نو صرف د دوو قضا به راوړي[1] - او که د دویم رکعت نه پس ئې قعده نه وه کړې - هیر شوې ئې وو یا قصداً - نو وس به څلور رکعته قضا راوړي -

**مسئله[2]** :- که د ماسپخین څلور رکعته سنت موکده ئې کول - او هغه ئې مات کړه - نو وس به پوره څلور رکعته کول واجب دي - برابره خبره ده چه قعده اولی ئې کړې وي - او که نه -

**مسئله[3]** :- که امام د ماسپخین فرض کول مثلاً - او مقتدي فرض کړي وو - خو په نیت د نفل ورپسې ودرېږي - بیا دے مقتدي دغه مونځ مات که - نو دے به پوره څلور رکعته بیا کوي - دارنګ که چا نذر منلې وو - چه زه به څلور رکعته نفل کوم - بیا ئې دغه مونځ شروع که - او بیا ئې مات که - نو پوره څلور به کوي -

**مسئله[4]** :- نفل مونځ په ناسته هم کیږي - لیکن په ولاړه د ناستې نه ثواب دوچند دے - البته که د څه عذر په وجه ئې په ولاړه نه شي کولے - او په ناسته ئې وکړه نو بیا په ثواب کښې فرق نه راځي -

**مسئله[5]** :- که نفل مونځ ئې په ناسته شروع کړے وو - بیا پاسیږي په ولاړه ئې کاوه - دا جائز دي - دارنګ که په ولاړه ئې شروع کړے وو - بیا بے د عذر نه مثلاً په اول یا دویم رکعت کښې کیناست - په ناسته ئې پوره که - نو دا هم جائز دي -

**مسئله[6]** :- که نفل مونځ ئې کاوه او ستړے شه - نو که دیوال ته ډډه وهي - یا په څه شي تکیه کوي - خیر دے کراهت پکښې نشته -

**مسئله[7]** :- که د نفل مونځ ئې شروع که په وقت د طلوع یا غروب یا استوا کښې - نو په ظاهر الروایت کښې دا هم واجب شو - خو پوره کوي دے نه - بلکه وس دے مات کي - او په مناسب وقت کښې دے بیا وکي - او که وس ئې پوره کړه - نو او به شي - خو بده خبره ده ګناه دے -

**مسئله[8]** :- د رمضان المبارک په آخري لس او د لوئ اختر په اولو لسو شپو

---

له لیکن بنایه ډیره چه د او لو دوو رکعتونو اعاده ئې هم واجب شي - ځکه چه سلام واجب دے - هغه ئې پرېښے دے - او سجده سهوه ئې هم نه وه کړې - او په کوم مونځ کښې چه واجب پرېښودے شي - او سجده سهو هم و نکي - هغه واجب الاعاده دي ۱۲ شامي ۲ه منیه وشرح التنویر ۱۲ ۳ه درر وشامي ۱۲ ۴ه شرح التنویر ۱۲ ۵ه منیه ورد المحتار ۱۲ ۶ه عالمګیري ۱۲ ۷ه بحر رائق وشامي ۱۲ ۸ه بحر رائق ۱۲ ۹ه در مختار وشامي ۱۲

کښې اودَ شوقدار په ټولسمه شپه اودَ اختر په شپه کښې دَ عبادت کولو ثواب او فضیلت په احادیثو کښې په کثرت سره راغلے دے۔ نو په دے اوقات کښې هرڅو مره نوافل وغیره عبادت چه کولے شي غوره ده۔

**فائده** :- په احادیثو کښې دَ ځینې نفلونو ډیر فضیلت راغلے دے۔ دَ هغې په کولو سره ډیر ثواب حاصلیږي۔ او هغه دادي۔ تحیة الوضوء۔ تحیة المسجد۔ صلوٰة اشراق صلوٰة ضحیٰ۔ صلوٰة اوّابین۔ صلوٰة تهجد۔ صلوٰة تسبیح وغیره۔

**تحیة الوضوء** | تحیة الوضوء[1] دے ته وائي چه کوم وقت اودس وکی۔ اودَ اندا مونو لوندوالے ئے لا نه وی وچ شوے۔ دوه رکعته نفل وکی۔ خو هله که په دغه وقت کښې نفل مکروه نه وُ۔ او دارنګ حکم دے پس دَغسل نه۔

**تحیة المسجد** | کوم[2] وقت چه سړے جُمات ته داخل شي۔ دَهغه دَپاره سنت طریقه داده چه دَکیناستو نه مینه په جُمات کښې دوه رکعته نفل وکی۔ او که پس دَکیناستو نه ئے وکړه نو هم کیږی۔ خو غوره طریقه اوله ده۔ او که جُمات ته په داسے وقت کښې داخل شه۔ چه په هغه وقت کښې نفل مکروه وُو۔ یائے تحیة المسجد ونه کړے شه۔ په سبب دَبے اودسۍ وغیره۔ نو هغه له مستحب دی چه دا کلمے اووائي څلور ځله۔ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ۔

**مسئله**[3] :- که په یوه ورځ کښې څو واره جمات ته دَداخلیدو اتفاق پیښ شه نو تحیة المسجد یو وار کول کافی دی۔ خو بنه ئے خپله ده۔ که په ابتدائی داخلیدو سره ئے کوی۔ او که په اخیری۔

**مسئله**[4] :- دَتحیة المسجد نه مقصد تعظیم دَجمات دے۔ او هغه په اصل کښې تعظیم دے دَخدائے پاک۔ نو که جمات ته دَداخلیدو نه پس ئے فرض مونځ وکه۔ یا سنت یا بل مونځ نو دا هم کافی کیږی۔ دَتحیة المسجد نه۔ ځکه چه ادب او احترام په دے سره هم حاصل شه۔ اګر که په دغه مانځه کښې نیت دَتحیة المسجد نشته۔

**مسئله**[5] :- دَتحیة المسجد دَپاره دَدوو رکعتونو څه تخصیص نشته۔ که څلور ئے وکړه هم بنه ده۔

**صلوٰة اشراق** | غوره[6] خبره داده چه پس دَسحر دَمانځه نه په خپل ځائے کیني۔ دَقرآن شریف تلاوت کوی۔ یا درود شریف یا وظیفه وغیره لولی۔ او دنیاوی خبرے نه کوی

---

[1] درمختار و شامی ۱۲ [2] شرح التنویر و رد المحتار ۱۲ [3] درمختار و رد المحتار ۱۲ [4] در و شامی ۱۲ [5] شامی ۱۲ [6] ترمذی شریف ۱۲

بیا چه نور را وخیژی او یوه نیزه اوچت شی۔ دوه رکعته یا څلور رکعته نفل دې وکی۔ دا دَ اشراق مونځ دے

په حدیث شریف کښې راغلی دی۔ چه په دے سره دَ یو حج او دَ یوے عمرے ثواب ملاویږی[1] که دَ سحر دَ مانځه نه پس په څه دنیاوی کاروبار کښې مشغول شه۔ او دَ نور یک نیزه بلندے نه پس ئے دا مونځ وکه هم خیر دے۔ خو په ثواب کښې ئے درجه دَ اول نه کمه ده۔

**صلوٰةِ ضحیٰ** | دَ دے[2] مانځه وقت خو دَ نور اوچتیدو نه پس دَ زواله پورے دے۔ لیکن غوره وقت ئے دا دے۔ چه څلورمه حصه ورځ وځی۔ هله دے کوی۔ دوه رکعته یا څلور یا اته یا دولس۔ دے ته دَ څاښت مونځ وئیلے شی۔ دا هم مستحب دے۔ او په حدیث شریف کښې ئے ډیر فضیلت راغلے دے۔

**صلوٰةِ اوّابین** | دَ ماښام[3] دَ مانځه نه پس شپږ رکعته نفل کول لوئے ثواب لری دا مونځ دَ اوّابین دے۔ پاتے شوه دا خبره چه دَ ماښام هغه دوه سنتِ موکده په کښې هم حسابیږی او که نه؟ نو ځینے عالمان وائی چه وَ۔ او که[4] شل رکعته ئے وکړه۔ نو لا ډیره غوره ده۔

**مونځ دَ تهجد** | په شپه[5] کښې دَ خوب پاسیدل او نفل مونځ کول ډیر ثواب لری۔ دے ته تهجد وئیلے شی۔ په ټولو نفلو مونځو کښې دَ دے ثواب زیات دے۔ او مرتبه ئے اوچته ده۔ بلکه ځینے عالمان وائی چه دا مونځ سنت دے۔

**مسئله**[6]: تهجد اته رکعته دی۔ او که دولس ئے وکړه نو لا غوره ده۔ که کم نه کم څلور رکعته ئے وکړه نو هم خیر دے۔ او که دا هم نه شی کولے۔ کم از کم دوه دے وکی۔ او که دَ شپے نه شی پاسیدے نو دَ ماسختن مانځه نه پس دے وکی۔ خو هغه همره ثواب په کښې نشته۔

**مسئله**[7]: که دَ چا اراده وه چرته په شپه درے حصے کوم۔ په یوه حصه کښې به تهجد کوم۔ او په نورو دوو کښې خوب۔ نو کومه دریمه حصه چه مینځنئ ده۔ دَ تهجد دَ پاره هغه غوره ده۔ او که دا اراده ئے وه چه په نیمه کښې به عبادت کوم۔ او په نیمه کښې خوب۔ نو اخیری نیمه دَ عبادت دَ پاره غوره ده۔

**مسئله**: څوک چه دَ تهجد د مانځه معتاد وی۔ دَ هغه دَ پاره بے دَ عذر نه دا مونځ پریخودل مکروه دی۔ او که اتفاقاً پا نه سیدے شه۔ نو چه نور راوخیژی۔ او یوه نیزه

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] درمختار وشامی ۱۲ [3] ترمذی شریف ۱۲ [4] نور الایضاح ۱۲ [5] درمختار وشامی ۱۲
[6] شرح التنویر ۱۲ [7] شامی ۱۲

اوچت شی۔ په دغه وقت کښې دے دَ هغے همره نوافل وکی۔ نو امید دے چه تدارک به ئے وُشی۔

**مسئله**[1]:۔ که په وقت دَ تهجد کښې ئے بے دَ نفل نه بل مونځ وکه۔ مثلاً قضا مونځونه ئے را کړه ګول۔ نو اے دے ته به تهجد ویلے شی۔ او که نه۔ نو ځینے عالمان وائی چه وَه۔

صلوٰة تسبیح

په حدیث[2] شریف کښې دَ صلوٰة تسبیح بے انتها فضیلت راغلے دے۔ نبی علیه السلام دا مونځ خپل تره عباس رض ته خودلے وَ۔ او فرمائیلی ئے وو۔ چه دَ دے په کولو سره به ستا ګناهونه ظاهری او باطنی نوی او زاړه هر قسم چه وی۔ خدائے پاک به ئے په خپل فضل سره معاف کی۔ او دا ئے هم فرمائیلی وُو۔ چه دا مونځ هره وُرځ کوه۔ او که هره ورځ نه شے کولے۔ نو په هره هفته کښې۔ کنی نو په هره میاشت کښې۔ ورنه په هر کال کښې یوه پیره کوه۔ او که دا درنه هم نه شی کیدے نو کم نه کم په ټول عمر کښې ئے یو وار وُکه۔

په دے مانځه کښې مجموعه درے سوه واره دا کلمے ویلے شی :۔ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اللّٰهُ اَکْبَرُ۔ په هر رکعت کښې پنځه اویا (۷۵) پیرے۔ طریقه ئے داده۔ چه دَ څلورو رکعتو نیت وتړی۔ دَ ثنا نه پس مذکوره کلمے او وائی پنځلس[15] ځله۔ بیا چه اعوذ بالله او بسم الله او الحمد او سورة ولولی۔ نو رکوع ته دَ تلو نه مخکښې لس ځله۔ بیا لس ځله په رکوع کښې۔ بیا لس ځله په قومه کښې۔ لس ځله په سجده کښې۔ لس ځله په جلسه کښې۔ لس ځله په دوئمه سجده کښې۔ دا رنګ په باقی دریوَ رکعتونو کښې۔ خو دا درے وارہ رکعتونه به شروع کوی۔ دَ مذکوره کلمونه۔ ځکه چه په دے کښې ثنا او اعوذ نشته۔ دا دَ صلوٰة تسبیح یوه طریقه ده۔ بله طریقه ئے داده۔ چه په ولاړے دے صرف دَ قرأت نه وروستو پنځلس[15] ځله او وائی۔ باقی لس چه دَ دویمے سجدے نه پورته شی۔ هغه به په ناستے وائی۔ او نور به خپل خپل مقامات کیښی۔ کوم چه په اوله طریقه کښې ذکر شوی دی۔ نو دا پنځه اویا (۷۵) ځله شو په یو رکعت کښې۔ او دا رنګ په باقی دریوَ رکعتونو کښې۔ دا دواړه طریقے منقولے دی۔ لیکن غوره طریقه اوله ده۔ او ځینې عالمان وائی چه کله دے هغه کوی او کله دا۔

**مسئله**[3]:۔ په دے څلورو رکعتونو کښې هر یو سورة چه غواړی لوستے شی۔

[1] شامی ۱۲ [2] غنیه و درد و شامی ۱۲ [3] رد المحتار ۱۲

تخصیص نشته - لیکن الهٰکم التکاثر - والعصر - قل یا ایها الکافرون - اخلاص لوستل پهٔ کښې وائی غوره دی - او څینې وائی سورۂ حدید - سورۂ حشر - سورۂ صف - سورۂ تغابن پهٔ کښې لوستل غوره دی -

**مسئله** :- کهٔ پهٔ صلوٰة تسبیح کښې سهو شه - او سجده سهوے کوله - نو اے پهٔ سجده سهوه کښې به هم لس لس ځله وائی - اوکهٔ نهٔ ؟ نو جواب ئے دا دے - چهٔ نهٔ ځکه چه قول درے سوه کړنه دی -

**مسئله** :- کهٔ پهٔ یو مقام کښې ئے مذکوره کلمات ویل هیر شو - نو بیا دے نهٔ ور کړځی - بلکه دغه عدد دے پهٔ بل مقام کښې پوره کی - او مناسبه داده چه متصل مقام کهٔ کوتاه نهٔ وُ - نو پهٔ هغې کښې دے پوره کی - مثلاً کهٔ پهٔ قومه کښې ئے وُنه ویل - نو پهٔ سجده کښې دے شل ځله او وائی - اوکهٔ پهٔ رکوع کښې ئے ویل هیر شو - نو پهٔ قومه کښې دے نهٔ وائی - ځکه چه قومه مختصره ده - بلکه هغه دے هم پهٔ سجدۀ کی او وائی اودا رنګ کهٔ پهٔ اوله سجده کښې ئے هیر شو - نو پهٔ جلسه کښې دے نهٔ وائی - ځکه چه جلسه کوتاه ده - بلکه پهٔ دویمه سجده کښې دے اووائی - اودا قول ذ بعضې شافعیا نو هم دے -

نوافل ذ سفر

څوک چه ذکوره پهٔ سفر روانیږی - هغه لهٔ پکار دی چه پهٔ کور کښې دوه رکعته نفل وکی - دا حدیث شریف دے - چه هیڅوک پهٔ خپل کور کښې ذ ځان نه ورستو غوره شے نهٔ پریږی - ذ هغه دوو رکعتونو نه چه پهٔ وقت ذ سفر کښې ئے کوی -

**مسئله** :- څوک چه ذ مسافرت نه خپل وطن ته واپس راشی - هغه لهٔ مستحب دی چه مینه جمات لهٔ ورشی - دوه رکعته نفل پهٔ کښې وکی - بیا هله کور ته ورځی - نبی علیه السلام چه به کوم وقت ذ سفرنه واپس تشریف راوړ - نو مینه به ئے پهٔ جمات کښې دوه رکعته مونځ کاوۀ -

**مسئله** :- ذ مسافر ذ پاره دا هم مستحب دی چه پهٔ کوم وقت کښې پهٔ دوران ذ سفر کښې یو منزل ته ورسی - او هلته ئے اراده وی ذ قیام - نو دوه رکعته نفل دے وکی - او بهتره داده چه ذ کیناستو نه مخکښې ئے وکی -

نماز قتل

**مسئله** :- کوم وقت چه مسلمان قتل کیږی - ذ هغه ذ پاره مستحب

له شامی ۱۲ ٢ه شامی ۱۲ ٣ه درمختار ورد المحتار ۱۲ ٤ه درمختار ورد المحتار ۱۲ ٥ه طحطاوی ۱۲ ٦ه غنیه وطحطاوی ۱۲

دی۔ چه دوه رکعته نفل وکی۔ بیا د خپلو گناهونو د مغفرت دپاره د خدائے پاک په بارگاه کښې دعاوکی۔ دپاره د دے چه دا مونځ او استغفار ئے په دنیا کښې آخری عمل پاتے شی۔

یو وار نبی علیه السلام د خپلو صحابو رض نه یو څو قاریان صاحبان د قرآن کریم د تعلیم دپاره یو ځائے ته ولیګل۔ په لاره کښې د مکے کافرانو گرفتار کړه۔ او ټول ئے شهیدان کړه۔ سوا د حضرت خبیب رض نه۔ دے ئے د ځان سره مکے ته بوته۔ او هلته ئے په ډیر اهتمام او په خوشحالئ سره شهید که۔ ده د شهید کیدو نه مخکښې د هغو په اجازت سره دوه رکعته مونځ کړے وُ۔ د هغه وخت نه دا مونځ مستحب ګرځیدلے دے۔

**صلوٰة استغفار** | که خدا نخواسته د چا نه څه وخت ګناه سرزد شه۔ هغه له پکار دی۔ چه دوه رکعته نفل وکی۔ بیا په ډیره عاجزئ او انکسارئ سره د هغے نه توبه اوباسی پښیمانه شی۔ او طلب بخښنے وکی۔ او د آینده دپاره د ګناه نه د بچ کیدلو پخه اراده وکی۔ نو امید دے چه ګناه به ورته معاف شی۔ انشاء الله تعالے۔

**مسئله**[۲] :- په توبه او په استغفار سره د بنده حق نه معاف کیږی۔ بلکه د هغے دپاره د قاعدے سره موافق د حقدار نه معاف کول یا حق حقدار ته رسول ضروری دی۔ بلکه په بعضے کتابونو کښې ئے راوړی دی۔ چه د یو شرعی درهم شپږ مه حصه پردے حق که ئے لاندے کړے وُ۔ نو د هغے په بدل کښې به ترے په قیامت کښې د اوه سوه قبول شوی مونځونو ثواب اخستے کیږی[۳]۔

**د استخارے بیان** | که د چا[۴] کار پیښ شه۔ او تردد ئے وُ چه دا کار وکم او که نه۔ ځکه دپاره به په دے کښې فایده وی او که نقصان۔ نو هغه له پکار دی۔ چه په دے کښې د خدائ پاک نه صلاح واخلی۔ او دے ته استخاره ویلے شی۔ طریقه ئے داده۔ چه مینه دوه رکعته نفل وکی۔ بیا بنه په فکر سره دا دعا ولولی:۔ اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْتَخِیْرُکَ بِعِلْمِکَ وَ اَسْتَقْدِرُکَ بِقُدْرَتِکَ وَ اَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ الْعَظِیْمِ ۃ فَاِنَّکَ تَقْدِرُ وَ لَا اَقْدِرُ وَ تَعْلَمُ وَ لَا اَعْلَمُ وَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُیُوْبِ ۃ اِنْ کُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ خَیْرٌ لِّیْ فِیْ دِیْنِیْ وَ مَعَاشِیْ وَ عَاقِبَةِ اَمْرِیْ (وَ عَاجِلِهٖ وَ آجِلِهٖ) فَاقْدِرْهُ وَ یَسِّرْهُ لِیْ ثُمَّ بَارِکْ لِیْ فِیْهِ وَ اِنْ کُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ شَرٌّ لِّیْ فِیْ دِیْنِیْ وَ مَعَاشِیْ وَ عَاقِبَةِ اَمْرِیْ (وَ عَاجِلِهٖ وَ آجِلِهٖ)

---

[۱] شامی و طحطاوی ۱۲ [۲] درود ۱۲ [۳] حقدار ته به ورکیږی۔ او که دومره مونځ نه ئے نه وُ۔ نو د هغه ګناه به ډده په سر کیخودے شی په مناسب اندازه سره ۱۲ منه [۴] شامی و شرح المنیه ۱۲

فَاصْرِفْهُ عَنِّیْ وَاقْدِرْ لِیَ الْخَیْرَ حَیْثُ کَانَ ثُمَّ اَرْضِنِیْ بِهٖ کوم لفظونه چه په قوس کښې دننه لیکلی شوی دی یعنې وَعَاجِلِهٖ وَآجِلِهٖ - که دائے ونه لوستل هم خیر دے - خو لوستل ئے غوره دی - اوکوم وقت چه هٰذَا الْاَمْرَ ته راورسی - دکوم دپاسه چه خط رابنکودے شوے دے - په دغه وقت کښې دے هغه خپل مقصودی کار په تصور کښې راولی - دکوم کار دپاره ئے چه استخاره شروع کړے ده - اود مذکوره دُعا لوستلو نه پس دے په یو پاک ځائے یا په پاکه بچونړه په اوداسه کښې مخ په قبله اوده شی - بیا چه دَ خوبه راپاسی - نوکومه خبره چه ئے زړه ته پریوتی وی - دَ هغے مطابق دے عمل ورباندے وکی -

**مسئله** :- که په یوه ورځ استخاره کولو سره تردد زائل نشه - نو په دویمه ورځ دے بیا وکی - اودارنګ دَ اوو شپو پورے - نو امید دے چه ښه والے یا بدوالے به ورته دَ خدائے پاک په فضل سره معلوم شی -

**مسئله** :- که مونځ کول ورته ګران وی نو صرف په مذکوره دعا سره هم استخاره کیدے شی - لیکن غوره طریقه هغه ده - کومه چه مخکښې ذکرشوے ده -

**مسئله** :- په بعضے کتابونو کښې ئے راوړی دی چه دَ مذکوره دُعا لوستلو نه پس که په خوب کښې ئے سپین والے یازیړوالے ولیدل - دا علامت دَ ښه والی دے - اوکه توروالے یا سُوروالے ئے ولیدل - دا علامت دَ بدئے دے - نه دے کوی -

**مسئله** :- که دَ حج کولو دپاره ئے استخاره کوله - نو دَ هغې مطلب به دا نه وی چه لاړشم اوکه نه؟ بلکه مطلب به ئے دا وی چه په فلانی وقت کښې لاړشم - اوکه نه - او دارنګ په نورو دینی کارونو کښې -

**صلوٰة حاجت** دَحاجت پوره کیدلو دَپاره هم یو مونځ مستحب دے - هغې ته صلوٰة حاجت ویلے شی - طریقه دا ده چه دَ ماښختن دَ مانځه نه پس دَ څلورو رکعتو نیت وتړی په اول رکعت کښې دَ یو وار الحمد نه پس درے واره آیة الکرسی ولولی - اودَ باقی دریوُ رکعتونو په هریو رکعت کښې دَ یو وار الحمد نه پس یو یو ځل سورهٔ اخلاص او معوّذتین یعنې قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس - اوپس دَ مانځه نه دعا وکی - دَدے مانځه په بابت کښې دَ ډیرو عالمانو نه دا خبره منقوله ده - چه مونږ ...... دا مونځ کړے دے - نو خدائے پاک څمونږ حاجتونه پوره کړی دی - دَ

---

۱ شامی ۱۲ ۲ رد المختار ۱۲ ۳ شامی ۱۲ ۴ غنیه وشامی ۱۲

صلوٰۃ حاجت دا طریقه په بعضے کتابونو کښں ذکر ده. او په ځینے کتابونو کښں ئے په بله طریقه ذکر کړے. او د ترمذی شریف یو حدیث ئے هم نقل کړے. مضمون د حدیث دا دے:

"چه د چا حاجت پیښں شی. نو هغه له پکار دی چه په ښه شان سره اودس وکی. بیا دوه رکعته نفل. بیا د خدائے پاک ثنا او وائی. او درود شریف ولولی. بیا دا دُعا:

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِیْمُ الْکَرِیْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ اَسْأَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالْغَنِیْمَةَ مِنْ کُلِّ بِرٍّ وَّ السَّلَامَةَ مِنْ کُلِّ اِثْمٍ لَا تَدَعْ لِیْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهٗ وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهٗ وَلَا حَاجَةً هِیَ لَكَ رِضًی اِلَّا قَضَیْتَهَا یَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِیْنَ ط او د دے ما نځه نورے طریقے هم شته. خو دا دوه طریقے د آسانئے په وجه ولیکلے شوے.

نماز کسوف وخسوف

نو ر چه تندارو نیسی. دے ته کسوف ویلے شی. د کسوف په وقت کښں دوه رکعته نفل کول مسنون دی. دا مونځ به په جماعت سره کوی. خو هله که امامت د جمعے امام کاؤ. یا مسلمان حاکم وقت یا د هغه نائب. او بل روایت دا دے چه د هر جماعت امام په خپل جماعت کښں کولے شی.

**مسئله**[۱] :- د دے مانځه د پاره نه بانګ شته. نه اقامت. او که خلق جمع کول غواړی. نو دا اندا به کوی. اَلصَّلٰوةُ جَامِعَةٌ

**مسئله**[۲] :- په صلوٰۃ کسوف کښں اوږده اوږده سورتونه لوستل او په رکوع سجود کښں ډیر درنګ تیرول مسنون دی.

**مسئله**[۳] :- قرأت به په جهر سره نه کوی. بلکه په پټه به لولی.

**مسئله**[۴] :- پس د مانځه نه به امام په ناسته مخ په قبله په دعا کښں مشغول شی یا په ولاړ ے. په دا سے حالت کښں چه مخ ئے کړځولے وی مقتدی یا نو ته. او مقتدیان به آمین وائی. ترکومے چه نور د تندار نه نوی خلاص شوے. د هغې پورے دُعا پکار ده. او که نور په دغه حالت کښں پریوت. یا د بل مانځه وقت شه. نو دُعا به پریدی. وقتی مونځ به کوی.

**مسئله**[۵] :- سپوږمۍ چه تندارو نیسی دے ته خسوف ویلے شی. په دے حالت کښں هم دوه رکعته مونځ کول مسنون دی. خو جماعت په کښں مسنون نه دے. په کور کښں دے ځان ځانله کوی. جماعت ته تله ورله مسنون نه دی.

[۱] درمختار ورد المحتار ۱۲ [۲] مراقی الفلاح ۱۲ [۳] طحطاوی ۱۲ [۴] مراقی وکبیری ۱۲ [۵] طحطاوی ومراقی ۱۲ [۶] مجمع الانهر ۱۲

**مسئله** :- دا رنګک که څه خوف او مصیبت وغیره پېښ شه - نو په دغه وقت کښې هم مونځ کول مسنون دی - مثلاً سخته سیلئ وه مسلسله - یا زلزلے وے - یا تندر ډیر لویده - یا ستوری ډیر ماتیدل - یعنې شغلې ډیرې زغلیدلے - یا تکلیف ده داورے وریدے - یا باران نه - یا یو عام مرض دَ - یا ددښمن یره وه - وغیره وغیره - لیکن دا مونځ دے په جماعت سره نه کوی - بلکه هر سړے دے په کور کښې ځان ځانله کوی - نبی علیه السلام ته چه به څه مصیبت پېښ شه - نو په مانځه کښې به مشغول کیده -

**تنبیه** :- په کوم او قاتو کښې چه نفل مکروه دی - په هغې کښې دَ مذکوره مونځونه نکوی - او دُعا کولے شی - او دا رنګک حکم دے دَ استسقاء -

| دَ استسقا بیان | کوم وقت چه دَ باران ضرورت وی او نه وریږی - نو په دغه وقت کښې دَ باران سوال او دعا کول مسنون دی - او دے ته استسقا ویلے شی - دَ استسقاء دَ پاره مستحبه طریقه داده چه مسلمانان سره دَ خپلو وړو او زړو په معمولی لباس کښې پا پیاده په ډیر خشوع او خضوع سره وځی - او که څاروی هم دَ ځان سره او باسی نو غوره ده - او کافر دے دَ ځان سره نه ملګرے کوی - پردی حقونه دے خاوندانو ته ورسوی - توبے دے تازه کی - او طلب دَ مغفرت دے وکی - دَ پاره دَ عام مسلمانانو - او دوه رکعته به بے دَ بانګ او اقامت نه په جماعت سره وکی - امام به په کښې قرأت کوی - په جهر سره - او پس دَ مانځه نه به خطبه ولولی - بیا به امام مخ په قبله ودریږی - په داسے حالت کښې چه لاس به ئے اوچت کړی وی - او دُعا به کوی - دَ پاره دَ باران - او حاضرین به هم دَ هغه سره دعا کوی - یا به آمین وائی -

او دَ استسقا په دعا کښې څه خاص الفاظ ضروری نه دی - البته کوم الفاظ چه دَ نبی علیه السلام نه منقول دی - هغه غوره دی - لکه دا اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيْثًا مَرِيْئًا مَرِيْعًا نَافِعًا غَيْرَ ضَارٍّ عَاجِلًا غَيْرَ آجِلٍ - اَللّٰهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ وَبَهِيْمَتَكَ وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ وَاَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ - درے ورځے پے درپے دارنګک وتل پکاردی - دَدے نه زیات دے ورپسے نه اوځی - ځکه چه دَ زیات ثبوت نشته او که دَ وتو نه مخکښې یا زیوه ورځ دَ استسقاء نه پس باران وشو - نو بیا

---

له مراقی الفلاح ۱۲ ؎ شامی ۱۲ ؎ درمختار و رد المحتار ۱۲ ؎ مشکوٰة شریف ۱۲

هم وتل ښه دی - دَ پاره دشکریٔ - او دَ استسقاء نه مخکښې درے ورځے روژے نیول مستحب وی - او دَ استسقاء په درے وارو ورځو کښې دَ وتو نه مینه صدقه او خیرات کول هم مستحب دی -

**تنبيه** :- دَ امام اعظم صاحبؒ په نزد استسقاء صرف دُعا ده او استغفار دے - مونځ ورله مقرر نه دے - البته که ځان ځان لہ ئے مونځ وکه - نو جایز دے - اوکه جماعت ئے وکه - نو جماعت هم جایز دے - خو سنت نه دے - ځکه چه نبی علیه السلام ډیرے پیرے بے مانځه هم استسقاء کړے ده - نو ځینے عالمان چه وائی - په استسقاء کښې جماعت کول دَ امام صاحبؒ په نزد جائز نه دی - دا خبره ضعیفه ده - قابله دَ اعتبار نه ده - او صاحبینؒ وائی چه په استسقاء کښې به مونځ کوی دَ جماعت لکه چه مینه بیان شو - او دا قول دے هم دَ نورو دریُو وارو اماما نو یعنی دَ امام مالکؒ او دَ امام شافعیؒ او دَ امام احمدؒ بن حنبل - دوی قایل دَ جماعت دی -

**مسئله** :- که باران نه مسلسل وریدل - او دَ هغے په وجه تکلیف او نقصان وُ نو دَ هغے دَ ودریدو دَ پاره په دُعا کولو کښې څه بدی نشته - کوم الفاظ چه نبی علیه السّلام په دا سے موقعه کښې فرمائیلی وُو - هغه الفاظ ویل غوره دی - لکه دا:- اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا - اَللّٰهُمَّ عَلَى الْاٰكَامِ وَالظِّرَابِ وَبُطُوْنِ الْاَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ

**دَ تراویح بیان** | تراویح سنت موکده دی - په حق دَ هر مُکلف کښې - نروی او که ښځه په رمضان کښې دَ ماسختن دَ فرضو او دَ سنتو نه پس او دَ وترو نه مینه دے شل رکعته کوی - دوه دوه رکعته په یو یو سلام سره -

**مسئله** :- وتر دَ تراویح نه ورستو کول بکار دی - او که دَ تراویح نه ئے مینه وکړه هم کیږی -

ئے کبیری و در مختار ۱۲ ئے په فیض الباری شرح صحیح البخاری کښې راوړی دی "چه عمل دَ صحابیو رض په قول دے - او دَ امام دَ پاره تفاؤلاً څادر اړول مستحب دی - نه دَ پاره دَ قوم - دا رنګ ویلی دی په فتح القدیر کښې - او په متونو کښې چه دَ څادر اړولو نفی کړے شوے ده - دَ هغے نه مراد نفی دَ وجوب ده" ختم شه مضمون دَ فیض الباری ۱۲ څادر که څلور کونے وُ - نو دَ اړولو طریقه ئے دا ده - چه دواړه لاندے کونړنه ئے ونیسی خو ادل بدل - یعنی ښئ په چپ لاس او چپ په ښی - نو دا دواړه به بره کی - او برنی دواړه ښکته نو په دے طریقه سره دَ هر یو کونړ مینے جانب بدل شه - او که څادر مدوّر وه - نو ښے جانب دے کس ته کی - او که قباوه نو استر دے بره کی - او مخ لاندے - دا رنګ مذکوره دی په شامی کښې ۱۲ منه ئے رد المحتار ۱۲ ئے شرح التنویر ۱۲ ئے مراقی الفلاح ۱۲

**مسئله**[1] :- که تراویح ئے دَ ماسختن دَ فرضونه مخکښ وکړې نو نه اداکیږی ـ ځکه چه وقت ئے دَ فرضونه بعد دے ـ دارنګ که تراویح ئے دَ فرضونه درستو کړے وے ـ څو بیا معلومه شوه ـ چه فرض ئے بے اودسه کړی وو ـ او تراویح په اوداسه سره یا معلومه شوه ـ چه فرض ئے په څه بله وجه فاسد شوی وُو ـ نو دَ فرض دَ اعادے نه پس په وقت کښ دَ ننه دَ تراویح اعاده هم پکار ده ـ

**مسئله**[2] :- دَ تراویح نیت چه شری صرف دَ مانځه په ذکر دے اکتفا نه کوی بلکه دَ سنت موکده یا دَ تراویح یا دَ سنت تراویح نیت دے کوی ـ غرض دا دے چه په مناسبه طریقه ئے متعین کول پکاردی ـ او ځینے عالمان وائی چه دا حکم ضروری دے ـ او ځینے وائی احتیاطی ـ

**مسئله**[3] :- دَ تراویح قضا نشته ـ او که څه وقت ئے قضا راوړے ـ نو هغه به نفل شی ـ برابره خبره ده ـ چه دَ ماسختن مونځ ورسره هم قضا شوی وی ـ او که نه ـ نو که قضا شوے وَ ـ صرف دَ فرض او دَ وترو قضا یے لازمه ده ـ

**مسئله**[4] :- که په تراویح کښ ئے څلور رکعته په یو سلام سره وکړه ـ نو که قعدهٔ اولیٰ ئے نه وی کړې ـ صرف دوه رکعته وشو ـ او که دَ دوه رکعته نه پس ئے په قدر دَ تشهد قعده کړې وی ـ نو صحیح قول دا دے چه څلور رکعته وشو ـ

**مسئله**[5] :- که ټاشل رکعته تراویح په یو سلام سره وکړے ـ نو که دَ هر دوه دوه رکعته نه پس ئے په قدر دَ تشهد قعده کړے وه ـ تراویح ئے پوره وشوے ـ لیکن داسے کول مکروه دی ـ او که قعده ئے نه وه کړے ـ څو مسلسل شل رکعته ئے وکړه ـ په آخر کښ ئے قعده وکړه او سلام ئے وګرځاوُ ـ نو صرف دوه رکعته تراویح ئے وشوے ـ او ځینے عالمان وائی چه په دے صورت کښ دوه رکعته هم و نشو ـ بلکه مونځ ئے نه دے شوے ـ

**مسئله**[6] :- که تراویح ئے بے دَ عذر نه په ناسته وکړے ـ نو وشوے ـ خو داسے کول مکروه دی ـ او بعض عالمان وائی چه نه کیږی ـ لیکن صحیح خبره اوله ده ـ

**مسئله**[7] :- دَ سړو دَ پاره دَ تراویح جماعت سنت کفایه دے ـ نو دی له پکار دی چه په جماعت سره ئے اداکوی ـ

**مسئله**[8] :- په ماه رمضان کښ په تراویح کښ دَ قرآن شریف ختم یو وار سنت

---

[1] عالمگیری ۱۲ [2] شامی ۱۲ [3] ردالمحتار ۱۲ [4] مبسوط و خلاصة الفتاوی ۱۲ [5] قاضیخان و هندایه و در مختار ۱۲
[6] قاضیخان ۱۲ [7] درمختار و شامی ۱۲ [8] بحر الرائق ۱۲

دے۔ اودوه واره غوره دے۔ اودرےواره پیره غوره خبره ده۔

**مسئله**[1] :- که دَ ماسختن دَ فرضو جماعت نه وُ کړے شوے۔ بلکه فرض تو لو ځان ځانله کړے وُ۔ نو دے به تراویح هم ځان ځان له کوی۔ جماعت به نه کوی۔ ځکه چه جماعت دتراویح تابع دے دجماعت دَ فرضو۔ هاں که چا فرض ځان له کړی وو۔ او تراویح کول ئے دَ هغه جماعت سره چه هغوئ جماعت دَ فرضو کړے وُ۔ نو دا جائزه ده۔ دے به دَ هغوئ تابع وُگنړلے شی۔

**مسئله**[2] :- که سړی دَ ماسختن فرض ځان له کړی وو۔ او په تراویح کښں دَ امام سره شاملیده۔ نو دا جائز دی۔ لکه چه مخکښں ذکر شو۔ پاتے شو وتر۔ نو مشهوره داده چه ځان له به ئے کوی۔ دَ امام سره جائز نه دی۔ لیکن په مجموعة الفتاوی کتاب کښں وائی۔ حقه خبره داده۔ چه دَ امام سره جائز دی۔ دَ ناجائزوالی څه وجه ئے نشته۔

**مسئله**[3] :- که دَ سړی نه څه رکعتونه دَ تراویح پاتے شوی وُ۔ او جماعت دَ وترو ودریباو۔ وتر دے دَ امام سره وکی۔ اوباقی تراویح دے دَ وترونه وُروستو اداکی۔

**مسئله**[4] :- دَ تراویح څلورو رکعتونو ته ترویحه ویلے شی۔ دَ هرے ترویحے نه ورستو په قدر دَیوے ترویحے انتظار کول مستحب دی۔ اختیار ئے خپل دے۔ که په دَغه وخت کښں تسبیح وائی۔ اوکه قرأت دَ قرآن کوی۔ اوکه ځان ځان له نفل کوی۔ اوکه چپ کیني۔

**مسئله**[5] :- که په مقتدیانو بوج معلومیده۔ نو دَیوے ترویحے دَ مقدار نه کم مقدار انتظار کول هم جائز دی۔

**مسئله**[6] :- امام او مقتدیانو له پکار دی چه پس دَ نیت تړلو نه دَ هرے شفع په شروع کښں ثنا با قاعده وائی۔

**مسئله**[7] :- امام به په قعده کښں پس دَ تشهد نه درود او دُعا با قاعده دولی۔ لیکن که په مقتدیانو بوج وو۔ او صرف تشهد ئے پوره که نو هم خیر دے۔ خو بیا غوره داده۔ چه اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِ مُحَمَّدٍ ورسره هم ولولی۔ هله سلام وگرځوی۔

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] درمختار ۱۲ [3] مبسوط وهندیه ۱۲ [4] فتاوی سراجیه ۱۲ [5] درمختار ۱۲ [6] بحر ۱۲
[7] مجموعة الفتاوی ۱۲

**مسئله** :- اوکں ے تراویح په داسے حافظ پسے پکاردی - چه هغه په دے رمضان کښں دُدے نه مینه په تراویح کښں ختم دُ قرآن مجید نه وی کړے - کنی نو بیا حافظ له پکاردی چه په ځان باندے دوباره ختم دقرآن په تراویح کښں نذر اومنی. اوپه دے کښں احتیاط دے -

**مسئله** :- که حافظ په تراویح کښں یو سورة یا آیت په هیره سره پریخود او ما بعد ئے ولوست بیائے یادشو. نوکومه حصه چه ئے پریخے ده - دُ هغے دُلوستلو نه بعد ورله وس دُ ما بعد لوستے شوے حصے دوباره لوستل مستحب دی - دُ پاره ددے چه ترتیب فوت نه شی -

**مسئله** :- په سورة نمل کښں چه کومه بسم الله ده- هغه خو په اتفاق سره دسورة نمل یوجزدے - اودُ سورة برأت نه سوا دُ بل هر یو سورة په شروع کښں چه بسم الله لیک ده- هغه ځمونږ حنفیا نو په نزد دُ هرهر سورة نه جزنه ده بلکه هغه دُقول قرآن شریف نه یوجزدے - نو په تراویح کښں به ختم دُ قرآن مجید هله کامل ومکمل کیږی - چه حافظ یوځل دُیو سورة په شروع کښں بسم الله تل کی - او په زوره ئے ولولی - په زوره لوستل ئے ځکه پکاردی چه دُ مقتدیانو په حق کښں هم ختم تام شی -

**مسئله** :- په تراویح کښں چه حافظ دُ قرآن شریف ختمولو په وخت کښں سورة اخلاص درے درے ځله لولی - په دے کښں څه بدی نشته - (خو لازم دے نه گنړی) -

**مسئله** :- صحیح قول دا دے چه په تراویح کښں د قرآن مجید دختم نه بعد د رمضان په باقی شپو کښں هم تراویح کول سنت موکده دی -

**مسئله** :- که دُ خپلے محلے په جمات کښں ختم نه کیده - اودُختم دپاره بل جُمات له تله - هیڅ بدی پکښں نشته -

**مسئله** :- په نابالغ هلک پسے په تراویح کولو کښں دعالمانو اختلاف دے - (نو دُ احتیاط خبره داده چه بے ضرورته دے ورپسے نه کوی)

**مسئله** :- درمضان په میاشت کښں په تراویح کښں یوواردُ پوره قرآن شریف ختم سنت موکدہ دے - دقوم دُ ناراستئ اودُسستئ په سبب دے نه پریدی - لیکن

---

له مجموعة الفتاوی ۱۲ ته قاضیخان وهندیه ۱۲ ته تنویر المختار ۱۲ که عالمگیری ۱۲ شه هندیه ۱۲ له فتح القدیر ۱۲ که قاضی خان ۱۲ شه بحرالرائق وشامی ۱۲

که په هغوئ ډير بوج وُ - او ډيره وه چه جماعت له به نه راځي - جُماعت به شړشي - يا به جماعت بالکل انتهائي کم شي - يا حافظ نه وُ - نو بيا دے لنډے تراويح کوي - او دوه مره مقدار دے په کښې لولي - څومره مقدار چه په خلقو بوج نه وي - په داسے صورت کښې ځينې عالمان په هر رکعت کښې سورهٔ اخلاص وائي - او ځينې د هر ترويحے په اوله شفعه کښې سورهٔ والعصر او سورهٔ اخلاص او په دويمه شفعه کښې سورهٔ کوثر او سورهٔ اخلاص - او ځينې د الم ترکيف نه د آخره پورے لس سورتونه او ځينې په نورو طريقو - او غوره داده - چه د الم ترکيف نه شروع وکی - د آخره پورے لس سورتونه په لس رکعتونو کښې ولولي - بيا دوباره د الم ترکيف نه شروع وکی - او په آخري لسو رکعتونو کښې هم دا لس سورتونه پوره کي - او که په بله مناسبه طريقه ئے دا سورتونه ولوستل - يا نور سورتونه نو هم خير دے -

مسئله[۱] :- که پس د سلام گرځولو نه ځينې مقتديانو اوويل - چه درے رکعته وشو - او ځينې اوويل چه دوه - نو امام له پکار دي چه په خپل يقين عمل وکی - او که يقين ئے ديو جانب هم نه وُ - نو کوم مقتديان چه دے قابل اعتبار گنړي - د هغوئ په قول دے عمل وکی -

مسئله[۲] :- که په تراويح کښې شک واقع شه - چه رکعتونه شل وُشو - او که اتلس - نو صحيح خبره داده - چه په دے صورت کښې دے دوه رکعته نور وکی احتياطاً خو په جماعت سره نه - بلکه ځان ځان له -

مسئله[۳] :- امام د وترو مونځ شروع که - په دے خيال سره چه تراويح ختم شوے - بيائے په مانځه کښې ياد شو چه تراويح خو دوه رکعته لا پاتے دي - نو که د دے وترونه ئے دوه رکعته وکړه - او سلام ئے وگرځاوُ - نو دا دوه رکعته د تراويح ځائے نه نيسي - بلکه هغه به په مستقله طريقه کوي -

مسئله[۴] :- که د تراويح په يوه قعده کښې څوک مقتدي دغه شان په ناستے ناستے اوده شه - او امام د سلام گرځولو نه پس بيا بله شفعه شروع که - او داسے د دے دويے شفعے په قعده ويخ شه - نو ده له پکار دي چه سلام ونه گرځوي - او د امام سره په قعده کښې شريک شي - بيا د سلام گرځولو نه پس ودريږي -

---

[۱] فتاوی خانيه ۱۲ [۲] مبسوط و قاضيخان ۱۲ [۳] قاضيخان ۱۲ [۴] عالمگيري ۱۲

دوه رکعته زر زر اداکی - بیاد امام سره په دریمه شفعه کښې یا قاعده شریک شی -

**مسئله** :- ځینی خلق د رکعت په اوله حصه کښې ناست وی - خو چه امام رکوع له ځی ورپاسی - که د کاهلئ او د نارا ستئ په بناء ئے داسے کول - نو ظاهره داده چه مکروه تحریمی دی - او که سړے ضعیف وُ - یا بله څه وجه وه - بیا خیر دے - دا رنګ که خوب ورله ورغے - نو د خوب ځنګولو په حالت کښې ورله نزادیځ کول مکروه دی - خوب دے په څه ذریعه وزغلوی - بیا دے مونځ کوی -

**د شپینے بیان** په دے مسئله کښې د مجموعة الفتاوی کومه فتوی چه حماد نظر نه تیره شوے ده - هغه ډیره موزونه او مناسبه معلومیږی - له دے وجے نه څه د هغے خلاصه ترجمه تحریر کوم " وائی چه په یوه شپه کښې په تراویح کښې قرآن شریف پوره ختمول نه په قرون ثلثه کښې وو - او نه د فقهاء کرام په زمانه کښې - فقهاء صرف دومره قد رلیکی - چه یو ځیره ختم سنت دے - او دوه پیرے فضیلت - او درے پیرے افضل - او کوم ختم د یوے شپے چه په دے زمانه کښې مروّج دے - هغه په آوریدونکو باندے بوج وی - ځینی کسان صرف د صاحب خانه په بلنه او ځینی د خپلو ملګرو په خاطر شریک کیږی - په دوئ کښې یونن هم په شوق سره په یوه شپه کښې پوره قرآن شریف آوریدلو ته تن نه کیدی - اِلاَّ مَا شاءَ الله -

بله خبره داده چه حافظان په کښې د دومره عجلت او د جلد بازئ نه کار آخلی - چه په حرکات او په حروف کښې پوره فرق و اقع کیږی - نبی علیه السلام چه د دریو ورځو نه په کم کښې د قرآن شریف ختم کول منعه فرمایلی دی - د هغے هم داوجه ده چه اکثر په تلاوت کښې ګربړې راځی - او پوره فرق پریوځی - خلاصه خبره دا شوه - چه د یوے شپے ختم په اصل کښې کار خیر دے او مستحسن دے - خو د مذکوره وجوهاتو په بناء باندے مکروه ګرځیدلے دے - هاں که لوستونکے حافظ داسے جیّد وُ - چه حروف او حرکات ئے کما حقهٗ ادا کول - او د تجوید ضروری قواعد ئے په عمل کښې پوره پوره راد ستل - او مقتدیا نو په خوشحالئ سره آوریده - او بوج ئے نه ګڼړه - نو په دے صورت کښې به ختم شبینه موجب د ثواب وی - اګر که د دے وجود په خیرالقرون کښې نه وُ - لیکن بدعت حسنه به وی -

امام غزالی رحہ د پیروزاهدانو په بابت کښې نقل کړیدی چه هغوئ به په یوه شپه

---

ا ہ قاضی خان وشامی ۱۲

کېږي ختم کاؤ۔

او حمُونږ دَ امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله تعالیٰ علیه په بابت کېږي منقول دي ۔ چه دوئ به په رمضان کېږي هره ورځ یو ختم دورځے کاؤ ۔ یو دَ شپے خارج دَ تراویح نه ۔ لیکن دا معلومه خبره ده چه دي به په ختم کېږي دَ ټولو خبرو خیال ساته ۔ او څه داسے کار به ئے نه کاؤ چه دَ هغے په وجه کراهت راځي ۔ نو که څوک داسے کولے شي ۔ ډیره دَ ثواب خبره ده

والله اعلم ۔

| دَ قضا مونځ رَاګرځولو بیان | که دَ چانه بلا عذره مونځ قضا شه ۔ نو دوه ګناه دي ۔ یو دَ مونځ |
|---|---|

پریخودلو ۔ بل دَ تاخیر راوستلو ۔ نو که بیائے قضا راوګرځاؤ ۔ اول ګناه خوئے لرے شه ۔ لیکن دوئیم نه دے لرے شوے ۔ دا به په توبے سره لرے کېږي ۔ او که مونځ ئے قضا راو نه ګرځاؤ او توبه ئے وا ایسته ۔ دَ دے توبے اعتبار نشته ۔

**مسئله** :۔ که څوک اوده شه ۔ یائے هیر وو ۔ او مونځ ئے قضا شه ۔ نو کوم وخت چه بیدار شي ۔ یائے یاد شي قضا دے راوګرځوي ۔ بے دَ عذر نه دے په قضا راوړلو کېږي تاخیر نه کوي ۔

**مسئله** :۔ که دَ چا مونځونه دَ یو څو ورځو قضا شوي وُو ۔ نو هغه له پکار دي چه څومره زر ئے کیدے شي قضائے راوګرځوي ۔ بے دَ عذر نه دے پکېږي تاخیر نه کوي ۔ که په یو ځائے ئے کولے شو ۔ نو ډیره غوره ده ۔ دا ضروري نه ده چه دَ ماسپخین قضا به ماسپخین کوي ۔ او ماز یګر ماز یګر ۔ بلکه ادل بدل وخت کېږي ئے هم کولے شي ۔ او که مونځونه دمیاشتو یا دَ کلونو قضا شوي وُو ۔ نو دَ هغے په قضا راوړلو کېږي دے هم بے وجے تاخیر نه کوي ۔ څومره چه دَ فرصت او دَ موقعے سره مناسب کولے شي ۔ کوي دي چه پوره شي ۔ څه خاص اندازه ئے نشته ۔ چه په فلاني وخت کېږي دے دومره کوي ۔ او په فلاني کېږي دومره ۔ خو څومره مونځونه چه ئے قضا شوي دي ۔ هغه پوره کول ضروري دي ۔ په هر انداز سره چه وي ۔ او په هره موره کېږي چه وي ۔

**مسئله** :۔ قضا مونځ هر وخت کولے شي ۔ بے دَ دریو وختونو نه ۔ یعنے وخت دَ طلوع او دَ غروب او دَ استواء ۔ لکه چه مینه ذکر شوي دي ۔

**مسئله** :۔ په خپلو قضا راګرځولو دے څوک نه مطلع کوي ۔ ځکه چه تاخیر ګناه دے ۔ او په خپله ګناه باندے بل خبرول هم بده خبره ده ۔

---

ل شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ ـ ۲ مضمون حدیث ۱۲ ـ ۳ شامی ۱۲ ـ ۴ درمختار و رد المحتار ۱۲ ـ ۵ شرح التنویر ۱۲

مسئلہ :- کوم وقت چہ ځوانئ ته رسیدلے او مکلف شوے دے۔ که دَ هغه وقت نه
ترا وسه پورے دَ شپږو وقتونو مونځونه نهٔ وُ قضا شوی۔ نه مسلسل نه جدا کانه یا قضا
شوی وُ۔ خو بیائے ټول را کړځولی وو۔ نو په دواړو صورتونو کښې دے صاحب ترتیب
دے۔ یعنے که وس دَ ده نه یو یا په یو ځائے دوه یا درے یا څلور یا پنځه مونځونه قضا شو۔
نو دے به وړلیے وقتی مونځ هله ادا کوی چه مینه هغه قضا مونځ را وګرځوی۔
او په قضا راوړلو کښې ئے هم ترتیب واجب دے۔

مثلاً دَ مازیګر او دَ ماښام مونځ ئے قضا شه۔ او وس دَ ماسختن وقت دے۔
نو دے به دَ ماسختن مونځ هله ادا کوی چه مینه دغه دواړه قضا مونځونه را وګرځوی
که هغهٔ ونکړه او د ماسختن مونځ ئے وکه۔ نو وُ نشه۔ مینه به دَ مازیګر مونځ
قضا راوړی۔ بیا دَ ماښام۔ بیا به ادا کوی وقتی مونځ۔ او که مینه ئے دَ ماښام
مونځ قضا راوړه۔ بیا دَ مازیګر نو دا هم نه صحیح کیږی۔

مسئلہ[۲] :- که مونځونه ئے شپږ قضا شوی وو۔ یا زیات دَ شپږو نه۔ نو
وس ئے ترتیب واجب نه دے۔ یعنے دا ضروری نه ده چه کوم ئے اول قضا شوے۔ اول
به هغه قضا راوړی۔ بیا دویم۔ بیا دریم وغیره۔ بلکه خوښه ئے خپله ده۔ دَ
هر وقت مونځ چه مینه قضا راوړی خیر دے۔ او دا هم ضروری نه ده چه وقتی
مونځ به خاص دَ قضا راګرځولو نه پس کوی۔ بلکه مینه ئے هم کولے شی۔

مسئلہ[۳] :- که مونځونه ئے دَ پنځونه زیات قضا شوی وُ۔ نو بیان شو۔ چه
ترتیب ساقط دے۔ بیا که هغه ئے قضا را وړل۔ او څه ئے پاتے وو۔ نو هم ترتیب
ساقط دے۔ مثلاً د دریو ورځو مونځونه ئے قضا شوی وو۔ دَ دوو ورځو ئے قضا
راوړه۔ او پنځه پاتے شو۔ نو دا پنځه چه قضا راوړی۔ په دے کښې ئے هم ترتیب
واجب نه دے۔ که بے ترتیبه ئے راوګرځوی۔ خیر دے۔ او وقتی مونځ دَ هغے نه
مینه هم ادا کولے شی۔ بلکه که په دغه پنځو کښې ئے څلور هم قضا راوړه۔
صرف یو ئے پاتے شه۔ نو وقتی مونځ دَ هغے نه مینه هم ادا کولے شی۔

مسئلہ[۴] :- که پخوانی شپږ یا دَ شپږو نه زیات قضا مونځونه ئے په ذمه باقی
وو۔ او بیائے همیشه مونځ ادا کاوُ۔ خو هغه قضائے لا تراوسه پورے نه وُو را ګرځولی
نو چونکه ترتیب غورځیدلے دے۔ که وس ئے بیا چرته مونځ قضا شه۔ دَ هغے دَ

---

[۱] درمختار و شامی ۱۲ [۲] درمختار و شامی ۱۲ [۳] شرح التنویر و رد المحتار ۱۲ [۴] شرح التنویر ۱۲

ناکړ شوی نو مینه هم ادا مونځ کولے شي - ترتیب واجب نه دے -

**مسئله** [۱] :- که د چا په ذمه شپږ یا د شپږ نه زیات قضا مونځونه وي - له دے وجے نه په ترتیب واجب نه وي - خو بیا ئے هغه ټول قضا را دوګرځول - چه په ذمه ئے یو قضا مونځ هم پاتے نشه - نو که پس د دے نه تے بیا یو یا پنځه مونځونه قضا شو - نو د هغې ترتیب به په واجب شي - او بے د هغې د ناګرځولو نه به وقتي مونځ ادا کولے نه شي هاں که قضا مونځونه شپږ وته ورسیدل - نو ترتیب به بیا باطل شي او د هغې د ناګرزولو نه به مینه وقتي مونځ ادا کولے شي -

**مسئله** [۲] :- که وتر تے قضا شو - او دے د صاحب ترتیب - نو که وتر ورته یاد وو خو قضائے یا نه وړه او د سحر مونځ ادا که نو ونه شه - مینه دے وتر قضا را وړی، بیا دے هله د سحر مونځ کوی -

**مسئله** [۳] :- که ماسختن تے صرف فرض وکړه او او ده شه - بیا ئے د تهجد په وقت تهجد وکړه - او وتر - بیائے سحر یاد شو - چه ماخو فرض په طهیره سره بے اودسه کړے و - نو وس په صرف د ماسختن فرض قضا اوړل ضروری دی - د وترو قضا په نشته -

**مسئله** [۴] 907 :- که څوک صاحب ترتیب و - مثلاً یو مونځ ئے قضا شه - بیائے د وقت مونځ ادا که - په دا سے حالت کښې چه قضا مونځ هیر و - نو وقتي مونځ ئے ادا شه - دا رنګ که قضا مونځ ئے یاد و - خو په وقت کښې دومره تنګی وه - چه قضا او ادا په کښې دواړه نه شو ځائیدے ( د ادا نه مراد صرف فرض او واجب دی، نه سنت وغیره ) او صرف وقتي مونځ ئے ادا که نو وشه -

**فائده** 908 :- که صاحب ترتیب جاهل و - معلومه ورته نه وه - چه ترتیب واجب دے - نو په ترتیب کښې ئے فرق را وست - بیا ورته معلومه شوه - نو یو قول دا هم دے - چه په جهل سره هم ترتیب غورزیږی - لکه په صورت د نسیان کښې -

**مسئله** [۵] 909 :- که د ترتیب پریخودلو په وجه مونځ فاسد شه - نو د امام صاحب په نزد به دا افساد موقوف دی - کوم مونځونه چه فاسد شوی او کوم چه قضا شوی - که د دے مجموعه تعداد شپږ وته ورسید - هغه فساد به پوره شي - او مونځ به ئے وشي - کنی

[۱] درمختار ورد المحتار ۱۲ [۲] درمختار و شامی ۱۲ [۳] شامی ۱۲ [۴] شرح التنویر و شرح البدایه ۱۲ [۵] درمختار و شامی ۱۲ [۶] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲

نو نفل به وګرځي. مثلاً فرض که چه د صاحب ترتیب نه د اتوار په ورځ د سحر مونځ قضا شه. بیائې په داسې حالت کښې چه قضا مونځ ورته یاد وُ. خو را وې نه ګرځاوُ د ماسپخین مونځ ئې ادا که. نو د امام صاحبؒ په نزد دا مونځ فاسد دے. خو موقوف به وي. دا ترڅو که بیائې د ماز یګر مونځ ادا که. او هغه قضا شوے مونځ ئې نه وُ را ګرځولے. باوجودیکه یاد ورته وُ. نو د ماز یګر دا مونځ هم فاسد دے. خو موقوف به وي.

دا ترڅو که بیائې د ماښام اود ماسختن مونځ ادا که. او قضا مونځ ئې نه وُ را ګرځولے نو دا دواړه مونځونه هم فاسد شو. خو موقوف به وي. دا ترڅو که بیائې د ګل په ورځ د سحر مونځ ادا که. بیا د قضا را ګرځولو نه. نو د ګل په ورځ چه نور را وخیجي. د غه ټول فاسد شوي مونځونه به ئې صحیح وګرځي. ځکه چه پنځه فاسد شوي وو. او یو قضا. نو مجموعه شپږ شو. ترتیب او غورځید. فاسد شوي مونځونه ئې صحیح شو.

او که په مذکوره پنځه وختو نو کښې ئې یو وخت هغه قضا شوے مونځ را وګرځاوُ نو د غه قضا راوړلو نه مینه چه ئې کوم وقتي مونځ ادا کړے وُ. او فاسد شوے وُ هغه نفل وګرځید.

**مسئله** :- قضا صرف د فرض او د واجب وي. او د وقت نه ورستو د سنت قضا نشته. هاں که د سحر مونځ ئې سنت او فرض دواړه قضا شو. نو که بیائې د زوال شروع کیدلو نه مخکښې قضا داوړي. فرض او سنت به دواړه قضا داوړي او که د زوال نه بعد ئې قضا داوړي. نو صرف فرض.

**مسئله** :- که نابالغ هلک یا جینۍ د ماسختن مونځ وکه. او اوده شه. بیا د شپې شیطان په خوب کښې خطا که. او سحر را پاسید. نو د ماسختن هغه مونځ به بیا را ګرځوي. ځکه چه مینه نفل وُ. او س پې فرض شوے دے. نو غوره قول دا دے. چه را ګرځول پې لازم دي. او که د سحر وقت نه مینه بید ارشه. نو بیا پې د ماسختن د مانځه اعاده اجماعاً واجبه ده.

دا کی حتم امام محمد صاحبؒ په داسې اوله موقعه کښې امام اعظم صاحب رح ته حاضر شه. نو وې وئیل. کوم نابالغ چه د ماسختن مونځ کړے وي. بیائې په شپه کښې احتلام شوے وي. د هغه په حق کښې تاسو څه فرمایئ. د ماسختن مونځ به را ګرځوي او که نه؟ امام اعظم رح صاحب وفرمائیل چه وه. نو امام محمد صاحب رح

له شامی ۱۲ ۲ه او د سحر د سنتو وقت د سحر فرض نه مینه دے ۱۲ منه ۳ه خلاصة الفتاوی ۱۲ ۴ه رد المحتار ۱۲

دجماعت په یوځای کښې ددرید. وموځ ئے داؤ کړځاؤ. دااوّل مسئله ده. چه هغه دِامام صاحب نه ذده کړه. امام صاحب رح چه داحالت ولید. وئے فرمائیل چه دا هلک نیک اوصالح دے. نو واقعی چه داسے ؤ.

**مسئله** :- که دَ چا په ذمه قضاموځونه پاتے وو. اوهغه ئے په ژوندانه کښې اداکولے شو. اګرکه په اشارے سره وی خو دائے نه کړه. نو دَمرګ په وخت کښې درله وصیّت کول واجب دی. چه ځما په ذمه دومره موځونه دی. دَ هغے فدیه ورکئ. که وصیّت ئے ونکړه نو ګنهګاردے. اودَ مانځه دَ فدیئے وغیره بیان به دَ دوژے دَ فدیئے په بیان کښې راشی.

دسجده سهو بیان

دسجده سهوه طریقه داده. چه کوم وخت دآخری رکعت نه پس په قعده کښې التحیات دَعبده ٗ ورسوله ٗ پورے ولولی. ښی جانب ته سلام وګرځوی. بیادَ تکبیر ویلو سره لاړشی سجدے له. په سجدهٔ کښې کم نه کم درے پیرے اووائی سبحان ربی الاعلیٰ. بیا سره دَتکبیره دَسجدهٔ نه راپورته شی. جلسه اوکی. بیا د تکبیر ویلو سره لاړشی دویئے سجدے له. هغه هم په دے طریقه پوره کی. بیا دَ الله اکبر ویلوسره دسجدئے نه را پورته شی. اوپه قعده کینی. په قعده کښې التحیات اودرود شریف او دعاولولی بیا دواړو پورته سلام وګرځوی. بس موځ پوره شه.

**مسئله** :- په مانځه کښې چه واجبات دی. که دَ هغے نه یو پاتې په هیره سره پریخودل نوسجده سهوه واجبیږی. دَ سجده سهوه په کولو سره به د غه موځ پوره شی. که وئے نکړه نو موځ دے بیا راوګرځوی. ځکه چه کامل نه دے شوے.

**فائده** :- سهوهیریدلو ته وائی. اوسجده سهوه په دریو ځیزونو سره واجبیږی ترک دَ واجب. یا تاخیردواجب. یا تاخیر دَفرض. اوپه اصل کښې دَ سجده سهو واجبیدو سبب یو دے. یعنے ترک دَ واجب په هیره سره. ځکه چه فرض اوواجب په خپل خپل محل کښې کول واجب دی. نو که تاخیرئے دَ واجب راوست یا دَ فرضونو ترک دَواجب ئے وکه.

**مسئله** :- که په مانځه کښې ئے فرض پریخود. دَ هغے تلافی په سجدهٔ سهو سره نه شی کیدے. بلکه موځ ئے ونشه. بیارا ګرځول ئے ضروری دی.

**مسئله** :- که سجدهٔ سهو پے واجبه شوے وه. خو هیرئے شوه. اودواړو غاړو

---

لے عالمګیری ۱۲ ۲ے دارنګ مذکوردی په هدایه کښې او په درمختارکښې او بعضے وائی چه درودشریف اودعا دَ هم ولولی احتیاطاً ۱۲ ۳ے مراقی الفلاح ۱۲ ۴ے شامی ۱۲ ۵ے شرح التنویر ۱۲

نو ئے سلام وګرځاوُ - لیکن لاتر اوسه پورے دَ جمات نه نۀ وتے - او سینه ئے دَ قبلے نه نوه ګرځیدلے - او څه خبرے وغیره دَ مانځۀ منافی عمل ئے نۀ وُ کړے - وس دے سجدۀ سهو وکی - بلکه دغه شان په ناستے ناستے که ئے درود شریف یا څه وظیفه وغیره شروع کړے وه - هم خیر دے - سجدۀ سهو دے وس وکی - مونځ به ئے پوره شی -

مسئله[1] :- که سجدۀ سهو پرے لازمه وه - او یادو رته وُ - خو قصداً ئے دواړو غاړو ته سلام وګرځاوُ - او اراده ئے دَ سجدۀ سهو دَ نه کولو وه - په دے صورت کښ هم دا حکم دے - چه دکومے پورے ئے څه داسے کار وغیره نه وی کړے - چه په هغے سره مونځ فاسدیږی - سجدۀ سهو کولے شی - خو دَ بعضو اختلاف په کښ شته -

مسئله[2] :- که سجدۀ سهو ئے دَ سلام ګرځولو نه مینه وکړه نو هم وشوه - مونځ ئے په ظاهر الروایت[3] کښ پوره شه - خو داسے کول مکروه دی -

مسئله[4] :- که دَ فرض په اولو دواړو رکعتونو کښ ئے سورۀ فاتحه ولوستنه - اوبل سورة تل کول ئے هیر شو - نو په آخری دوو رکعتونو کښ دے الحمد سره سورة تل کی - او ورستو دے سجدۀ سهو وکی - او که په یو کښ ئے هیر شوے وُ - نو دَ آخری دوو رکعتونو په اول کښ دے تل کی - او ورستو دے سجده سهو وکی - او که په آخری رکعتونو کښ ئے هم سورة تل کول یاد نه شو - او ورستوئے په مانځۀ کښ یاد شو - چه ما خو په فلانی رکعت کښ دَ الحمد نه پس نور څه نه وُ ویلی نو هم خیر دے - چه سجده سهو وکی مونځ ئے پوره شه -

مسئله[5] :- دَ وتر او دَ سنت او دَ نفل په ټولو رکعتونو کښ دَ الحمد سره سورة تل کول واجب دی - نو که په یو رکعت کښ ئے هیر شو - سجدۀ سهو واجبه شوه -

مسئله[6] :- دَ الحمد نه پس ئے دوه سورتونه یا زیات ولوستل په یو رکعت کښ نو په دے سره سجدۀ سهو نه لازمیږی -

مسئله[7] :- که دَ فرض آخری دوه رکعتونه ئے هم ډک وکړه - یا یو - نو په دے سره سجده سهو نه لازمیږی -

مسئله[8] :- که دَ فرض په تش رکعت کښ ئے الحمد او نه لوستنه - بلکه چپ ودریدۀ دومره چه کم نه کم درے پیرے په کښ سبحان الله ویلے کیدے شه - نو په دے صورت

---

[1] شامی ۱۲ [2] شرح البدایه ۱۲ [3] خو څومره بعضے علماء وائی چه نه کیږی - اعاده پرے واجب ده بحر ۱۲ منه [4] عالمکیری وشامی ۱۲ [5] شرح البدایه ۱۲ [6] ردالمحتار ۱۲ [7] فتاوی هندیه ۱۲ [8] شرح البدایه ۱۲

کښې هم سجده سهو واجبه نه ده۔

**مسئله**[1]:- که په ولاړه ئې د الحمد نه مینه التحیات ولوست - په دے سره سجده سهو نه واجبیږی - او که پس د الحمد نه ئې ولوسته نو واجبه ده - او که د فرضو په تش رکعت کښې ئې د الحمد په ځائے التحیات ولوسته - نو سجده سهو په دے سره نه لازمیږی -

**مسئله**[2]:- که په هیره سره ئې په یو رکعت کښې دوه رکوع کانے وکړے - یا درے سجدے - نو سجده سهو واجبه ده۔

**مسئله**[3]:- که په مانځه کښې ئې سورتو نه وړاندے وروستو ولوستل - په دے سره سجده سهو نه لازمیږی۔

**مسئله**[4]:- که په قعدهٔ اولیٰ کښې ئې التحیات دوه پیرے ولوسته - نو سجدهٔ سهوه لازمیږی - برابره خبره ده چه فرض مونځ ئې وی او که بل۔

**مسئله**[5]:- که د التحیات په ځائے الحمد ولوسته - یا نور څه - نو سجده سهوه پے لازمه ده۔

**مسئله**[6]:- که وترے کول او شک ئې شه - چه دا دویم رکعت دے - او که دریم او زیات گمان ئې یوے غاړے ته نه وی بلکه دواړه جانبه برابر وی نو دغه رکعت دے دویم ګڼې - لیکن قنوت به په کښې لولی - او دغه رکعت نه پس به قعده کوی - بیا به دریم رکعت کوی۔ او په هغې کښې به هم قنوت لولی۔ او په آخر کښې به سجده سهوه کی۔

**مسئله**[7]:- که په وترو کښې ئې دعاء قنوت لوستل هیر شو۔ د سورة نه پس سمدستی رکوع ته لاړ۔ نو سجده سهو لازمه ده۔

**مسئله**[8]:- که په وترو کښې ئې د دعا قنوت په ځائے سبحانک اللّٰهم او وے یائے ثنا او دعا قنوت دواړه ولوستل - نو په دے سره سجده سهو نه لازمیږی۔

**مسئله**[9]:- که د وتر په اول یا په دویم رکعت کښې ئې په هیره سره دعاء قنوت ولوسته۔ نو د دے اعتبار نشته - په دریم رکعت کښې به ئې باقاعده لولی۔ او سجده سهو پے هم شته۔

**مسئله**[10]:- که امام په جهری مونځ کښې قرأت په پټه وکه۔ یا په سرّی مونځ

---

[1] عالمگیری ۱۲ [2] منیه و درمختار ۱۲ [3] شامی ۱۲ [4] عالمگیری ۱۲ [5] عالمگیری ۱۲ [6] غنیه ۱۲ [7] شرح البدایه ۱۲ [8] بحر رایق ۱۲ [9] بحر رایق ۱۲ [10] درمختار و شامی ۱۲

کبنی چا قرأت وکه په جهر سره - برابره خبره ده - چه امام وی - او که یوازے مونځ کونکے - نو په دواړو صورتونو کبنی سجده سهو شته - او دا مسئله د مانځه په واجبات کبنی په تفصیل سره بیان شوے ده -

**مسئله**[1] :- که تسبیح یا درود شریف ئے په جهر سره ولوست - نو په دے سره سجده سهو نه لازمیږی -

**مسئله**[2] :- که څلور رکعتی یا درے رکعتی فرض مونځ ئے کاوه - یا واجب - او پس د دویم رکعت نه ئے کیناستل هیر شو - دریم ته ودراوچت شه - او بیائے یاد شو - نو که ناستے ته نزدے وُ - یعنے د بدن کوزه نیمه حصه ئے لا نه وه نیغه شوے - کینی - التحیات دے ولولی - بیا به دریم رکعت ته پاسی - او په دے صورت کبنی پے سجده سهو نشته - او که ودریدو ته نزدے وُ - یعنے د بدن کوزه نیمه حصه ئے سیده شوے وه - نو وس دِ نه کینی - بلکه پاد دے څی - باقی مونځ دے پوره کی - او سجده سهو پے لازمه ده - او که پس د هغے نه چه کوزه نیمه حصه د بدن ئے نیغه شوے وه - را و کرځید - او اوله قعده ئے وکړه - نو ګناه دے - او سجده سهو په دے صورت کبنی هم نشته، لیکن بعضے عالمان وائی چه په دے صورت کبنی به ئے مونځ فاسد شی -

**مسئله**[3] :- مذکوره حکم خاص د منفرد او د امام دے - او که مقتدی مدرک په هیره سره دریم رکعت ته پاسیږ - او قعدهٔ اولی ئے هیره شوه - او امام ئے ناست وُ - نو مقتدی به په هر حال کبنی راګرځی - کینی به - ودریدل ئے نه دی معتبر - او سجده سهو پے نشته -

**مسئله** :- که قعده اخیره ئے پریخوده - او بل رکعت ته پاسید - مثلاً د ماسپخین څلور فرض ئے کول - اخیری قعده ئے پریخوده - او پنځم ته ودرپاسید - نو حکم دا دے - چه د کوے پورے ئے د پنځم رکعت سجده نه وی کړی - کینی - او التحیات دے ولولی - بیا دے په آخره کبنی سجده سهو وکی - نو فرض ئے وشو - او که د پنځم رکعت سجده ئے هم کړے وه - قصداً وی - او که په هیره - نو وس به ورسره یو رکعت بل نفل کوی - شپږ به پوره کی - او سجده سهو پے صحیح خبره دا ده چه نشته - نو دا شپږ واړه ئے نفل شو - فرض به بیا کوی - او که شپږم رکعت ئے ورسره نفل نه که - نو څلور

---

[1] بحرالرائق ۱۲ [2] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [3] در مختار ورد المحتار ۱۲

ئې نفل شو ۔ او یو هسې لاړ ۔ فرض به بیا کوي ۔

**مسئله** :۔ که د صبا په مانځه کښې ئې د دویم رکعت نه پس قعده ونکړه ۔ بلکه دریم رکعت ته پاسیده ۔ او د دریم رکعت سجده ئې وکړه ۔ نو څلورم رکعت به ورسره تل کوي ۔ او که د ماښام په مانځه کښې ئې قعده اخیره پریخوده ۔ څلورم رکعت ته پاسیده ۔ او د څلورم رکعت سجده ئې وکړه ۔ نو بل به ورسره نه تل کوي ۔ دا څلور[2] ئې نفل شو ۔ فرض به بیا وکي ۔

**مسئله**[3] :۔ که قعده اخیره ئې په قدر د تشهد وکړه ۔ بیا په هیره سره بل رکعت ته پاسیده ۔ مثلاً پس د څلورم رکعت نه په قدر د تشهد کیناست ۔ او بیا په هیره سره پنځم رکعت ته ورپاسیده ۔ نو د پنځم رکعت د سجدې نه مخکښې ئې چه کوم وقت یاد شي کیني ۔ التحیات دې نه لولي ۔ بلکه سلام دې وګرځوي ۔ او سجده سهو دې وکي ۔ او که د پنځم رکعت سجده ئې کړې وه ۔ وروستو ئې یاد شو ۔ نو یو رکعت دې ورسره بل وکي ۔ چه شپږم پوره شي ۔ په آخر کښې به سجده سهو وکي ۔ نو څلور به فرض شي ۔ او دوه نفل ۔ او که د پنځم رکعت نه پس ئې سلام وګرځاو ۔ او سجده سهو ئې وکړه نو څلور ئې فرض شو ۔ او یو ضایع لاړ ۔ بنه ئې ونکړه ۔

**مسئله**[4] :۔ که د ماښام په مانځه کښې پس د دریم رکعت نه په قدر د تشهد کیناست بیا په هیره سره څلورم رکعت ته ورپاسیده ۔ او د څلورم رکعت د سجدې نه پس ورته یاد شو ۔ نو پنځم رکعت به ورسره بل تل کي ۔ درې به فرض شي ۔ او دوه نفل ۔ او که د صبا په مانځه کښې پس د دویم رکعت نه په قدر د تشهد کیناست ۔ بیا په هیره سره دریم رکعت ته ورپاسیده ۔ او پس د دریم رکعت د سجدې نه ورته یاد شو ۔ نو وس دې ورسره څلورم رکعت بل وکي ۔ نو دوه ئې فرض شو ۔ او دوه نفل ۔ او د صبا د مانځه نه پس د نور ختو پورې چه نفل مکروه دي ۔ هغه نفل دي چه شروع کړي ئې وي قصداً ۔ او دا رنګ[5] پس د مازیګر د مانځه نه ۔

**مسئله**[6] :۔ چه په هیره سره ئې په اوله قعده سلام وګرځاو ۔ بیائې یاد شو ۔ او تر اوسه پورې ئې د مانځه نه منافي څه عمل نه وُ کړې ۔ نو اوس دې پاسي باقي دې پوره کي ۔ او سجده سهو دې وکي ۔ مونځ ئې وشه ۔ او که د سلام ګرځولو نه پس ئې د مانځه منافي څه عمل کړې وُ ۔ نو مونځ دې بیا را وګرځوي ۔ البته که نفل ئې[7]

---

[1] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [2] په دواړو صورتو کښې ۱۲ منه [3] شرح التنویر ۱۲ [4] بحر رائق ۱۲ [5] شرح التنویر ۱۲

نووشو - راکرځول پے نشته - ځکه چه نفل هر دوه دوه رکعته مستقل مستقل وی -
لکه چه مینه بیان شوی دی -

**مسئله** [۱] :- که څلور رکعته نفل ئے کول - او اوله قعده ئے هیره شوه - دریم
ته ورپاسیدو - نوډ کوئے پورے چه ئے د دریم رکعت سجده نه وی کړی - چه یاد ئے شی -
کیدے نی - اوکه د دریم رکعت سجده ئے وکړه - څلورم رکعت دے هم وکی - او په
دواړو صورتونو کښ پے سجده سهو شته -

**مسئله** [۲] :- که امام سهو شه - او سجده سهوه ئے کوله - مقتدی به
هم د هغه متابعت کوی - او د مقتدی په سهو سره سجده د سهو نه لازمیږی -

**مسئله** [۳] :- مسبوق به هم د خپل امام متابعت کوی - په سجده سهو کښ
برابره خبره ده چه امام د ده د شاملیدو نه مینه سهوه شوے وی - اوکه ورسته
او مطلب دادے چه کوم وقت امام سلام کرځوی - دے به نه کرځوی - او سجده به
ورسره کوی - بیا تشهد - او بیا چه سلام وګرځوی - دے به پاسی - خپل پاتے
رکعتونه به پوره کی - اوکه دے په دے پاتے رکعتونو کښ سهو شه - نو سجده سهو به
دوبیره کوی با قاعده -

**مسئله** [۴] :- د امام په سهو سره په لاحق باندے هم سجده سهو لازمیږی -
خو دومره خبره ده - چه لاحق به د خپل مونځ په آخر کښ سجده سهوه کوی -

**مسئله** [۵] :- که مقیم په مسافر پسے اقتدا کړے ده - او امام سجده سهو
کوله - نو دا مقتدی به په سجده سهو کښ د امام متابعت کوی - په شان د مسبوق
او ځینے عالمان وائی چه د خپل مونځ پوره کولو نه پس به ئے ادا کوی په شان د لاحق -

**مسئله** [۶] :- که امام په هیره سره د دویم رکعت نه پس پاسید - قعدهٔ اولیٰ
ئے ونکړه نو مقتدیانو له پکار دی چه د هغه انتظار وکی - که هغه ودریدو ته نژدے
شه - دی دے هم ورپاسی - او که ناستے ته نژدے وی - او بیا په قعده کیناست - نو
ډیره ښه ده -

**مسئله** [۷] :- که امام په هیره سره مثلاً پنځم رکعت ته پاسید - او دے نه
مخکښ ئے قعده اخیره کړے ده - نو مقتدی به په ناستے د هغه انتظار کوی - که امام

---

[۱] درمختار ۱۲ [۲] او بعضے وائی چه د نفل او فرض حکم په دے کښ یو دے - که وودریدو نه به کینی منه ۱۲
[۳] منیه وغنیه ۱۲ [۴] درمختار و ردالمحتار ۱۲ [۵] درمختار و شامی ۱۲ [۶] بحر رایق ۱۲ [۷] درمختار و شامی
[۸] درمختار و شامی ۱۲

داوکړځیدا و بیایې سلام کړځاوُ - مقتدی به ورسره هم سلام کړځوی - اوکه امام راونه گرځید - بلکه دَ پنځم رکعت سجده ئې وکړه - نو مقتدی دے ځان له سلام وکړځوی - دَده مونځ وشه - او امام به شپږم رکعت هم وکی - نو څلورئې فرض شه او اخیری دوه نفل - او ځینې عالمان وائی چه مقتدی به دَ امام متابعت کوی - برابره خبره ده - که امام راوکرځید اوکه نه - لیکن قوی خبره اوله ده - اوکه امام پنځم رکعت ته پاسید - په داسے حال کښې چه دَدے نه مخکښې ئې قعده اخیره نه وه کړے - نو که راوکرځید - مقتدی به ئې متابعت کوی - اوکه راونه کړځید - بلکه دَ پنځم رکعت سجدهٔ ئې هم وکړه - نو دا مونځ دَ یَو هم ونشه - نه دَ امام اونه دَ مقتدی - نو که مقتدی تشهد ولوست - او بیازے ئې سلام وکرځاوُ - داورله هم نه کافی کیږی - البته نفل به وکړځی - او هغه فرض به بیا کوی -

**مسئله** :- په فرض او سنت او نفل کښې - او دَ جمع اودَ اختر وغیره په مانځهٔ کښې دَ سجده سهو حکم یو شان دے - خو دومره خبره ده - چه دَ جمع اودَ اختر په مانځهٔ کښې کَنړه زیاته وی - نو دَ وُرستنی عالمانو په نزد غوره داده چه په دے کښې سجدهٔ سهو نه کوی - دَپاره دَدے چه خلق واقع نه شی په فتنه او په کړېړئې کښې -

**مسئله** :- که مثلاً دَ ماسپخین څلور رکعته فرض ئې کول او په مانځهٔ کښې ئې شک راغے چه دا اول رکعت دے - که دویم - نو که عادت ئې دَ شک نه وُ - بلکه داشک ورته اتفاقاً پریوت - نو مونځ دے مات کی - او بیا دے دَ سره دکی - اوکه داشک ورته اتفاقاً نهٔ دَ پریوتے - بلکه دے شکی وُ - نو خپل کمان دِ وزغلوی - که غالب کمان له ئې راغله - چه دا اول رکعت دے - اول دے حساب کی - اوکه دا راغله چه دا دویم دے - نو دویم دے حساب کی - او سجدهٔ سهو پے نشته.

لیکن که دَدے فکر په وجه ئې په قدر دَ یو رکن تاخیر راوست بیا شته - اوکه غالب کمان له ئې هیڅ رانغله - بلکه دواړه جانبه برابر وُو - اول دے حساب کی - لیکن دَدے رکعت نه پس به قعده هم کوی - په قدر دَ تشهد - ممکنه ده - چه دغه رکعت ئې په واقع کښې دویم وی - بیا به پاسی - بل رکعت به وکی - دَ هغې نه پس به هم قعده کوی - بیا به بل رکعت وکی - او دَ هغې

---

له بحرالرائق ۱۲ ـ درمختار ورد المحتار ۱۲

نه پس به هم قعده کوی. ممکنه ده چه دا ئے په واقع کښې څلورم وی. بیا به پاسی. بل رکعت به وکی. بیا قعده اخیره. او سجدهٔ سهوے هم شته.

**مسئلهٔ[1]** :- که شک ئے راغے چه دا دویم رکعت دے او که دریم. نو د هغے هم دا حکم دے. چه موئږ کونکی نه که دا شک اتفاقاً پریوتے وُ. موئږ دے مات کی. بیا دے د سره راوګرځوی. او که اتفاقاً ورته نه وُ پریوتے. بلکه عادةً وُ. نو په خپل غالب ګمان دے عمل وکی. او که غالب ګمان ئے یو جانب ته هم میلان و نخوړ. نو کم دے حساب کی یعنې دغه رکعت دے دویم وګنړی. د هغے نه پس دے قعده وکی. بیا دے پاسی بل رکعت ته. د هغے نه پس دے هم قعده وکی. شاید چه هغه څلورم وی په واقع کښې. بیا دے بل رکعت وکی. او په آخر کښې سجدهٔ سهو.

**مسئلهٔ[2]** :- که شک ئے راغے چه دا دریم رکعت دے. او که څلورم. د دے هم دغه حکم دے. که دا شک ورته اتفاقاً پریوتے وُ. موئږ دے د سره وکی. کنی نو په خپل غالب ګمان دے عمل وکی. او که غالب ګمان ئے یو جانب ته هم رانغے. دریم دے حساب کی. خو د دے رکعت نه بعد به قعده هم کوی. ممکنه ده چه دا ئے څلورم وی په واقع کښې. بیا به څلورم رکعت وکی. او په آخر کښې به باقاعده سجدهٔ سهو.

**فائده[3]** :- غرض دا دے چه مانځه کښې ئے که شک په بابت د رکعتو نو کښې راغے. نو دا عامه قاعده ده. چه موئږ کونکی نه که دا شک اتفاقاً پریوتے وی. په دغه حالت کښې دے سلام و ګرځوی. یا دے په بله ذریعه موئږ مات کی. او بیا دے د سره وکی. او که اتفاقاً نه وُ. بلکه دا رنګ شک ورته پریوته. نو د خپل غالب ګمان سره مطابق دے عمل وکی. او که غالب ګمان ئے په یو جانب ټیکاؤ و نه خوړ کم دے حساب کی. او کوم ځائے چه په شک کښې د قعدے وی. په هغے کښې دے قعده وکی. او په آخر کښې سجده سهو. لکه چه ذکر شو.

**مسئلهٔ[4]** :- که پس د مانځه د فراغت نه ورته شک پریوت. مثلاً چه ما درے رکعته وکړه او که څلور. نو د دے شک هیڅ اعتبار نشته. موئږ ئے شوے دے. هاں که صحیح ورته یاد شو. چه صرف درے ئے کړی دی. نو که خبرے وغیره دا سے عمل ئے نه وُ

---

[1] شامی ۱۲ [2] درو شامی ۱۲ [3] فتح القدیر ۱۲ [4] فتح القدیر ۱۲

کړے۔ چه په هغے سره مونځ ماتیده۔ نو وس دے پاسی۔ یو رکعت دے بل وکی۔ او په آخر کښې سجده سهو۔

اوکه دَ فاتحه منافی څه عمل ئے کړے وَ۔ نو مونځ دے بیا دَ سره وکی۔ دا رنګ که دَ التحیات لوستلو نه بعد ئے دا شک راغے۔ همدغه حکم دے۔ چه دَ دے شک اعتبار نشته۔ البته که صحیح ورته یاد شو۔ چه درے م کړی۔ نو وس دے یو رکعت بل وکی۔ او په آخر کښې سجدهٔ سهو۔ لیکن که په اول صورت کښې ئے دَ شک راتلو نه بعد مونځ بیا دَ سره راو ګرځاوَ۔ دَ احتیاط په لحاظ سره ډیره غوره ده۔ دا رنګ که په دویم صورت کښې ئے پس دَ سلام ګرځولو نه دغه مانځه بیا اعاده وکړه۔ نو ډیره ښه ده۔ چه شک ئے وُځی۔

**مسئله**:۔ که پس دَ مانځه نه ورته یو عادل سړی اووے مثلاً چه تا څلور رکعته ونکړه۔ بلکه درے دے وکړه۔ نو که دَ دهٔ غالب ګمان وَ۔ چه دے رښتیا وائی۔ یائے شک وَ۔ نو راوُ دے ګرځوی۔ احتیاطاً۔

**مسئله**:۔ که دَ امام اَو مقتدیانو اختلاف راغے۔ مثلاً امام وئیل چه ما پوره څلور رکعته کړی دی۔ او مقتدیانو وئیل چه نه۔ بلکه درے دے کړی دی۔ نو که دَ امام یقین وَ۔ اعاده واجبه نه ده۔ کنی نو دَ مقتدیانو په قول به عمل کوی۔ راګرځوی به ئے۔ اوکه مقتدیان په کور کښې مختلف وو۔ بعض داوئیل۔ او بعض دا۔ او امام دَ یو فریق سره وَ۔ نو قول دَ امام معتبر دے۔

اوکه دَ یو مقتدی یقین وَ دَ څلورو رکعتونو۔ او دَ بل مقتدی یقین وَ دَ درېو۔ او نور مقتدیان په شک کښې وَو سره دَ امامه۔ نو دَ چاچه یقین دَ کم والی دے۔ اعاده صرف په هغه واجب ده۔ اوکه دَ امام یقین وُ دَ کم والی۔ نو اعاده په ټولو واجبه ده۔ لیکن دکوم مقتدی چه یقین وی دَ پوره کیدلو۔ په هغه واجبه نه ده۔ اوکه دَ یو مقتدی یقین وَ۔ چه درے شوی دی۔ او دَ نورو مقتدیانو شک وَ۔ سره دَ امامه۔ نو که وقت باقی دی۔ غوره داده چه راوئے ګرځوی احتیاطاً۔ اوکه چا دوؤ ثقه وَ سړو اووئیل چه امام درے رکعته کړی دی۔ او امام او مقتدیان په شک کښې وَو۔ نو په دے صورت کښې اعاده واجبه ده۔

**مسئله**:۔ که دَ الحمد وئیلو نه پس ئے فکر کاوَ۔ چه کوم سورة ولولم۔ چپ

---

له در مختار ۱۲ له خلاصة الفتاویٰ و فتح القدیر ۱۲ له شرح التنویر ۱۲

ولاړ وُ۔ او په دے سوچ بچار کښې ئے دومره درنګ تیر که چه یو رکن په کښې ادا کیدے شه۔ نو سجده سهو لازمه شوه۔

**مسئله**[1] :- که واجب قرأت ئے نه وُ کړے۔ او رکوع ئے وکړه۔ په رکوع کښې ئے یاد شو یا په قومه کښې۔ نو بیا به ودریږی۔ قرأت به وکی۔ او رکوع به دوباره وکی او سجده سهوه لازمه ده۔ او که رکوع ئے دوباره ونکړه مونځ ئے ونشه۔ او که په رکوع کښې یا قومه کښې ئے یاد شو۔ چه ما خو سورة لوستے وُ۔ لیکن فاتحه مے نه وُ لوستے۔ نو چه بیا را ګرځی۔ فاتحه والی۔ سورة به دوسره هم لولی۔

**مسئله**[2] :- که د مانځه په آخر آخر کښې ئے د سلام ګرځولو نه مخکښې شک واقع شه۔ چه مثلاً ما څلور رکعته کړی دی۔ او که درے۔ فکر ئے کاؤ۔ او چپ ناست وُ۔ او په سلام ګرځولو کښې ئے په قدر د یو رکن تاخیر راوست۔ او بیا ورته معلومه شوه چه ما څلور پوره کړی دی۔ نو په دے صورت کښې هم سجده سهو واجبه ده۔

**مسئله**[3] :- که د قرأت په دوران کښې چپ ودریدلو۔ څه فکر ئے کاؤ۔ او په دے کښې دومره ساعت تیر شه۔ څومره چه بیان شوے دے۔ یا ئے د الحمد او د سورة لوستلو نه پس په هغه سره فکر کاؤ۔ هسے ولاړ وُ۔ او رکوع له په تللو کښې ئے دومره تاخیر راوست۔ یا په قومه کښې هسے چپ چاپ ولاړ وُ۔ څه سوچ ئے کاؤ۔ او دومره درنګ ئے تیر که۔ یا په جلسه کښې یا په قعده کښې د التحیات شروع کولو نه مخکښې ئے دومره وقت هسے په تصوّر کښې وایست۔ یا ئے دویم یا څلورم رکعت ته د پاسیدلو نه مخکښې، پس د دویمے سجدے نه جلسه وکړه۔ نو په دے ټولو صورتو نو کښې سجده سهو واجبه ده۔ غرض دا دے چه په کوم فکر سره مشغوله کیدل تاخیر د یو واجب یا د یو رکن راولی۔ د ځنډ مقام نه په قدر د ادا کولو د یو رکن۔ په هغے سره سجده سهو لازمیږی۔

**فائده**[4] :- اندازه د ادا کولو د یو رکن دا ده۔ چه کم نه کم درے ځله پکښې سبحان الله ویلے کیدے شی۔ یا درے مختصر آیتونه۔ نو دغه مقدار دے۔ لیکن د تفکّر او د تاخیر په مذکوره مسئلو کښې تفصیل او اختلافات شته۔

**مسئله**[5] :- که په درے رکعتی یا څلور رکعتی مونځ کښې ئے په اوله قعده

---

[1] درمختار ورد المحتار ۱۲ [2] طحطاوی ۱۲ [3] شرح التنویر ورد المحتار وشرح المنیه ۱۲ [4] طحطاوی وشامی ۱۲ [5] زیلعی وخلاصة الفتاوی ۱۲

کښې دَ تشهد نه پس دومره قدر درود شریف ولوست اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ - او چې عالمان وائي چه دَ آلِ محمّدٍ پورے - یا دَ دے نه زیات - بیائے یا د شو - دریم رکعت ته پا سید - نو هم سجده سهو لازمه ده - دَ جمع او دَ ماسپخین په اولنو سنتو کښې په قعدهٔ اولی کښې ئې درود شریف او ستلو هم دا حکم دے - او که دَ نفل په قعدهٔ اولی کښې ئې درود شریف ولوست - نو سجده سهو نه لازمیږی - بلکه لو ستے شی دَ لکه چه مخکښې بیان شوی دی -

**مسئله** :- که دَ مانځه په شروع کښې ئې سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ لوستل هیر شو - یا اعوذ بالله بسم الله یائے په رکوع کښې سبحان ربّی العظیم ونوے - یا په سجدهٔ کښې سبحان ربّی الاعلیٰ - یائے مثلاً دَ رکوع سجود تکبیر ونکه - یا ئے دَ رکوع نه دَ سر او چتولو په وقت کښې سمع الله لمن حمده ونوے - یا ئے دَ لاسونو او چتولو په مقام کښې دَ غوږونو پورے لاس او چت نکړه - یائے په آخر کښې درود شریف او اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا ونه لوسته - نو دَ دے ټولو صورتو نو حکم دا دے - چه په دے سره سجده سهو نه واجبیږی : یعنے کوم خبرے چه په مانځه کښې سنت یا مستحب دی - دَ هغے په هیرولو سره سجده سهو نه لازمیږی - که هغه ئې ونکړه هم ئې مونځ کیږی -

**مسئله** :- دکوم شی په هیرولو سره چه سجدهٔ سهو لازمیږی - که هغه ئې قصداً پریښوده - نو سجده سهو واجبه نه ده - بلکه مونځ به بیا کوی - که سجده سهو ئې وکړه هم ئې مونځ نه کیږی -

**مسئله** :- که په مانځه کښې ئې یو څو داسے خبرے اُشو ے چه دَ هغے په وجه سجدهٔ سهو لازمیده - نو با قاعده یوه سجده سهو دَ ټولو دَ طرف نه کافی کیږی -

**مسئله** :- که یو سړی سجده سهو وکړه - او دَ دغه مانځه نه لا نه وُ فارغ شوے - او بل یو داسے کار ترے وشه - چه دَ هغے په سبب سره هم سجدهٔ سهو راتله - نو بیا دوباره سجده سهو کولو ته ضرورت نشته - هغه مخکنئ کافی ده

| دسجده تلاوت بیان | کومؒ عاقل بالغ مسلمان چه آیت دَ سجدے ولولی - یائے دبل چاؒ |
|---|---|

له عالمگیری ۱۲ ٢ه مراقی الفلاح ۱۲ ٣ه عالمگیری ۱۲ ٤ه شرح التنویر ۱۲ ٥ه شرح الوقایه و مجمع الانهر ۱۲

واوری - په دغه بانده د تلاوت سجده لازمیږی - حنفیانو په نزد د سجدے آیتونه په قول قرآن شریف کښې څوارلس[۱] دی - څلور په وړومبی نیمګلسو سپارو کښې - او لس آخری نیمګلسو کښې - د خلقو د آسانئ د پاره اکثر په قرآن شریف کښې د دغې په برابر د ډ ے نه لفظ د سجدے په جلی قلم سره لیک وی -

او د امام شافعیؒ صاحب په نزد هم د سجدے آیتونه څوارلس دی - خو دومره فرق دے - چه په سورة صٓ کښې د دغه په نزد سجده نشته - او حنفیانو په نزد شته او په سورهٔ حجّ کښې د دغه په نزد دوه سجدے دی - او حنفیانو په نزد صرف یوه ده - کومه چه وړمبئ ده - او مونږ وایو چه په ختم سجده کښې سجده د وَهُمْ لَا يَسْأَمُونَ په ختم ده - او دغه وائی چه د اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ په ختمیدو - لیس - او حنفیانو په قول کښې احتیاط دے - ځکه چه د آیت سجدے نه که مینه سجده وکړے شوه نو نه ادا کیږی - او که د دغې نه موخره کړے شوه نو هم اداکیږی -

**مسئله[۲]** :- که یو عجمی آیت د سجدے واوریږی - نو که پته ورته ولګیده چه دا آیت د سجدے دے - سجده پے واجبه شوه - اګرکه دے په معنیٰ نه پوهیږی - او که معلومه ورته نه شوه - او خبر شه نو نه ده واجبه -

**مسئله[۳]** :- که د آیت سجدے ترجمه ئے واوریده - او پوهه شه - یا ورته خبر ورکړے شه - په دے سره هم سجده واجبیږی -

**مسئله** :- په سجده تلاوت کښې تحریمه نشته - خو الله اکبر دے او وائی لاسونه دے نه اوچتوی - او سجدے له دے لاړشی - په سجده کښې دے کم نه کم درے ځله او وائی سبحان ربی الاعلیٰ - بیا دے الله اکبر کی - او د سجدے نه دے راپورته شی - بس سجدهٔ تلاوت ئے اداشوه -

**مسئله[۴]** :- کوم څیزونه چه د مانځهٔ د پاره شرط دی - سوا د تحریمے نه - مثلاً طهارت د بدن او د لباس - قبلے ته مخ کول وغیره - دغه د سجدهٔ تلاوت د پاره هم شرط دی -

**مسئله[۵]** : د سجدهٔ تلاوت د پاره دوه تکبیره سنت دی - یو مخکښې یو ورستو - دارنګ دوه قیامه ورله مستحب دی - یعنے غوره دا ده چه مینه ودریږی بیو ولاړ ے الله اکبر کی - سجدے له لاړشی - بیا چه د سجدے نه پورته کیږی - او الله اکبر

---

[۱] فتح القدیر و شامی ۱۲ [۲] ملتقی و کبیری و خانیه ۱۲ [۳] شرح التنویر ۱۲ [۴] شرح التنویر ۱۲ [۵] درمختار ۱۲

والئ - نو هم دے ودرېږی - او دَدے نه پس که بیاکیناست نو لاړ پره غوره ده۔

**مسئله**[۱] :- تکبیر دے دواړه پیرے په زوره والئ - که منفرد وی - نو چه پټپله واوری - او که امام وُ - نو چه مقتدیان ئے هم واوری۔

**مسئله**[۲] :- که جنب په حالت دُ جنابت کښں آیت دُ سجدے ولوست - یائے واوریدِ نو هم په سجدهٔ تلاوت واجبه ده - بیځے بیا به ئے اداکوی په طهارت سره۔

**مسئله**[۳] :- په نابالغه هلک او په نابالغه جینئ سجدهٔ تلاوت واجبه نه ده

**مسئله**[۴] :- که ښځے په حالت دَ حیض او نفاس کښں آیت دُ سجدے ولوست یائے دُ چانه واوریدِ - نو سجده په نه لازمیږی - هاں که په داسے حالت کښں ئے ولوست - یائے واوریدِ چه غسل په واجب شوے وو - بیا لازمه ده -

**مسئله**[۵] :- که لوستونکے کونړ وُ - آیت دُ سجدے ئے ولوست - خو وانئ ئے ئه ئے ئیدِ هم په سجده لازمه ده -

**مسئله**[۶] :- که چا آیت دُ سجدے واوریدِ دکافر نه یادکونړ نه - یا دُ هوښیا نابالغ نه - یا دُ جنب نه - یا دَ هغه ښځے نه - چه په حالت دَ حیض ونفاس کښں ده - نو په آوریدونکی سجده لازمه ده۔

**مسئله**[۷] :- که څوک اُودهٔ وُ - په خوب کښں ئے آیت دُ سجدے ولوست - او پس دَ ویخیدو نه ورله چا خبر ورکه - نو په لوستونکی باندے سجده واجب ده - او که نه ؟ په دے کښں دوه روایته دی - په یو روایت کښں واجبه ده - او په بل کښں نه - او ځینې عالمانو یو روایت ته صحیح ویلی - ځینے بل ته۔

او دا رنګ بیان دے - په حق دَ هغه چاکښں چه آیت دسجدے ئے آوریدلے وی دَ دغه اُوده نه -

**مسئله**[۸] :- که یوئی آیت دَ سجدے ولوست - نو که یو نتوب ئے دَ یوے ښځے ورځے نه زیات نه وُ - نو په ده هم واجبه ده - او په آوریدونکی هم - او که زیات وُ - نو په ده نه ده واجبه - او په آوریدونکی واجبه ده - خو اختلاف پکښں شته -

**مسئله**[۹] :- که دَ نشے په حالت کښں چا آیت دَ سجدے ولوست - یائے واوریدِ

---

[۱] درمختار ۱۲ [۲] درمختار ۱۲ [۳] درمختار ۱۲ [۴] درمختار وشامی ۱۲ [۵] درمختار وشامی ۱۲ [۶] درمختار وشامی ۱۲ [۷] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ [۸] شرح التنویر ۱۲ [۹] شرح التنویر ۱۲

نو سجده پې لازمه ده - او که ډده نه چا واوریدې - په هغه هم لازمه ده -

مسئله :- که آیت د سجدې یې واورید - صرف د صدا ئې بازگشت نه (یعنې د انګئ نه) یا د مرغئ نه - نو په دې سره سجده نه لازمیږي -

مسئله :- که آیت د سجدې یې صرف په پېزو ولوست - یا ئې واوریدو - نه په ژبه نو سجده لازمه نه ده - دا رنګه که آیت سجدې ته ئې هسې نظر وکړه - او تلفظ ئې پې ونکه - یا ئې ولیکه بې د تلفظ نه - نو په دې سره هم نه لازمیږي -

مسئله :- که سجدې د تلاوت پې پېرې وې - نو په ادا کولو کښې ئې تعین نه ضرورت نشته - چه اولنئ یا آخرنئ - یا د فلانی آیت - نو ټولې دې پوره کی - لېس ادا شوې - او په نیت کښې دې دا اولي - چه ادا کوم سجده د تلاوت - او که دائې ورسره هم اووې چه واجبه شوې ده په ما باندې - په سبب د تلاوت د آیت د سجدې - یا په آوریدو د آیت د سجدې سره - نو غوره ده -

مسئله :- که د مرض په وجه ئې سجده د تلاوت نه شوه ادا کولې - نو څرنګ چه د مانځه سجده په اشارې سره کوي - دا رنګ دې سجده د تلاوت هم په اشاره سره ادا کي -

مسئله :- که په یو ځائې ناست وُ - او یو آیت د سجدې ئې څو څو واره ولوست نو یوه سجده واجبه ده - اختیارئې خپل دې - که سجده اول وار لوستلو پسې کوي - او که په آخر کښې - او که آیت د سجدې ئې یو ځائې ولوست - بیائې ځائې بدل که - او دوبارہ ئې هغه آیت ولوست - او بیائې ځائې بدل که - او په دریم وار ئې هغه آیت ولوست - یعنې په مختلفو ځایونو کښې ئې بار بار ولوست - نو څومره ځایه چه ئې لوستې دې - دومره سجدې پې واجب دي - غرض دا دې چه دیو آیت سجدې په لوستو کښې اعتبار مجلس له دې - که مجلس یو وُ - نو یوه - او که ډیر وو - نو دهغې هومره پې واجب دي -

مسئله :- که په یو مقام کښې ئې جدا جدا آیتونه د سجدې ولوستل - نو څومره آیتونه د سجدې چه ئې لوستې دي - د هغې هومره سجدې پې لازم شوې -

مسئله :- که یو ځائې ناست وُ - آیت د سجدې ئې ولوست - بیا ودرید - خو

---

له درمختار ۱۲ ۲ه کبیری ۱۲ ۳ه درمختار وشامی ۱۲ ۴ه عالمګیری ۱۲ ۵ه شرح التنویر ۱۲
۶ه درمختار وشامی ۱۲ ۷ه شرح البدایه ۱۲

تله را تله وغیره ئې ونکړه ۔ بلکه په هغه ځائې ئې بیا هغه آیت دسجدې ولوست نو سجده په یوه واجبه ده ۔ ځکه چه مجلس نه دې بدل شوې ۔

**مسئله**:۔ که په یو ځائې کښې ئې آیت دَ سجدې ولوست او سجده ئې وکړه ۔ بیا چرته لاړ ۔ بیا هغه مخکنی ځائې له راغې ۔ او هغه آیت ئې دوباره ولوست ۔ نو ورته په بله سجده واجبه شوه ۔ ځکه چه مجلس بدل شوې دې ۔ نو که اول ئې سجده نه وی کړې ۔ وس به دوه کوی ۔

**مسئله**:۔ که په یو مقام کښې ئې آیت دَ سجدې ولوست ۔ بیا په دغه ځائې ناست وُ ۔ او په څه بل کار کښې مشغول شه مثلاً ډوډئې ئې اوخوړه ۔ ځان ئې موړ که ۔ یا په ملاستې اوده شه ۔ یا ئې څه خرید فروخت وکه ۔ یا شځه وه ۔ بچی له ئې تې ورکه ۔ اولیس دَ دې عمل نه ئې بیا هغه آیت دَ سجدې ولوست ۔ نو ګویا مجلس ئې بدل شوې دې ۔ پس سجدې په دوه واجبې دی ۔ که مینه ئې سجده کړې وی ۔ وس به یوه کوی ۔ کنې نو دوه ۔ او که دد واړو تلاوتونو په مینځ کښې ئې نور څه عمل نه وُ کړې ۔ خو قرآن شریف ئې لوسته ۔ یا تسبیح وغیره یا ئې یوه نوړئې قدرې خوړلې وه یا په ناستې اوده شوې وُ ۔ یا ئې بل داسې معمولی عمل کړې وُ ۔ چه دَ هغې په وجه مجلس نه بدلیده ۔ نو سجده په یوه واجبه ده ۔

**مسئله**:۔ که په کشتئې کښې سور وُ ۔ او کشتئې روانه وه ۔ او یو آیت دَ سجدې ئې په کښې څو څو واره ولوست ۔ نو سجده په یوه واجبه ده ۔ دَ کشتئې په رفتار سره دده مکان نه بدلیږی ۔ هاں که لوستونکی دَ دوؤ لوستو په مینځ کښې څه غیر معمولی عمل وکه نو بیا بله خبره ده ۔

**مسئله**:۔ که دَ لوستونکی ځائې نه وُ بدل شوې ۔ هغه په یو ځائې ناست وُ او یو آیت دَ سجدې ئې څو څو ځله مکرر که ۔ لیکن دَ آوریدونکی ځائې بدل شوې وُ چه مینه ئې تې یو ځائې آوریدلې وُ ۔ بیا بل ځائې ۔ نو په لوستونکی یوه سجده ده او آوریدونکی چه څو مره ځایه آوریدلې دې ۔ دومره په واجب دې ۔

**فائده**:۔ په مذکوره مسئله کښې دَ یو ځائې نه مراد خاص هغه ځائې نه دې کوم ځائې چه هغه ناست دې ۔ بلکه مراد تې هغه ټوله حصه ده ۔ نو جمات ټول په حکم دَ یو ځائې کښې دې ۔ پس که دَ جمات په یو کوټ کښې ئې آیت دَ

---

۱ شرح البدایه ۱۲ ۲ شامی ۱۲ ۳ درمختار و ردالمحتار ۱۲ ۴ عالمګیری ۱۲ ۵ شامی ۱۲

سجدے ولوست - بیائے پہ بل کوټ کښې هغه آیت ولوست - اودَ دواړو لوستو په منځکښې ئے څه مجلس بدلونکے عمل نه وُکړے - نو سجده پې یوه واجبه ده - او دا رنګ حکم دے دَ وړوکی کور - هاں که کور ډیر لوئ وُ - نو که په یو کوټ کښې ئے ولوست - بیائے په بل کوټ کښې مکرّر که - نو دوه سجدے پې لازم دی -

**مسئله** [1] :- څوک چه آیت دَ سجدے ولولی - په هغه هم سجده لازمیږی او څوک چه ئے واوری - په هغه هم - برابره خبره ده چه قصداً ئے آوریدلے وی اوکه بے دَارادے نه - له دے وجے نه لوستونکی له غوره داده چه آیت دَ سجدے په پټه لولی - دپاره دَدے چه لازمه نه شی په بل باندے -

**مسئله** [2] :- دَ سجدے نه دَ بچ کیدلو دَ پاره آیت دَ سجدے پریخودل او باقی لوستل مکروه دی - منعه دی - ځکه چه دادَ سجدے کولو نه یو قسم انکار دے - او که صرف آیت دَ سجدے لولی - باقی نه لولی - نو په دے کښې څه بدی نشته - خو غوره دا ده - چه دَدغه آیت نه مخکښې یا وروستنی یو آیت یا دوه آیتونه ورسره هم ولولی - او په مانځه کښې به صرف آیت دَ سجدے هله کافی کیږی چه هغه وی دَ دریو کوتاه آیتونو همره یعنې څومره چه واجب دے -

**مسئله** [3] :- په کومو مونځونو کښې چه قرائت په پټه کیږی - په هغے کښې امام له آیت سجده تلاوت کول مکروه دی - دپاره دَدے چه مقتدیان واقع نه شی په اشتباه کښې - دارنګ دَ جمعے او دَ اختر په مانځه کښې آیت سجده تلاوت کول هم مکروه دی -

**مسئله** [4] :- که سجده تلاوت اداکول پے واجب شوی وُ - دَ مانځه نه باهر لیکن په سبب دَ بے اودسئے یا په څه بله وجه ئے فوراً ادا نکړے شوه - نو بیائے په هر مناسب وقت کښې چه اداکی - ادابه شی - قضا به نه وی - خو فوراً اداکول ئے ښه دی - ځکه چه دَ هیرولو خطره ئے ده - اوکه چا فوراً سجده ونکړے شوه - نو هغه له مستحب دی چه وس همره دا آیت ولولی - سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَ اِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ؕ

**مسئله** [5] :- که په مانځه کښې ئے آیت دَ سجدے ولوست - نو دَ دغه آیت په ختمیدو دے سجدهٔ تلاوت وکی - بیا دے دا پاسی - نور دے ولولی - او رکوع

[1] شرح البدایه ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] بحر رائق ۱۲ [4] عالمگیری و شامی ۱۲ [5] در مختار و شامی ۱۲

له دے لاړشی۔

اوکه سورة ختم شوے وُ۔ نو سجدهٔ تلاوت نه چه داپاسی۔ دَ بل سورة یو آیت دوه دے ولولی۔ پس رکوع ته دے لاړشی۔ اوکه دَ آیت سجده په ختمیدو وئے سجده ونکړه۔ بلکه دَ هغے نه بعد ئے یو یا دوه آیتونه نور ولوستل او هله ئے سجدهٔ وکړه نو دا هم جائز دی

اوکه پس دَ آیت دَ سجدے نه ئے درے آیته نور ولوستل۔ هله ئے سجدهٔ دَ تلاوت وکړه۔ نو ځینے عالمان وائی چه په دے کښ هم بدی نشته۔ اوکه دَ دے نه ئے هم زیات ولوستل۔ دُستوئے سجده وکړه۔ نو دا خو شوه۔ لیکن گنهگار شه۔

**مسئله** :۔ که په مانځه کښ ئے آیت دَ سجدے ولوست۔ او فوراً رکوع له لاړ۔ او رکوع له دَ تلو په وقت کښ ئے دانیت وکه۔ چه څه دا رکوع دَ سجدهٔ تلاوت په ځائے هم اداکوم۔ نو سجده دَ تلاوت ئے په دے رکوع سره اداکیږی۔ اوکه دانیت ئے ونکه۔ نو دَ دے فوری رکوع نه پس چه به دَ مانځهٔ سجده کوی۔ دَ هغے په ضمن کښ به سجده دَ تلاوت هم اداشی۔ برابره خبره ده چه نیت ئے کړے وی۔ اوکه نه۔ او فوراً رکوع له دَ تلو نه مراد دا دے چه دَ آیت سجدے په ختمیدو سره سمدستی رکوع له تلے وی۔ یائے دَ آیت سجدے نه پس یو آیت دوه نور لوستی وی۔ هله رکوع له تلے وی۔

اوکه پس دَ ختمیدو دَ آیت سجدے نه ئے درے آیته ولوستل هله ئے رکوع وکړه نو دا رکوع هم فوراً ده۔ اوکه نه۔ په دے کښ اختلاف دے۔

**مسئله** :۔ که آیت دَ سجدے ئے په مانځه کښ ولوست۔ لیکن سجده دَ تلاوت ئے په خپل مقام کښ ونکړه۔ اونه فوراً رکوع له تلے وُ۔ نو په دغه مانځه کښ په هر مقام کښ چه وی۔ سجده دَ تلاوت به اداکوی۔ او سجده سهو به هم شته۔ اوکه سجده دَ تلاوت ئے قصداً پریخوده۔ په یو مقام کښ ئے هم ونکړه۔ او مونځ ئے ختم که۔ نو وس که ئے دَ دغه مانځه نه پس اداکوی۔ نه اداکیږی۔ بلکه گنهگار شه۔ بے دَ توبے او دَ استغفار نه ئے دَ معافئے بل څه صورت نشته۔

**مسئله** :۔ که چا مونځ کاوُ۔ او په مانځه کښ ئے آیت دَ سجدے واوریدُ

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] خلاصة الفتاوی وشامی ۱۲ [3] شرح التنویر ۱۲

دَبل هغه چانه چه هغه په مانځه کښې نه وُ - یا وُ په مانځه کښې خو هغه دَده امام نه وُ - نو دے به سجدهٔ دَ تلاوت په مانځه کښې نه کوی - بلکه وروستو به کوی - او که په مانځه کښې ئے وکړه - نو ادا نه شوه او گنهگار شه -

**مسئله** :- که آیت دَ سجدے ئے په مانځه کښې ولوست - او سجده دَ تلاوت ئے په مانځه کښې ادا کړه - بیائے مونځ فاسد شه - نو سجده دَ تلاوت پے نشته - او که سجده دَ تلاوت ئے په مانځه کښې لا نه وه کړے - چه مونځ ئے فاسد شه - نو دَ مانځه نه بهر به ئے ادا کوی - هاں که ښځه وه - او مونځ ئے فاسد شه په سبب دحیض سره نو سجده دَ تلاوت پے نشته -

**مسئله** :- که یو ځائے ئے آیت دَ سجدے ولوسته - او سجده ئے وکړه - بیا دغه ځائے په مانځه ودریں - او هغه آیت ئے په مانځه کښې هم ولوسته - نو اوس به په مانځه کښې سجده دَ تلاوت ادا کی - او که مینځ ئے سجده دَ تلاوت نه وه کړے - نو دا سجده ئے کافی ده - په دے سره به دواړه ادا شی - لیکن که مجلس بدل شوے وُ - نو دا یوه نه کافی کیږی - بلکه به دَ مانځه نه بهر بیا کوی -

**مسئله** :- که په مانځه کښې ئے یو آیت دَ سجدے څو څو پیرے ولوسته نو هم یوه سجده واجبه ده - برابره خبره ده چه په یو رکعت کښې ئے مکرر کړے وی او که په جدا جدا رکعتونو کښې - نو خو ښه ئے خپله ده - که په اوله پیره سجده کوی او که په اخیری پیره -

**مسئله** :- که مقتدی په مانځه کښې تلاوت دَ آیت سجدے وکه - نو سجدهٔ پے لا زمه نه ده - نه په مانځه کښې نه بهر - دارنګ که دَده نه دَده امام واوریده یا دده سره چه څوک په دغه مانځه کښې شریک وُ - هغه ئے واوریده - نو به دوئ هم واجبه نه ده -

**مسئله** :- که سړی دَ امام نه آیت دسجدے واوریدے - بیائے ورپسے نیت وتاړه - په داسے حال کښې چه امام لا سجدهٔ دَ تلاوت نه وه کړے - نو دهغه سره به سجده کوی -

او که امام سجده دَ تلاوت وکړه - دَدے نه بعد ورپسے ده نیت وتاړه - او هم په دغه رکعت کښې شریک شه - نو په ده سجده دَ تلاوت نشته - نه

---

له درمختار و شامی ۱۲ ۲ه شرح التنویر و ردالمحتار ۱۲ ۳ه فتاوی عالمگیری ۱۲ ۴ه درمختار و شامی ۱۲ ۵ه خو مقتدی ئے په امام پسے قرائت منع دے ۱۲ ۶ه شرح التنویر ۱۲

په مانځه کښې نه بهر۔ او که ده ورپسې اقتدا بالکل ونکړه۔ نو سجده پې واجبه ده۔ او که اقتداءئې وکړه۔ خو په بل رکعت کښې۔ نو هم پې سجده واجبه ده۔ پس د مانځه د فراغت نه بهءئې اداکوی۔

**مسئله:**۔ که دوؤ تنو مونځ کاؤ۔ او هریو په خپل مانځه کښې آیت د سجدې ولوست۔ او هریوُ د هغه بل تلاوت واوریدا۔ نو په هریو باندې دوه سجدې د تلاوت واجب شوې۔ یوه به په مانځه کښې اداکوی۔ دوېم د خپل تلاوت شان بله د مانځه نه بهر د وجې د آوریدو نه۔

**فائده:**۔ که چا په یو مجلس کښې ټول آیتونه د سجدې مسلسل ولوستل۔ او په آخر کښې ئې څوارلس واړه سجدې وکړې۔ بیائې د یو جائز مطلب د پاره دعا وکړه۔ نو غالب امید دې چه دا دُعا به ئې منه قبوله شی۔ او بعضې وائی چه هره سجده د خپل آیت په ختمیدو پکار ده۔ بهرحال مینه دې په اخلاص سره توبه اوباسی۔ او بیا دې دا عمل او دعا په ډیره عاجزئ او حضور قلبی سره وکی۔

**فائده:**۔ که څه خاص نعمت سړی ته حاصل شه۔ مثلاً ځوئې ئې وشه۔ یا د تکلیفه خلاص شه۔ یا ورته څه مال حاصل شه۔ نو د دې په شکریه کښې سجده مستحبه ده۔ دې ته سجدهٔ شکر وایې شی۔ سجدهٔ شکر مستحبه ده۔ او دا د صاحبینو قول دې۔ او امام صاحبؒ وائی۔ چه کوم ځائې ئې په حدیث شریف کښې ثبوت راغلې دې۔ د هغې نه مراد نفل مونځ دې۔ او معتمده خبره دا ده۔ چه امام صاحبؒ ئې د جواز نه منکر نه دې۔ خو وائی چه وجوب او سنتیّت ئې نشته۔ ځکه چه نعمتونه بې انتهادی۔

**فائده:**۔ بعضو خلقو چه یوه بله سجده ایجاد کړې ده۔ د مانځه نه پس ئې کوی۔ د هغې ثبوت نشته۔ نو منعه ده۔ ځکه چه عوام ئې بیا ضروری گنړی۔

په حالت د ناجوړتیا کښې د مونځ کولو بیان

**مسئله:**۔ که په ولاړې ئې د مونځ کولو طاقت نه وی۔ نو په ناسته دې وکی۔ سره د رکوع وسجود۔ او که دومره ناجوړه وُ۔ چه رکوع او سجدهٔ ئې هم نه شوه کولې۔ نو که کیناستې شه۔ په ناسته دې په اشاره سره اداکی۔ او که نه شه کیناستې نو په ملاستې دې وکی۔ په اشارې سره۔

---

ؔ ردالمختار ۱۲ ؔ درمختار و شامی ۱۲ ؔ در مختار ۱۲

**مسئله** :- که لږ ودریدے شه - خو د پوره قرأت په مقدار ئے قیام نه شه کولے - نو په ولاړے به تکبیر تحریمه وکی - او څومره قرأت چه په ولاړے کولے شی - اوبه کی - او د باقی د پاره به کینی - په ناستے به ئے پوره کی -

دارنګ که څوک په خپله نه شه ودریدے - او د دیوال یا د همسا وغیره په زور ودریدے شه - نو په هغے به تکیه کوی - او دریږی به -

**مسئله** :- که قوت ئے د ودریدو وی - خو په ولاړے پے درد رانه - یا پے سرګرځیده یا ئے د مرض زیاتید ویره وه - هم په ناستے کولے شی -

**مسئله** :- د سجدے د پاره دے مخے ته څه شے نه راوچتوی - که طاقت ئے د سجدے کولو نه وُ - نو په اشاره دے وکی - بس - البته که څه اوچت شے په زمکه پروت وُ - او د ضرورت په وجه ئے په هغے سجده کوله - نو کیږی -

**مسئله** :- که رکوع او سجده ئے نه شوه کولے - او ودریدے شه - نو خوښه ئے خپله ده - که په ناستے کوی - او رکوع او سجده ادا کوی - په اشارے سره - او که په ولاړے کوی - او رکوع وسجود ادا کوی په اشارے سره - دواړه طریقے جائز دی - خو غوره طریقه اوله ده -

**مسئله** :- که په خپله ئے د ناستے طاقت نه وُ - نو سړی نه دے تکیه او هم یا غټ بالخ نه - یا بل داسے شی ته - او په دے طریقه دے پریوځی - چه سینه او سر ئے وی اوچت - او خپے ئے غزولے وی قبلے ته - لیکن که څه طاقت ئے وُ - نو خپے دے قبلے ته غزوی نه - بلکه دواړه زنګنونه دے ودروی - او مونځ دے اداکی د سر په اشارے سره - او د سجدے د پاره دے اشاره کوی - کوزه د رکوع نه - او که څه شی نه ئے داسے تکیه هم نه شوه کولے - نو د غه شان دے ستونی ستغ څملی - او خپے دی کی قبلے ته - لیکن د لاندے بالخ وغیره څه شے پکار دے - چه مخ ئے قبلے ته شی آسمان ته نه وی - بیا دے مونځ اداکی په اشارے سره - د رکوع د پاره دے اشاره کمه کوی - او د سجدے د پاره د هغے نه زیاته - او که په ښی اړخ یا په ګڅ اړخ څملی او مخ ئے وی قبلے ته - او مونځ اداکوی د سر په اشاره نو هم جائزه ده - خو ستونی ستغ غوره دی - او د ګڅ اړخ نه ښے اړخ غوره دے - او که مجبوری وه - نو هر طرف ته کیدے شی - و دے کی - پریدی دے نه -

---

ڵ درمختار وشامی ۱۲ ۳ شرح التنویر ۱۲ ۳ شرح الہدایہ ودرمختار ۱۲ ۳ منیہ وعالمگیری ۱۲
۵ هندیه وشرح التنویر ۱۲

**مسئله** :- مثلاً دستر کے اپریشن ئے کړے دے۔ او ډاکټرورته ويلی دی۔ چه حوزه را خوزه مه۔ نو مونځ دے به ملاستے کوی۔

**مسئله** :- که مريض د سر په اشارے سره د مونځ ادا کولو طاقت هم نه لری۔ نو مونځ ادا کول په نشته۔ د سترګو او د ورځو اشاره نه ده معتبره۔ پس که دا بے طاقتي ئے صرف د يوے شپے ورځے پورے وه۔ يا د دے نه کمه۔ او بيا ئے د سر په اشاره سره د مونځ کولو طاقت او مونده۔ نو هغه قضا مونځونه به کوی۔ کنی نو د هغے قضا په هم نشته۔ ليکن ځينے عالمان وائی چه قضا په دے صورت کښ هم شته۔ خوهله که د دے بے طاقتئے په زمانه کښ ئے عقل په ځائے وُ۔ او ورستو ئے طاقت موندلے وُ۔

**مسئله** :- که څوک بے هوشه شه۔ او بے هوشی ئے د يوے شپے ورځے نه داوږده نو د بے هوشئ د زمانے هغه مونځونه په قضا نشته۔ او که بے هوشی ئے د دے نه کمه وه۔ نو قضا په واجبه ده۔

**مسئله** :- که روغ جوړ وُ۔ مونځ ئے په ولاړے شروع کړے وُ۔ ليکن په مانځه کښ په داسے مرض يا درد راغے۔ چه په ولاړے ئے مونځ نه شه پوره کولے۔ نو په ناستے دے پوره کی۔ که طاقت ئے د رکوع سجدے کولو وی۔ کوی دے۔ کنی نو اشاره ورله کافی ده۔ او که په ناستے ئے هم نه شی پوره کولے۔ په ملاستے دے پوره کی۔

**مسئله** :- که د څه مرض په وجه ئے مونځ په ناستے شروع کړے وُ۔ رکوع سجده ئے کوله۔ ليکن بيائے په مانځه کښ هغه مرض زائل شه۔ نو اوس دے باقی مونځ په ولاړے پوره کی۔

**مسئله** :- که د څه مرض په وجه ئے مونځ په اشاره کاوُ۔ بيا په دغه مانځه کښ جوړ شه۔ يعنے باقاعده په ولاړے يا په ناستے ئے مونځ کولے شه۔ سره د رکوع او د سجود۔ نو اوس به دغه مونځ باقاعده د سره کوی۔ ليکن که مونځ ئے په ولاړے يا په ناستے شروع کړے وُ۔ خو د رکوع او سجود د پاره ئے لا اشاره نه وه کړے۔ د دے نه مينه تکړه شه۔ نو اوس باقی مونځ باقاعده په رکوع او سجود سره پوره کولے شی۔

**مسئله** :- که نفل کونکے د قرأت د اوږدوالی په وجه ستړے شه۔ او مثلاً

---

له شرح التنوير ۱۲ ـ منيه و عالمگيری ۱۲ ـ مراقی الفلاح ۱۲ ـ عالمگيری ۱۲ ـ درمختار و شامی ۱۲ ـ عالمگيری درمختار ۱۲ ـ شرح التنوير ۱۲ عه يعنے مذکوره بے طاقتی د مذکوره ميعاد نه زياته وه ۱۲ - منه۔

دیوال یا ونے وغیره ته ئے پړه وهله نو خیر دے۔ او بے د عذره مکروه دی۔

مسئله[1] :۔ که سړے داسے ناجوړه شه۔ چه اودس ئے نه شه کولے۔ او اوبه ورله نقصان په وے۔ او نه د دے غریب ښځه وه۔ نه شرعی وینځه۔ خو ځوئ ئے ؤ۔ یا ورور نو استنجا پے نشته۔ ځوئ یا ورور به ده له چار اندام وکی۔ دے به مونځ اداکی۔ دا رنګ که ښځه داسے ناجوړه شوه۔ او د هغې خاوند نه ؤ۔ لورئے وه یا خور۔ نو د دے نه هم استنجا ساقطه ده۔ خو هغه دے ورله چار اندام وکی۔ دا به مونځ اداکی۔

په سفر کښ د قصر کولو بیان

مسئله[2] :۔ که څوک کم نه کم د درے منزله سفر په اراده روان شه۔ نو هغه د شریعت په لحاظ سره مسافر شه۔ کوم وخت چه د خپل ښار یا د کلی د آبادئ نه وځی۔ قصر به کوی۔ او د کومے پورے چه په دغه آبادئ کښ دننه روان وی۔ قصر به نه کوی۔

اوکه څوک صرف د یو منزل یا د دوه منزله سفر په نیت روان شه۔ هغه د شریعت په لحاظ سره مسافر نه دے۔ قصر به نه کوی۔

مسئله[3] :۔ د درے منزله نه مراد دا دے۔ چه اکثر پیاده تلونکی دغه مقصودی ځائے ته په درے ورځو کښ رسی۔ لیکن د سحر نه د ماښامه پورے مسلسل تګ نه دے مراد۔ بلکه د ورځو په اکثره حصه کښ چه درمیانه رفتار کوی۔ او خپل ضروری حوائج ورسره هم پوره کوی۔ لکه خوړل۔ سکل۔ مونځ۔ اودس۔ او دمه کول وغیره وغیره۔ کومه طریقه چه معتاده ده۔ اعتبار د هغې لره دے۔

صحیح[4] قول دا دے چه د دریو ورځو منکوره اندازه معتبر دے۔ او خاص میلونه نه ده متعین۔ ځکه چه د هوارے او د غرونو او د برّی او بحری سفر په لحاظ سره فرق پریوزی۔ او د آسانئ په خاطر بعضو درے شپیته شرعی میله خودلی۔ او بعضو څلور پنځوس۔ او بعضو پنځه څلویښت۔ بیا ځینو عالمانو په دویم قول فتوی ورکړے۔ او ځینو په دریم۔ او د شرعی میل اندازه په باب د تیمم کښ بیان شوے ده۔

مسئله[5] :۔ د مسافرت د پاره چه درے منزله لار بکار ده۔ نو دا د یو جانب نه ده۔ او د تلو راتلو مجموعه نه ده مراد۔

---

[1] عالمگیری ۱۲ [2] درمختار و شامی ۱۲ [3] ردالمحتار ۱۲ [4] هدایه و شرح التنویر و شامی ۱۲ [5] شامی ۱۲

**مسئلہ** :- کہ څوک د درے منزلہ سفر په اراده روان شه - او خدا نخواسته سفرئے کا و د گناه - مثلاً غلا له روان وو - نو دے هم مسافر دے - د قصر وغیره احکام به په ده هم جاری کیږی - پا تے شه گناه - نو هغه ځان له خبره ده -

**مسئلہ** :- که یو ځائے دو مره لرے وُ - چه د سړی او د اوښ د رفتار په لحاظ سره ورته کم نه کم د درے ورځو لاره وه - لیکن سړے په آس سور لاړ - یا په موټر کښ یا په گاډی کښ یا په جهاز وغیره کښ - لوزر ورسید - نو هم به په شریعت کښ مسافر گڼړلے شی -

**مسئلہ** :- که یو ځائے ته دوه لارے وے - یوه اُوږده وه - کم نه کم د دریو ورځو - اوبله د دے نه کوتاه وه - کمه وه د دریو ورځو نه - نو په کومه لار چه دے حئ - اعتبار هغے لره دے -

**مسئلہ** :- څوک چه د شریعت په لحاظ سره مسافر وی - هغه دے د ماسپخین او د ماز یگر او د ماسختن فرض دوه دوه رکعته کوی - او دے ته قصر وئیلے شی - او د سحر او د ماښام او د وتر په مونځ کښ به څه تبدیلی نه راولی څرنګ چه به ئے مینه کول - وس به هم هغه شان کوی -

دارنګ سنت به هم په سفر کښ پوره پوره کوی - څه کے پکښ نشته - البته که جلدی وه - نو سنت پر یخودے شی - لیکن ځینے عالمان وائی چه د سحر سنت دے نه پریدی -

**مسئلہ** :- په سفر کښ د ماسپخین او د ماز یگر او د ماسختن فرض مونځ د دوه دوه رکعته نه زیات کول یعنے پوره څلور څلور رکعته کول گناه دے - ځکه چه دا آسانی د خدائے پاک مهربانی ده - نو قصر نه کول د هغه د مهربانئ قبلولو نه یو قسم ځ کرځول دی -

**مسئلہ** :- که په سفر کښ ئے د ماسپخین فرض قصداً څلور رکعته وکړه نو که په دوه رکعته ئے تعده کړے وی - دوه رکعته ئے فرض شو - او آخری دوه ئے نفل - لیکن بد ئے وکړه گناه دے - او که قعدائے نه وی کړے - څلور واړه رکعته ئے نفل شو - فرض به دوه رکعته بیا کوی -

**مسئلہ** :- که په سفر کښ د چا نه مونځونه قضا شوی وُ - او بیائے په حالت

---

ے شرح التنویر ۱۲ ے عالمگیری ۱۲ ے درمختار و شامی ۱۲ ے بحرالرائق و شامی ۱۲ ے عالمگیری ۱۲
ے شرح التنویر ۱۲ ے شرح البدایه ۱۲

دَ اقامت کښې قضا را کړځول - نو څلور رکعتي فرض به دوه دوه رکعته قضا راوړي - او که مونځونه ئې په حضر[1] کښې قضا شوی وُ - او هغه ئې په سفر کښې قضا را کړځول - نو بیا کوم مونځونه به پوره څلور څلور رکعته قضا راوړي۔

**مسئله[2]** :- په قصر کولو او نه کولو کښې اعتبار آخري وقت لره دے - نو که دماسپخین مونځ ئې څلور رکعته ادا که - بیا دَ ماسپخین په آخر وقت کښې په نیت دَ سفر روان شه - او دَ ماز یګر مونځ ئې په حالت دَ سفر کښې ادا که په اول وقت کښې - بیا دَ څه حاجت په وجه راوګرځید - دَ ماز یګر په آخري وقت کښې کورته راغے - او معلومه شوه - چه دغه دواړه مونځونه ئې بے اودسه کړي وُ - نو وس چه به دَ ماسپخین مونځ قضا راوړي - دوه رکعته به کوي - ځکه چه په هغه آخري وقت کښې دے مسافر وُ - او ماز یګر به څلور رکعته کوي - ځکه چه دَ ماز یګر په آخري وقت کښې دے مقیم دے۔

**مسئله[3]** :- که څوک دَ خپل ځائے نه دَ درے منزله سفر په اراده روان شه او دَ دغه ځائے دَ آبادئ نه اووت - نو وس به دے قصر کوي - تر هغې پورے چه بیا بیا ورسي - دغه آبادئ ته - یا نیت دَ پنځلسو ورځو دَ اقامت وکی - په یو داسے ځائے کښې چه هغه قابل وي دَ اقامت - لکه ښار یا کلے وغیره -

**مسئله[4]** :- کشتیبان او جهازران وغیره چه دَ دریو ورځو مسافت په اراده سفر کوي - هغه هم شرعاً مسافر دے - قصر به کوي - او دغه کشتئ وغیره ئې وطن نه دے۔

**مسئله[5]** :- ځینې بادیه نشین خلق په ځنګل کښې وسي - او دَ اوبو او دَ څراګاه په تلاش کښې سفر کوي نو چه داسے ځائے او موي - ځیے اوړي یرے و لګوي - دَ داسے کسانو نیت دَ اقامت په دغه ځنګل کښې صحیح دے - چه کم نه کم دَ ځیے میاشتے دَ اقامت نیت ئې کړے وي - قصر به نه کوي۔

او دَ ځینې عالمانو قول دا دے - چه دَ داسے کسانو دَ پاره نیت دَ اقامت نه ضرورت نشته - بلکه ځنګل دَ دی په حق کښې داسے دے لکه کلے او ښار - لو قصر ورله نشته۔

**مسئله[6]** :- که څوک دَ درے منزله سفر په اراده دَ خپل ځایه اووت - لیکن لا درے منزله نه وُ تلے - چه اراده ئې بدله شوه - او را وګرځید - نو وس به دے

---

[1] حضر دسفر مقابل ته ویلے شي ۱۲ [2] منیه [3] در مختار و شامی ۱۲ [4] شرح التنویر ۱۲ [5] بحر رایق ۱۲
[6] شامی ۱۲ [7] در مختار شامی ۱۲

تقصر نه کوی۔ بلکه مونځ به پوره کوی۔ دارنګ که درے منزله سفر ئے لا نه وُ پوره کړے او کور ئے څه شے هیر شوے وُ۔ د هغے دا خستلو د پاره واپس راروان شه۔ نو په واپسئ کښ به قصر نه کوی۔

**مسئله**[1]:۔ که مسافر په لار کښې یو ښار یا کلی کښ چرته حصار شه۔ نو که نیت ئے د پنځلسو شپو ورځو نه د کم حصاریدلو وُ۔ دے نو اوسه پورے مسافر دے قصر به کوی او که نیت ئے د پنځلسو شپو ورځو د اقامت وُ۔ یا زیات۔ نو وس دے مسافر نه دے۔ مونځ به پوره پوره کوی۔ بیا که ئے نیت بدل شه۔ او د پنځلسو شپو ورځو نه مینه ئے د تلو اراده وکړه۔ هم به قصر نه کوی۔ البته کوم وخت چه روان شی۔ نو کوم ځائے له چه تلل غواړی۔ که هغه د دے ځائے نه درے منزله لرے وُ۔ قصر به کوی۔ کنی نو نه۔

**مسئله**[2]:۔ که څوک کم نه کم د درے منزله سفر په اراده د کوره اووت او اراده ئے هم وه۔ چه په لار کښ په فلانی کلی کښ به پنځلس شپے ورځے هم حصاریګم۔ او دغه فلانے کلے د ده د کلی نه د دریو منزلو په مسافت نه وُ۔ بلکه کم وُ۔ نو دے به قصر نه کوی۔ نه په لار کښ۔ نه په دغه فلانی کلی کښ۔ او کوم وخت چه بیا د دغه فلانی کلی نه روان شی۔ نو که د ده او کوم ځائے له چه تلل غواړی د هغه ځائے په مینځ کښ کم نه کم د دریو ورځو مسافت وی۔ اوس مسافر شه قصر به کوی۔ که نه ئے۔ نو نه۔

**مسئله**[3]:۔ که مسافر په لار کښ یا په منزل مقصود کښ د پنځلسو شپو ورځو د اقامت نیت خو نه وُ کړے۔ لیکن حصار شه۔ اراده ئے وه چه نن ځم۔ صبا ځم۔ او په دے نن صبا کښ ئے میاشتے تیرے شوے۔ هم به قصر کوی۔ مسافر دے۔

**مسئله**[4]:۔ که مسافر درے منزله لاهړو۔ او دغه ځائے ئے خپل وطن اصلی وُ۔ نو اوس مسافر نه دے۔ برابره خبره ده چه دغه ځائے لږ ورځے حصاریږی۔ او که ډیرے۔ او که دغه ځائے ئے د اصلی نه وُ۔ لیکن د نیمے میاشتے د استوګنے نیت ئے وکه۔ نو اوس هم مسافر نه دے۔ مونځ به پوره پوره کوی۔ د ځائے ئے وطن اقامت شه

---

۱؎ شرح البدایه ۱۲ ۲؎ رسائل الارکان ۱۲ ۳؎ شرح التنویر ۱۲ ۴؎ شامی ۱۲

**مسئله**[۱] :- که چا خپل کلے یا ښار بالکل پریخود سره دَ اهل وعیال وغیره - او بل ځائے ئے استوګنه اختیار کړه - نو س که په دوران دُ سفر کښ ورله دغه مینے ځائے مخے ته ورشی - او دے هلته دَ نیمے میاشتے نه کم دُ سیدل غواړی - قصر به کوی - ځکه چه دغه ځائے وس دَده په حق کښ اجنبی دے - هاں که کورئے دواړه ځایه وُ - لکه یوه ښځه ئے په یو کلی کښ دُ سوله - او بله په بل کلی کښ - نو دغه دواړه ځایونه دده په په حق کښ وطن اصلی دے - قصر به په کښ نه کوی -

**مسئله**[۲] :- که په لار کښ ئے څو څو ځایه دَ حصاریدو اراده وه - مثلاً یوه جُمعه دلته - لس ورځے هلته - دولس ورځے بل ځائے - لیکن دَ پوره نیمے میاشتے دَ حصاریدو نیت ئے یو ځائے هم نه وُ - نو هم مسافر دے قصر به کوی -

**مسئله**[۳] :- که قصد دَ سفر شرعی ئے نه وُ - نو قصر به نه کوی - اګر که دَ دُنیا ګرځی[۴] په ملکونو -

مثلاً په دے نیت روان شه - چه زه به په فلانی کلی کښ اقامت کوم - او دغه کلے دَ دوو ورځو په مسافت لرے وُ - بیا چه هلته ورسید - زړه له ئے راغلل چه دلته نه اوسم - بل کلی له ځم - او دغه بل کلی اودَده په مینځ کښ مسافت هم دَ دریو ورځو نه کم وُ - چه هلته ورسید بیائے اوو ے - چه دا ځائے زما نه دے خوښ - بل ځائے له ځم - او دغه بل ځائے ته هم دَ دے ځائے نه لار دَ دریو ورځو نه کمه وه - نو که دے په دے طریقه دَ دنیا طواف وکی - هم به قصر نه کوی -

**مسئله**[۵] :- که په نیت دَ سفر څوک دَ خپل کلی نه روان شه - او په لار کښ ئے نیت دَ اقامت وکه دَ نیمے میاشتے - نو دغه ځائے ئے وطن اقامت شه - وس مسافر نه دے قصر به نه کوی - بیا چه د دغه ځائے نه روان شی - وس دوه صورته دی - یا به د دغه وطنِ اقامت او دَ منزلِ مقصود[۶] په مینځ کښ لار دَ دریو ورځو وی - یا کمه - نو که کم از کم دَ دریو ورځو لار وه - بیا مسافر شه قصر به کوی - او بیا چه دَ منزل مقصود نه خپل کلی ته واپس کیږی - نو د کلی پورے به قصر کوی - ولے هله که په لار کښ ئے چرته بیا دَ نیمے میاشتے دَ حصاریدو نیت ونکه - او که دَ وطنِ اقامت او دَ منزلِ مقصود په مینځ کښ دَ دریو ورځو نه کمه لار وه - نو قصر به نه کوی - وس بیا دوه خبرے دی - که په منزلِ مقصود کښ ئے کم از کم دَ نیمے میاشتے

[۱] رد المحتار ۱۲ [۲] شامی ۱۲ [۳] درمختار و رد المحتار ۱۲ [۴] فتح القدیر ۱۲ [۵] یعنی کوم ځائے ته چه ځی ۱۲

دَاقامت نیت کړے وَ۔ نوکوم وخت چه دَ منزل مقصود نه کلی ته واپس کیږی۔ دَ کلی پورے به قصر کوی۔ ددے دپاره که په لارکښې ئے بل ځائے چرته نیت دَ اقامت ونکړو او که په منزلِ مقصود کښې ئے کم نه کم دَ نیمے میاشتے دَاقامت نیت منه وُ کړے۔ نوکوم وخت چه کلی ته واپس کیږی۔ که په لارکښې ئے مینځے وطنِ اقامت نه واقع کیده۔ دَکلی پورے به قصر کوی۔ او که تیر یدل ئے په وطن اقامت وُو۔ نو په لارکښې او په وطن اقامت کښې به قصر نه کوی۔ اودَوطن اقامت نه به دکلی پورے قصر کوی۔ خو هله که د دواړو په مینځ کښې کم نه کم دَ دریُو ورځو لاروه۔ او په دے مینځ کښې بل ځائے چرته نیت دَ اقامت ونکړه۔

مسئله[1]:۔ که بادشاه دَدرے منزله سفر په اراده روان شه۔ نو اکثر که سفر دَخپل ریاست په حدودکښې دننه کوی۔ صحیح خبره داده چه قصر په ده هم واجب دے۔

مسئله[2]:۔ که چا نیت دَ پنځلسو شپو ورځو دَ اقامت وکه۔ خو په دوه مستقل ځایونوکښې۔ او په دغه دواړو ځایونوکښې فاصله دومره وه۔ چه دَ یو ځائے بانګ په هغه بل ځائے کښې نه شه آوریدے۔

مثلاً نیت ئے وکه چه لس ورځے به په مکه کښې یم۔ او پنځه ورځے په منی کښې (منی دَ مکے شریفے نه درے میله ده) نو په دے صورت کښې به دے وس هم مسافر کنړلے شی۔ قصر به کوی۔

اوکه دواړه ځایونه دومره نژدے نژدے وُو۔ چه دَیو ځائے بانګ هغه بل ځائے آوریدے شه۔ یا دواړه ځایونه په یو ښار یا یو کلی کښې وُو۔ نو دغه دواړه ځایونه به حکماً یو ګنړلے شی۔ چه په دواړو ځایونو کښې ئے مجموعه نیت دَ اقامت دَ پنځلسو شپو ورځو وکی۔ مقیم به شی۔

مسئله[3]:۔ که دَ پنځلسو شپو ورځو دَ اقامت نیت ئے وکه۔ په دوه مستقل ځایونوکښې۔ او دواړه په یو ښار او په یو کلی کښې نه وُو۔ او په مینځ کښې دومره فاصله وه چه دَیو ځائے بانګ هغه بل ځائے نه شه آوریدے کیدے۔ او نیت ئے دا وُ۔ چه پنځلس واړه شپے به هغه ځائے تیروُم۔ او دورځے به دغه دوئیم ځائے لځم راځم نوکوم ځائے چه ئے دَ شپو تیرولو اراده کړے۔ که هلته ورځی۔ هغه ځائے دَده وطن

---

[1] شرح المنیه ۱۲ [2] بحرالرائق وشامی ۱۲ [3] بحر وشامی ۱۲

اقامت شه۔ قصر به نه کوی۔

**مسئله** :- دَ مقیم اقتدا په مسافر پسے صحیح ده۔ ادا وی۔ او که قضا۔ نو په څلور رکعتی مونځ کښے مقیم مقتدی له پکار دی۔ چه دَ مسافر امام دَ سلام څخه ګرځولو نه پس پا سی۔ او خپل دوه رکعته پوره کی۔ لیکن قرأت به پکښ نه کوی۔ یعنے الحمد او سورة به نه لولی۔ په قدرِ دَ قرأت به خاموش ولاړ وی۔ او که سهو شه۔ نو سجدهٔ سهو به هم نه کوی۔ وجه دا ده چه دے لاحق دے۔ او قعدهٔ اولیٰ به په دے مقتدی باندے هم فرض وی دَ وجه دَ متابعت دَ امام نه۔

او مسافر امام له مستحب دی۔ چه کوم وقت دواړو طرفونو ته سلام وګرځوی۔ خپلو مقتدیانو ته اووائی۔ چه خپل مونځ پوره کئ۔ زه مسافر یَم۔ او بېره غوره دا ده چه دَ مونځ شروع کولو نه مخکښه ورله دَ خپل مسافروالی خبر ورکی۔

**مسئله** :- دَ مسافر اقتدا په مقیم پسے په ادا مونځ کښ صحیح ده۔ نو که مسافر په څلور رکعتی مانځه کښ دَ مقیم اقتدا وکړه۔ دے به دَ هغه دَ متابعت په وجه پوره مونځ کوی۔ قصر به نه کوی۔ او دَ مسافر اقتدا په مقیم پسے په قضا مونځ کښ صحیح نه ده۔ لکه چه مخکښ دَ اقتدا په باب کښ په تفصیل سره بیان شوی دی۔

**مسئله** :- که مسافر دَ مقیم اقتدا کوله۔ نو غوره خبره دا ده۔ چه مسافر دے په نیت کښ تعین دَ رکعتونو نه کوی۔ خو صرف دَ فرضو نیت دے پسے وتړی۔ وائی دے چه دَ نن ماسپخین فرض مونځ اداکوم۔ په دے حاضر امام پسے۔ او که تعین کول خامخا غواړی۔ نو دَ دوه رکعته نیت دے تړی۔

**مسئله** :- که مسافر امام صرف دَ مقتدیانو مونځ پوره کولو په غرض نیت دَ اقامت وکه۔ او په واقع کښ ئے اراده نه وه۔ په دے سره دے مقیم نه ګرځی۔ نو که څلور رکعتی فرض مونځ ئے پوره که۔ او مقیم مقتدی هم څلور واړه رکعتونه دَ ده په اقتدا کښ وکړه۔ دَ مقتدی مونځ و نشه۔ بیا به کوی۔

**مسئله** :- که مسافر په مانځه کښ نیت دَ اقامت وکه۔ نو دا نیت صحیح دے۔ برابره خبره ده چه دَ مانځه په شروع کښ وی۔ او که په مینځ کښ۔ او که په

له بحرالرائق ۱۲ ؎ درمختار و شامی ۱۲ ؎ مجموعة الفتاوی ۱۲ ؎ درمختار و ردالمحتار ۱۲ ؎ بحرالرائق ۱۲

آخرکښې۔ او برابره خبره ده چه دے منفرد وی۔ او که مدرک وی۔ او که مسبوق۔ نوکه دغه مونځ څلور رکعتی وُ۔ پوره کوی به ئے۔ څلور واړه رکعته پے فرض دی۔ هاں که وقت تیر شه۔ او پس دَ هغے نه ئے په مانځه کښې نیت دَ اقامت وکه۔ یا کوم وقت چه دے لاحق وګرځید۔ په دغه حالت کښې ئے پس دَ فراغت دَ امام نه نیت دَ اقامت وکه۔ نو په دے دواړو صورتونو کښې په دے نیت دَ اقامت سره څه فرق نه راځی۔ که مونځ څلور رکعتی وُ۔ قصر به کوی۔

دَ اول صورت مثال دا دے۔ چه یو مسافر دَ ماسپخین مونځ شروع که۔ بیا لا دے په دغه مانځه کښې وُ۔ چه وقت دَ ماسپخین اووت۔ او پس دَ هغے نه ئے نیت دَ اقامت وکه۔ نو په دے نیت سره په دغه مانځه کښې فرق نه راځی۔ دوه رکعته به کوی۔ البته که مثلاً پس دَ یو رکعت نه ئے نیت دَ اقامت وکه۔ او دا دے نه ورستو وقت دَ ماسپخین اووت۔ نو پوره څلور رکعته به کوی۔

دَ دویم صورت مثال دا دے۔ چه یو مسافر په مسافر امام پسے دَ ماسپخین دَ مانځه اول سر اوموند۔ لیکن بیا دَ دے مقتدی اودس مات شه۔ یا دے اُوده شه۔ او کوم وقت چه بیدار شه۔ نو امام دوه رکعته کړی وُو۔ دَ دغه مانځه نه فارغ شوے وُ۔ بیا دے مقتدی نیت دَ اقامت وکه۔ نو اوس چه به دے دغه مونځ پوره کوی۔ څلور رکعته به نه کوی۔ بلکه قصر مونځ به پوره کوی۔

**مسئله**:۔ که ښځے په حالت دَ حیض کښې شرعی سفر کاوُ۔ بیا چه منزل مقصود ته دَ دریو ورځو نه کمه لاره پاتے شوه۔ پاکه شوه۔ نو اوس چه به دا لیس دَ غسل نه مونځ کوی۔ قصر به نه کوی۔ او که لیس دَ پاک کیدلو نه دَ دریو ورځو لاره پاتے وه۔ یا کوم وقت چه دا روانیده۔ دَ سفر په شروع کښې پاکه وه۔ زیږوکی ئے په لاره شروع شوی وُ۔ بیا به قصر کوی۔

دارنګ که نابالغ هلک سفر کاوُ۔ او کوم وقت چه منزل مقصود ته د دریو ورځو نه کم مسافت پاتے شه۔ دے بالغ شه۔ نو قصر به نه کوی۔ او که کافر سفر کاوُ۔ او کوم وقت چه منزل مقصود ته ئے د دریو ورځو دَ مسافت نه کمه لاره پاتے شوه۔ اسلام ئے راوړه۔ نو دے به قصر کوی۔

**مسئله**:۔ څوک چه په سفر کښې دَ بل تابع وی۔ هغه به په نیت دَ اقامت

---

ﻟﻪ درمختار وشامی ۱۲ ﺳﻪ درمختار وردالمحتار ۱۲

کښې هم دغه تابع ګڼړے شي۔ نو که متبوع نیت د اقامت وکه۔ تابع به هم مقیم شي۔ کنې نو قصر به کوي۔ یائې شوه دا خبره چه تابع ته دا معلومېدل ضروري دي چه دغه نیت د اقامت وکه۔ او که ضروري نه دي۔ نو وائي۔ صحیح خبره دا ده۔ چه دے۔ او احتیاط په دے کښې دے چه نه۔

**مسئله** :۔ په کشتۍ کښې سوروُ۔ او کشتۍ په دریا کښې روانه وه۔ او د مانځه وقت شه۔ نو په دغه روانه کشتۍ کښې دے مونځ وکي۔ که په ولاړے نه شي کولے په ناستے دے وکي۔

**مسئله** :۔ کوم وقت چه په روانه کشتۍ کښې مونځ شروع کوي۔ نو د شروع کولو په وقت کښې قبلے ته مخ کول ضروري دي۔ بیا که کشتۍ ګرځېده دے به ورسره هم ګرځي۔ مخ به قبلے ته کوي۔

**مسئله** :۔ که مثلاً سړے په اس سور روان وُ۔ یا په اوښ وغیره۔ او د مانځه وقت شه۔ نو راکوز دے شي۔ مونځ دے وکي۔ لیکن که حالت د عذر وُ۔ بیا سور هم کولے شي۔ مثلاً په راکوزیدو کښې ئې د دشمن نه یره وه۔ یه خپل ځان باندے۔ یا په خپل مال و اسباب وغیره۔ یائې خطره وه د منزری وغیره نه۔ یا دومره خټے وے چه مخ په کښې ښخیده او بل سم ځائے ئې موندے نه شه۔ یا ښځه وه۔ یریده د فاسق نه۔ یا بل داسے شرعي عذر وُ۔ نو په داسے صورت کښې فرض او واجب مونځ هم سور کولے شي۔ په اشارے سره۔ خو شرط دا دے چه ښاورے ئې ودرولے وي۔ او د ده مخ وي قبلے ته۔ او که ځاروے روان وُ۔ او قدرت د ودرولو ئې وُ۔ بیا ئې جائز نه دے۔ لیکن که د ودرولو په صورت کښې ئې هم د دشمن خوف وُ عذر وُ۔ نو بیا په حالت د رفتار کښې هم جائز دے۔ او مخ به ئې قبلے ته ګرځوي په قدر د امکان سره۔

**مسئله** :۔ که چا بل څه ځائے و نه موند۔ او خټے ډیرے وے چه مخ په کښې ښخیده او څه ښاورے وغیره د سورلۍ ورسره هم نه وُ۔ نو دغه دے خټو کښې به ولاړے مونځ وکي په اشارے سره۔ او که مخ یا زنګونه ئې صرف لږ ډوبېده قدرے یعنے خټے ډیرے معمولي وے۔ بیا ورله په اشارے سره مونځ جائز نه دے۔ باقاعده به ئې کوي۔

---

[1] شرح البدایه ۱۳۰ [2] دامام صاحبؒ په نزد په کشتۍ کښې په ناستے جائز دے۔ او د صاحبینؒ په نزد بلا عذره نه دے جائز۔ درود ۱۲ [3] شرح التنویر ۱۲ [4] در مختار و شامي ۱۲ [5] شامي ۱۲

**مسئله** :- که په ریړه یا تهبله وغیره کښې فرض یا واجب مونځ با قاعده کاوۍ - او هغه ولاړ په وه - نو که بل جانب ته د ښاورې د یاسه پروت نه وُ - بلکه زوره ته تول په زمکه وُ - جائز دے - داسے به شی - لکه تخته پوش - او که بل جانب ته په ښاورې پروت وُ - نو جائز نه دے - او که روانه وه - نو په حالت د عذر کښې جائز دے -

**د صلوٰة خوف بیان**

**مسئله** :- که وقت د مانځه وُ - او دشمن حاضر وُ - یا حاضیدو نکے وُ - برابره خبره ده - چه انسان وی - او که درنده ځناور - او په دغه حالت کښې بعض مسلمانانو جماعت کولے شه - نو جماعت دے وکی - په طریقه د صلوٰة خوف طریقه ئے داده - چه مسلمانان دوه فریق کړے شی - یو فریق به و دریږی د دشمن مقابلے ته - او بل فریق به د امام سره مونځ شروع کی - پس که مونځ دوه رکعتی وُ - یعنې د سحر مونځ وُ - یا د جمع یا د اختر - یا وُ څلور رکعتی - خو دے مسافر وُ - قصرے کاوُ - نو کوم وقت چه دا اول فریق د امام سره یو رکعت وکی - د سجدے نه راپورته شی - لاړ به شی د دشمن مقابلے له -

او که مونځ څلور رکعتی وُ - خو دی قصر نه کاوُ - یا درے رکعتی وُ - نو کوم وقت چه دا اول فریق دوه رکعته د امام سره وکی - سره د تشهده - او امام دریم رکعت ته ورا وچت کیږی - دی به هله روانیږی - د دشمن مقابلے له - نو کوم وقت چه دی روان شی - په دے دوران کښې به امام د دویم فریق منتظر وی - هغه به راشی شریک به شی د امام سره - نو چه امام باقی مونځ پوره کی - سلام به وګرځوی - او دا دویم فریق به بے د سلام ګرځولو نه دوباره لاړ شی - د دشمن مقابلے له - او هغه اول فریق به بیا دے ځائے له راشی - خپل باقی مونځ به پوره کی - او په دے فریق باندے قرأت شته - ځکه چه دا مسبوق دے -

**مسئله** :- اول فریق د امام سره د مانځه څه حصه با قاعده وکړه - بیا د دشمن مقابلے له لاړ - دویم فریق راغے - د امام سره ئے باقی مونځ وکه - او خپل پاتے مونځ ئے دلته پوره که - بیا دا فریق لاړ شه - د دشمن مقابلے له - نو اول فریق هلته خپل باقی مونځ پوره که - مینی ځائے له رانغے - نو دا هم جائز دی - خو اوله طریقه غوره ده - کومه چه مخکښې بیان شوے -

**مسئله** :- فریقین چه په خپل خپل وار د مانځه څه حصه ادا کولو نه بعد د دشمن

---

۱ شرح المنیه و در مختار ۱۲ ۲ درمختار و هدایه و شامی ۱۲ ۳ درمختار و رد المحتار ۱۲ ۴ شرح التنویر و شامی ۱۲

مقابلے له ځي. او بیا د مونځ پوره کولو دپاره دلته راځي. دا تله راتله ئے پیاده پا ضروري دي ورنه که سواره شو. مونځ به ئے فاسد شي. ځکه چه دا بے ځایه عمل کثیر دے.

مسئله :- په صلوٰة خوف کښ چه د دشمن مقابلے له ځي. یا ډ هغه ځائے نه مانځه له راځي. ډدے تلو راتلو نه سوا که په مانځه کښ ئے نور تله راتله وکړه مثلاً دشمن ئے وز غلاؤ. او تعاقب ئے وکه. یا دشمن نه وتختیدو. او دے ؤ پیاده یا. نو په دے رفتار سره ئے مونځ مات شه. دارنګ که غیر معمولي جنګ ئے وکه. یا مینه پیاده ؤ. بیا سور شه. په دے سره هم مونځ ماتیږي.

مسئله :- د صلوٰة خوف کومه طریقه چه مخکښ ذکر شوے. دا هله ده. که ټولو په یو امام پسے مونځ کول غوښتو. مثلاً ټوک شه سړے ؤ. هر یو غوښته چه څه په ده پسے مونځ کوم. او که دا خبره نه وه. بیا غوره داده. چه یو فریق ډ دشمن مقابل ودریږي. او بل فریق په امام پسے پوره مونځ وکي. بیا لاړشي د دشمن مقابلے له. بیا هغه بل فریق راشي په بل امام پسے پوره مونځ وکي

مسئله :- که په دے ګمان سره ئے صلوٰة خوف په مذکورة الصلوٰة طریقه اداکه. چه دشمن رانژدے دے. زر ده چه راؤ به رسي. بیا دا ګمان غلط اوخوت. نو ډ امام مونځ خو وشه. ځکه چه هغه عمل کثیر نه دے کړے. او قوم به خپل مونځ بیارا ګرځوي. ځکه چه دی عمل کثیر کړے دے. بے ډ سخت ضرورت نه. او صلوٰة خوف چه سره ډ عمل کثیره جائز دے. دهغه خلاف قیاس دے. ډوجے ډ سخت ضرورت نه.

مسئله :- په حالت د صلوٰة خوف کښ خپله وسله ډ ځان سره ساتل ځمونږ په نزد غوره دي. او په دے بابت کښ چه کوم آیت راغلے دے. هغه دپاره ډ استحباب دے.

مسئله :- که صلوٰة خوف ئے په مذکوره طریقه شروع کړے ؤ. بیا دشمن لاړه. نو وس به باقي مونځ په طریقه معروفه سره پوره کوي. کومه طریقه چه ډ حالت ډ امن ده. یعنے وس به په مانځه کښ تله راتله نه کوي. ډ قبلے نه به نه ګرځي. ګني نو مونځ به ئے مات شي. او که یو فریق څه حصه

---

له درمختار و شامي ۱۲ ؎ بحر رائق ۱۲ ؎ شامي ۱۲ ؎ عالمګیري و درمختار ۱۲

دَ صلوٰة خوف کړے وه - بیا تلے وُ - د دشمن مقابلے له - بیا دشمن وتختیں - نو دا فریق به بنا کوی -

**مسئله** :- که نا جائز جنګ ئے کاوُ - مثلاً دَ نا جائز غرض دَ پاره ئے حمله کوله - یا باغیانو دَ بادشاه اسلام سره مقابله کوله - نو دے ګناهګارانو له مونځ په طریقه دَ صلوٰة خوف ادا کول جائز نه دی - ځکه چه ددی کار ګناه دے نو په مانځه کښں ورته عمل کثیر نه دے معاف -

**مسئله** :- دَ صلوٰة خوف کومه طریقه چه دَ دے باب شروع کښں بیان شوے - هغه هله ده که بعضے کسانو مونځ دَ جماعت ادا کولے شه - او که حالت دومره نازک وُ - چه څینے کسانو هم دَ جماعت مونځ نه شه کولے - او دَ اُسونو نه دَ راکوزیدو موقعه ورته هم نه وه - نو هر سړے دے ځان ځان له سور په اشاره سره مونځ وکی - او په داسے حال کښں استقبال دَ قبلے هم ضروری نه دے -

هاں که دوه تنه په یو اس سواره وو - نو دی دواړه جماعت کولے شی - رکوع سجود به ادا کوی په اشارے سره - او که حالت دَ نزاکت حد ته رسیدلے وُ - چه مونځ په اشاره سره هم نه شه کیدے - نو وس دے صبر وکی - بیه حالت دَ اطمینان کښں به ئے قضا اداوی -

**مسئله** :- که دشمن سړی در پسے وُ - او سړے سور وُ - مونځ ئے کاوُ په اشارے سره نو جائز دے - او که دے په دشمن پسے وُ زغلاوُ ئے - بیا ورله په اشاره سره مونځ جائز نه دے - ځکه چه خوف دده نهٔ دے - بلکه دَ دهٔ نه دے -

**مسئله** :- که چا په دریاب کښں لامبو وهله - او وچے ته دَ راوتو موقعه ورته نه وه - او وقت دَ مانځه آخر شه - نو که دے دَ لږ ساعت دَ پاره لاسونه او خپے دَ خوزولو نه منعه کولے شی منعه دے کی - مونځ دے وکی په اشارے سره او که دومره ګنجایش نهٔ وُ - نو په اشارے سره ئے مونځ صحیح نه دے - لکه چه صحیح نه دے په حالت دَ پیاده رفتار کښں - او په حالت دَ شمشیر زنئے کښں - دَ اطمینان په وقت کښں به ئے قضا اداوی -

| یا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ یَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا | دَ جمعے بیان |
|---|---|

---

۱ درمختار وشامی ۱۲ ۲ شرح التنویر ۱۲ ۳ شرح التنویر ۱۲ ۴ درمختار ورد المحتار ۱۲

اِلیٰ ذِکْرِ اللّٰهِ وَ ذَرُوا الْبَیْعَ الخ (ترجمه) اے مؤمنانو کوم وخت چه دَ جُمعے دَ مانځه دَ پاره بانګ وکړے شی ۔ نو تاسو دَ خدائے پاک ذکر ته دُوځئ ۔ او خرید وفروخت پریږدئ ۔

په دے آیت کښں دذکر نه مراد دَ جُمعے مونځ دے ۔ او دَ هغے خطبه ۔ او دَ دوُ نه مراد ظاهری منډه نه ده ۔ بلکه په اهتمام سره تله دی ۔ او کوم کار چه په تلو کښں مُخِل وی هغه نه کول ۔

دَ جُمعے مونځ فرض عین دے ۔ په قرآن شریف او په احادیث متواتره او په اجماع اُمت سره ثابت دے ۔ څوک چه دَ فرضیت نه انکار کوی ۔ هغه کافر دے ۔ او څوک چه بے عذره پریږدی هغه فاسق ۔ او دَ جمعے ورځ ته دَ جمعے ویلو وجه داده چه په دے کښں مسلمانان په هفته کښں یو پیره په شریکه سره دَ جُمعے دَ مانځه دَ پاره په خپلو جُماعتونو کښں جمع کیږی ۔

بله وجه داده چه په دے ورځ ټول مخلوق جمع شوے وُ ۔ یعنے په کوم شپږو ورځو کښں چه خدائے پاک زمکے او آسمانونه پیدا کړے وُ ۔ شپږم مه ورځ دا وه ۔ نو په دے کښں پیدائیش تکمیل ته رسید ۔ یا ورته دَ جمعے ویلو وجه داده چه په دے ورځ دَ آدمؑ طینت جمع کړے شوے وُ ۔ یا دَ که چه په دے ورځ به قیامت قائمیږی ۔ بعث حشر به کیږی ۔ او دَ جمعے فضائیل ډیر دی ۔ خو دا ځائے یوځو دَ تبرک دَ پاره لیکلے شی ۔

**حدیث** :- په کومه ورځ چه نور را ختلے په هغے کښں غوره ورځ دَ جُمعے ده ۔ دَ جُمعے په ورځ آدمؑ پیدا کړے شوے وُ ۔ او جنت ته داخل کړے شوے وُ ۔ او دَ جُمعے په ورځ دَ جنت نه ایستلے شوے وُ ۔ ( دَ جنت نه ایستلے کیدل اګر که په ظاهر کښں نعمت نه معلومیږی ۔ په دے لحاظ سره نعمت دے ۔ چه دَ دنیا دَ آبادئے ذریعه شوه ۔ او دَ خلافتِ الٰهی او دَ عدل دَ ظهور یو سبب وګرځیدنا ۔

او په دے حدیث کښں چه دا الفاظ راغلی دی ۔ " په کومه ورځ چه نُور راختلے " دَ دے نه مراد ټولے ورځے دی ۔ ځکه چه نُور هره ورځ خیژی ۔)

**حدیث** :- دَ ابوهریره رضؓ نه روایت دے ۔ نبی علیه السلام فرمائیلی دی ۔ چه دَ جمعے په ورځ کښں یو ساعت داسے شته ۔ چه مسلمان بنده په هغے

---

له رواه مسلم ۱۲ که بخاری و مسلم ۱۲

کښې رخه جایزه ) دُعا وکی - نو خدائے پاک به ئے ضرور قبلوی - د دے وخت په تعین کښې ډیر قولونه دی - لیکن شاه عبد الحق صاحب محدث دهلوی په شرح د سفر السعادت کښې دوؤ قولونو له ترجیح ورکړے ده - یو دا چه همغه د خطبے نه د مونځ د ختمیدو پورے دے -

بل دا چه د ورځ په آخره حصه کښې دے - او ډیرو عالمانو دے دویم قول له ترجیح ورکړے -

حدیث :- د ابوهریره رضه نه روایت دے - نبی علیه السلام فرمایلی دی - چه ستا سو په ټولو ورځو کښې غوره ورځ د جمعے ده - په دغه ورځ به شپیلئ پوکلے کیږی - د جمعے په ورځ په ما باندے ډیر ډیر درود وایئ - ځکه چه ما ته پیش کیږی -

په بل حدیث[ئه] کښې راغلی دی - چه د جمعے ورځ سیّد الایّام ده - یعنے د ټولو ورځو سرداره ده - د خدائے پاک په نزدے د وړوکی اختر او د لوئ اختر نه هم مرتبه زیاته ده -

فایده[۳] د جمعے په ورځ ارواح جمع کیږی - د جمعے په ورځ میت د عذابِ قبر نه بچ کیږی - او څوک چه د جمعے په ورځ یا د جمعے په شپه مړشی همغه د قبر د فتنے او د عذاب نه په امن کیږی - د جمعے په ورځ دوزخ نه تیزیږی او د جمعے په ورځ به جنتیان د خپل رب دیدار کوی - خدائے پاک دے مونږ ته نصیب کړی -

فایده[۳] :- (۱) د جمعے په ورځ غسل مسنون دے - (۲) او مسواک وهل هم ډیر فضیلت لری - (۳) پس د غسل نه دے خپلے صفا جامے وا غوندی (۴) که ورسره وی نو عطر یا نوره څه خوشبو چه رنګس اره نه وی - و دے لګوی - (۵) جامع مسجد له دے د وخته لاړشی چه څومره وختی تلے شی - همغومره ثواب دے -

نبی[ئه] علیه السلام فرمایلی دی چه د جمعے په ورځ فرشتے د راتلونکو د نومونو لیکلو د پاره د جماعت په دروازه ودریږی - نو د راتلونکو نومونه نمبروار لیکلی -

---

[له] ابوداؤد ۱۲ [ئه] مشکوٰة شریف ۱۲ [ئه] درمختار و شامی ۱۲ [ئه] درود ۱۲ [ئه] بخاری شریف ومسلم شریف ۱۲

چه څوک ځکښي وی دَ هغو ځکښي - او چه څوک ورستو وی - دَ هغو ورستو درجه به درجه - نو څوک چه په اول ساعت کښي راشی - هغه ته دَ وښ دَ قربانۍ هومره ثواب ملاويږی -

او څوک چه په دويم ساعت کښي راشی - هغه ته دَ غوا دَ قربانۍ هومره - او دريم ته دَ پيسه دَ قربانۍ هومره - او څلورم ته دَ خيراتی چرګ حلالولو هومره - او پنځم ته دَ يو هګۍ خيراتی ورکولو هومره - بيا چه امام خطبې له راوځی - نو فرښتې هغه دفتر بند کی - دَ خطبې په آوريدو کښي مشغوله شی -

(۶) دَ جمعې مانځه له په پياده تلو کښي ډير ثواب دے - په هر قدم دَ يو کال دَ روژو هومره ثواب ملاويږی - (۷) دَ جمعې په ورځ نوکونه پريکول او حجامت کول هم مستحب دی - خو دا چه دَ مانځه نه پس افضل دی - (۸) دَ جمعې په ورځ سورهٔ کهف لوستل ډير خاصيت لری - (۹) دا رنګ په کثرت سره درود شريف لوستل هم لوئ اثر او برکت لری -

(۱۰) نبی صلعم به دَ جمعې په مانځه کښي کله سورهٔ جمعه او سورهٔ منافقون او کله سورهٔ اعلیٰ او سورهٔ غاشيه لوستله - او دَ جمعې په ورځ به ئے دَ سحر په مانځه کښي سورهٔ الم سجده او سورهٔ دهر لوستله - نو که څوک کله کله دَ استحباب په طور دا رنګ لولی ډيره ښه خبره ده - خو دوام دے پرے نه کوی - دَ پاره دے چه عوام ئے واجب ونګڼی -

**حديث** :- چا چه دَ جمعې په ورځ غسل وکه - بيا ئے ښې ښې جامے واغوستے او څه خوشبوئی په ځان و لګوله که ورځه وی - بيا دَ جمعې مانځه له راغے - دَ خلقو په اوږو ئے ښپے وانه ړولے - بيا ئے مونځ وکه - بيا چه امام خطبې ته راپاسيده - دے چپ کيناست بيا دَ مانځه نه فارغ شه - نو دَ دے جمعې او دَ اولے جمعې په مينځکښي چه دَ ده څه ګناهونه وُو - دَ هغې کفاره ئے وشوه - (يعنے دَ صغيره ګناهونو)

**حديث** :- چا چه دَ جمعې په ورځ په دا سے حالت کښي خبره وکړه چه امام خطبه ويله - نو دَ هغه مثال دا سے دے لکه خر - چه دَ کتابونو بار پرے پروت وی - او چا چه ورته اووے چپ شه - نو دَ هغه هم جمعه نشته (يعنے ثواب)

| دَ جمعې مونځ په چا فرض دے | دَ جمعې مونځ په هغه مکلف فرض دے چه نهه شرائط په کښي موجود وی :- |
|---|---|

ـه ترمذی شريف ۱۲ ـه درورد ۱۲ ـه ابوداؤد ۱۲ ـه مشکوٰة شريف ۱۲ ـه درمختار و شامی و طحطاوی ۱۲

لومړی دا چه نارینه وی۔ پس د جمعې مونځ په ښځو فرض نه دے۔

دویم دا چه آزاد وی۔ نو په مریٔ فرض نه دے۔

دریم دا چه وی مقیم اګر که نیت د اقامت ئے کړے وی صرف د پنځلسو ورځو۔ نو په مسافر فرض نه دے۔

څلورم صحت دے۔ نو کوم مریض چه د مرض په وجه جامع مسجد له د تللو را تللو قدرت نه لری۔ یا قدرت لری خو په تللو کښې ئے خوف وی د مرض د زیاتیدلو۔ یا د زرته جوړیدلو نو مونځ د جمعې پے فرض نه دے۔ دارنګ که چا د مریض تیمارداری کوله۔ او په تللو کښې ئے د مریض ضایعه کیدلو خوف وُ۔ په ده هم جمعه واجب نه ده۔ او شیخ فانی هم ملحق دے د مریض سره۔

پنځم:۔ شرط دا دے چه د سترګو نظر ئے په ځائے وی۔ نو که ړوند وُ۔ فرض پے نه دے هاں که یو سترګه ئے جوړه وه۔ بیاپے فرض دے۔

شپږم:۔ دا چه پښے ئے جوړے وی۔ نو ګوډ چه د تللو نه وی۔ په هغه فرض نه دے۔

اووم: دا چه دے مظلوم قید نه وی۔

اتم دا چه جامع مسجد له په تللو کښې ئے خطره نه وی۔ نه په ځان نه په مال۔

نهم دا چه څه معقول عذر نه وی موجود۔ لکه سخت باران نه۔ یا ډیرے واورے۔ یا زیاتے خټے وغیره۔ لکه چه په باب د جماعت کښې بیان شوی دی۔ باقی پاتے شه اسلام۔ عقل بلوغ۔ نو دا درے واړه څرنګ چه د نورو مونځو نو د وجوب د پاره شرط دی۔ دارنګ د جمعې د وجوب د پاره هم دی۔

مسئلهٔ[1] :۔ که د جمعې د واجب کیدلو مذکوره شرائط په کښې نه وُو موجود۔ او مونځ د جمعې ئے کاوُ۔ او دے وُ مکلف یعنی مسلمان۔ عاقل۔ بالغ۔ نو د ما سپخین فرض د هغه د ذمے نه ساقطیږی۔ یعنی جمعه ئے صحیح ده۔ او جمعه ورله غوره ده۔ لیکن ښځے له نه۔ ځکه چه هغې له مونځ په خپل کور کښې غوره دے۔

مسئلهٔ[2] :۔ که څوک بانډچی مقیم سړے د جمعې په ورځ یو داسے ځائے ته لاړ چه هلته جمعه واجبه وه۔ نو که د ده نیت د ټوله ورځ حصار یدو وُ۔ او د وقت پورے حصار شه جمعه پے واجبه ده۔ او که د وقت داخلیدو نه مینځے د تللو نیت وُ۔ او لاړ۔ نو نه۔ او که پس د وقت د داخلیدو نه ئے نیت وُ۔ نو ځینے وائی چه واجبه ده۔ او ځینے وائی نه۔

[1] درد شامی ۱۲ [2] درمختار ورد المحتار ۱۲

**مسئله** :- د جمعې په ورځ که څوک مکلف مقیم سړے شرعي سفر کول غواړي - یا
بود اسے ځائے له تلل غواړي چه هلته جمعه صحیح نه ده - او اوس چه کوم ځائے وي - هلته
جمعه واجبه وي - نو صحیح قول دا دے - چه د زوال نه پس او د جمعې د مانځه نه مینه ورله
تلل مکروه دي - او د زوال نه مینه مکروه نه دي۔

**مسئله** :- د جمعې اول بانګ چه او ویلے شي - پس سعئ واجبه شوه - که وس ئے
خرید و فروخت وکه - یا بل د اسے کار - چه هغه په سعئ کښې مخل وُ - نو دا مکروه تحریمي
دي - البته[3] په چا باندے چه جمعه فرض نه ده - هغه د دے حکم نه مستثنیٰ دے - نو که
هغوئ پس د بانګ نه خرید فروخت وکه - د احرامه نه ده - لیکن که په دواړو کښې په
یو باندے جمعه فرض وه - نو دواړه ګنهګار شو - او دا فعل مکروه تحریمي دے - [1]

**د جمعې د صحت شرطونه** | د جمعې د مانځه د صحت د پاره اووه څیزونه شرط دي - یو مصر دے
یعنې ښهر - او که با قاعده عنټ کلے وُ - نو هغه هم په حکم د مصر کښې دے - نو په ځنګل
کښې او په بانډه کښې او په وړوکي کلوټي کښې جمع صحیح نه ده - هاں په فناء د مصر کښې یعنې
د ښهر نه چاپیره د ښهر د مصلح او ضروریات د پاره چه کوم ځائے تیار کړے شوے وي
په هغې کښې صحیح دے - او د مصر په تعریف کښې د عالمانو ډیر اختلاف دے - قسم قسم تعریفونه
د مصر ئے ذکر کړي دي - خو ظاهر مذهب دا دے - چه په کوم ځائے کښې بازارونه او
مختلف محلے او کلي کوڅے وي - او د هغې د پاره حاکم او قاضي مقرر وي چه هلته دوسي
او تنفیذ د احکامو او اجراء د حدود کولے شي - بس دا مصر دے - او بعض عالمان
وائي - چه د مصر د پاره دا خبره ضروري نه دي - بلکه د دغه ځائے په کوم کسانو
چه جمعه فرض ده - که هغه ټول نه شو ځائیږے په هغه جمات کښې چه هغه د دغه
ځائے د ټولو جماتونو نه لوئ وي نو دا مصر دے - جمعه په کښې صحیح ده - او په دے
قول باندے اکثر وفقهاؤ فتویٰ ورکړے - ځکه چه نن ورځ اکثر عوام د شریعت په
احکام کښې د سستئ نه کار اخلي - دویم شرط دا دے چه سلطان وي یا د هغه مامور
یعنې دا ضروري ده چه اقامت د جمعې بادشاه اسلام په خپله کوي - یا هغه څوک چه هغه ته
سلطان اذن کړے وي صراحةً - لکه چه یو سړي ته ووائي - نه د فلاني مقام په فلاني
جامع مسجد کښې د جمعې خطبه لوله - مخکښې موږ کوه - یا دلالةً - لکه حاکم د مصر شه
چه بادشاه ورته د دغه مصر عام انتظامات حواله کړي وي - او هغوئ بادشاه صاحب سوا

[1] شرح المنیه ۱۲ [2] رد المحتار ۱۲ [3] طحطاوی علی مراقی ۱۲

ومتعلقات خلّد اللہ ملکہٗ وحکومتہٗ - پہ خپل ریاست کښ د مصر اوکوم کلی چہ پہ حکم د مصر کښ دی - د هغے خطیبانو له د جمعے د قایمولو اذن ورکړے دے - اګر دا اذن ئے شایعہ کړے دے - نو پہ دا سے مقامات کښ د دے دویم شرط وجود هم شته - دریَم شرط د وقت د ماسپخین دے - نو که د ماسپخین وقت لا نه وُ شوے او مونځ د جمعے ئے وکه - یا د وقت وتلو نه ورستو - نو وُ نشه - بلکه د جمعے مونځ که ئے لا نه وُ ختم کړے - او پہ مانځهٔ کښ وقت د ماسپخین اووت - اګر که قعدهٔ اخیرهٔ پہ قدر د تشهد کړی وی - بیا هم مونځ وُ نشه او چونکه د جمعے د مانځهٔ د پاره اصل وقت د ماسپخین شرط دے - له دے وجے نه د جمع قضا نشته - څلورم شرط خطبه ویل دی - خو پہ وقت د ماسپخین کښ د نه د نه نو که وقت د ماسپخین لا نه وُ شوے - او خطبه ئے اووے - بیائے پہ دغه خطبه مونځ وکه نو وُ نشه - پنځم شرط دا دے چہ خطبه د مانځهٔ نه مینه اوویلے شی - بے د ډیرے فاصلے نه - نو که مینه ئے مونځ وکه (فرض) د هغے نه بعد ئے خطبه اوویله نو مونځ ئے نه دے شوے - شپږم شرط جماعت دے - یعنے دا ضروری ده - چہ د خُطبه اولی د شروع کیدلو نه د اول رکعت د سجدے پورے د امام نه سوا درے کسان حاضروی - او خطبه آوریدل ئے شرط نه دی - بلکه حضورئے کافی دے - نو که درے واړه کانړه وو - یا خوب ژنګول - جمعه بے صیح کیږی - او که پہ خطبه کښ درے کسان حاضر وو - بیا درے پہ مانځهٔ کښ شامل وو - خو هغه نور وو - او دا نور نو خیر دے - جمعه صیح ده - خو درے کسان هغه معتبر دی - چہ هغه قابل وی د امامت - اګر که معذور وی پہ سفر یا پہ مرض سره - نو که صرف ښځے وے یا نا بالغان نو جمعه ئے صیح نه ده - او که سره د امام سره مونځ د جمعے شروع که - لیکن د اول رکعت سجدهٔ لا نه وه کړے چہ ټول تے لاړه یا ورسره کم پاتے شو د دریو نه - نو مونځ د جمعے باطل شه - او که لیس د سجدے نه ئے لاړه نو امام به مونځ د جمعے پوره کی - جمعهٔ صیح ده - اګر که پاتے شوے وی یوازے - او وم شرط دے اذن عام - یعنے دا چہ د جمات دروازے ئے بیرته کړے وی - او عام مکلفین نه پہ دغه جماعت کښ بے د روک ټوک نه د جُمعے مونځ اداکولو اجازت وی -

نو که یو ټولے پہ جامع مسجد کښ جمع شه - او دروازے ئے بند کړے - نورئے نه پریخودل مونځ د جُمعے ئے صیح نه دے - البته که د دشمن د ویرے ئے بند کړے - یا ممانعت د چا نه وُ - مګر د قدیمی دستور پہ وجه ئے وُرونه پورے کړه - نو دا مضر نه دی - جمعه

صحیح ده - دارنګ شیځ منعه کول هم مضر نه دی. ځکه چه د هغوی په حضور کښ د فتنې یره ده - او د جمعې د ماښځه د صحت کوم شرائط چه ذکر شو - که چرې دا موجود نه وُ - او مونځ د جمعې وکه نو صحیح نه دے - لهٰذا د ماسپخین مونځ پے لازم دے او هرکله چه شرائط د صحت موجود نه وی - او مونځ د جمعې کوی. هغه نفل کرځی او نفل په دے اهتمام سره مکروه دی. نو په داسے صورت کښ د جمعې مونځ کول مکروه تحریمی دی.

**فائده** کوم ځائے چه د جمعې د صحت شرائط موجود وی. هلته دے صرف جمعه کوی - او کوم ځائے چه نه وی موجود هلته دے صرف د ماسپخین مونځ کوی او که یو ځائے د جمعې په صحت کښ اشتباه راغله - او مونځ ئے د جمعې وکه - نو غوره خبره داده چه په دغه ورځ د ماذیګر په وقت کښ د ماښځه نه مینه د ماسپخین مونځ قضا راوړی - خو نیت به داسے کوی - چه څلور رکعته فرض د آخر ماسپخین قضا مونځ کوم ارم الخ - دادا په نیت کښ خاص تعین ضروری دے - او د قضا په نیت کښ اجمالی تعین هم کافی کیږی. نو په مذکوره نیت سره چه ئے څلور رکعته وکړه - که د دغه ورځ مونځ پے د ماسپخین فرض وُ - قضا راوګرځید - او که نه وُ فرض - نو په آخری قضا ماسپخین کښ وګڼید - او که قضائے په ذمه نه وُ - نو نفل ........ د دے طریقے په جواز کښ نه څه شک شبهه شته - او نه د چا اختلاف -

| د جمعې د خطبے مسئلے | **مسئله** :- کوم وقت چه امام د خطبے د پاره مسبر ته وخیژی |
|---|---|

کیږی - د هغه مخ ته دے موذن په ولاړے بانګ اووائی-

**مسئله** :- کوم وقت چه امام خطبے له راووت - بس بیا مونځ کول او خبرے اترے وغیره مکروه تحریمی دی - البته که څوک صاحب ترتیب وُ - او قضا مونځ ئے په ذمه باقی وُ - نو هغه له قضا مونځ کول جائز بلکه واجب دی - خو بیرته دے مناسب ځائے وکی.

**مسئله** :- که چا سنت موکده یا نفل کول - او په دے مینځ کښ خطبه شروع شوه - نو اَصح قول دادے - چه سنت خو دے پوره کی - سره د تخفیف قرائته او په نفل کښ دے سلام وګرځوی په دوه رکعته - لیکن که دریم رکعت ته

ـــــــــــــــ

[1] درور دوشامی ۱۲ [2] بحر رایق ۱۲ [3] شرح التنویر ۱۲

پاسیدلے وُ۔ بیا دے پورہ کی۔ مگر په دے مسئلہ کښں اختلاف شته۔ په باب دَ شمول دَ جماعت کښں په تفصیل سره ذکر شوی دی۔

**مسئله** :۔ دَ خطبے لوستے کیدو په وقت کښں حاضرینو له هغے ته غوږ اېخودل واجب دی۔ برابره خبره ده چه امام ته نژدے وی۔ اوکه نه۔ او کوم نعان چه په مانځه کښں حرام دے۔ هغه په دغه وقت کښں هم منعه دے۔ لکه خوړل۔ سکل خبرے اترے کول۔ او کوم فعل چه منافی دے دَ غوږ اېخودلو سره هغه کول تر دے پورے چه سلام اچول یا دسلام جواب ورکول۔ تسبیح لوستل۔ بل ته شرعی مسئله خودل وغیره وغیره هم منعه دی۔ هاں که خطیب دَ خطبے لوستلو په وقت کښں چاته شرعی مسئله وخوه نو خیر دے۔

**مسئله** :۔ کوم وقت چه په خطبه کښں صَلُّوْا عَلَيْهِ یا دَ نبی علیه السّلام نوم مبارک راشی۔ آوریدونکے دے درود شریف په ژبه نه وائی۔ بلکه په زړه کښں دے او وائی۔ دارنګ که دعائی جُملے په کښں راغلے۔ او آمین ویل ئے غوښتل۔ نو په ژبه نه بلکه په زړه کښں۔ او ددواړو خطبو په مینځ کښں چه خطیب کینی۔ په دغه وقت کښں بعض خلق لاس اوچت کی۔ دُعا کوی په ژبه دا مکروه تحریمی دی۔ برابره خبره ده چه دُعا کونکے خطیب وی او که آوریدونکے۔ البته که بے دَ لاس اوچتولو او بے دَ تلفظ کولو ئے په زړه کښں دُعا کوله۔ نو خیر دے کوے شی۔ خو دا دَ نبی علیه السلام او دَ صحابه رض نه منقول نه دی۔

**مسئله** :۔ که خطبه شروع شوه۔ او مثلاً ړوند سړے داروان وُ۔ په مخکښں ئے کوهے وُ۔ دَ لویدو خطره وه۔ نو بیل ئے دَ ضرورت په وجه په ژبه منعه کوے شی۔ دارنګ که دَ چا خوا ته لړم وُ۔ نو دَ ضرورت په مقام کښں دا جائز دی۔

**مسئله** :۔ په خطبه کښں داشیزونه مسنون دی:۔ خطبه په ممبر ویل۔ دَ دواړو قسمو بے اودسئ نه پاکولے۔ خطبه په ولاړے لوستل۔ دَ خطبے شروع کولو په وقت کښں په پټه اعوذ بالله ویل۔ بل خطبه قوم ته مخ کړے لوستل۔ دوه خطبے لوستل۔ دَ دواړو خطبو په مینځ کښں په قدر دَ درے تسبیح کیناستل۔ او کنړه زیاته وه نو دَ دے نه زیات کیناستل هم باک نه لری۔ خطبه ډیره نه اوګدول دَ طوال مفصّل دَ یو سورة دَ مقدار نه اوږدول ئے مکروه دی۔ او دَ مانځه

ئے شرح التنویر ۱۲ ئے درمختار ۱۲ ئے درمختار و شامی ۱۲ ئے عالمګیری و شامی ۱۲

نه کمه بکاردہ ۔ په خطبهٔ اولیٰ کښې دَدے مضامینو شته والے :۔ دَخدائے پاک حمد وثنا ۔ دَ توحید الٰهی او دَ رسالت نبوّی شهادت ۔ په نبی علیه السلام باندے درود ۔ وعظ و نصیحت ۔ دَ قرآن شریف یو سورة یا آیت ۔ په دویمه خطبه کښې دَ خطبهٔ اولیٰ په شان مذکوره مضامین ۔ خو په ځائے دَ وعظ دُعا دَپاره دَ مسلمانانو۔

**مسئله** :۔ په دویمه خطبه کښې دَ نبی علیه السلام دَ آل واصحاب او دَ ازواج مطهرات او خصوصاً دَ خلفاء راشدین رض او دَ باقی عشره مبشره او دَ حضرت حمزه رض او دَ حضرت عباس رض دَپاره دُعا کول مستحب دی ۔ او د بادشاهِ اسلام دَپاره هم دُعا جائزه ده ۔ خو دَ هغه غلط تعریف کول منع دی۔

**مسئله** :۔ که په نیت دَ خطبے ئے په وقت دَ خطبه کښې صرف اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ یا سُبْحَانَ اللّٰه اووے ۔ نو دَ خطبے رکن په دَغه سره هم ادا شه ۔ خو صرف په دومره قدر اکتفا کول خلاف سنت دی ۔ مکروه دی ۔ او صاحبینؒ وائی چه نه ۔ بلکه ذکر طویل ضروری دے ۔ کم نه کم په قدر دَ تشهّد واجب ۔

**مسئله** :۔ خطبه دے په عربئ ژبه وائی ۔ او په بله ژبه ئے ویل دَ سنت مؤکده نه خلاف دی ۔ لیکن که وئے وے نو جمعه پے صحیح کیږی ۔ ځکه چه دَ امامؒ صاحب نه ئے دَ جواز نقل شته ۔

| **مسئله** :۔ عوره داده چه په یو مقام کښې دَ جمع مونځ | دَ جمع دَ مانځه مسئلے |
|---|---|

تول په شریکه په یو جمات کښې کوی ۔ او که په مختلفو ځایونو کښې جمعه وکړے شوه نو هم جائز دی ۔

**مسئله** :۔ عوره داده چه کوم سړے دَ جمع خطبه ولولی ۔ امامت دَ جمع هم هغه وکی ۔ او که خطبه یو ولوسته ۔ او مخکښې مونځ بل وکه ۔ نو دا هم جائز دی ۔

**مسئله** :۔ که دَ جمع په مانځه کښې څوک دَ امام سره شامل شه په تشهد کښې یا په سجده سهوه کښې ۔ یا دَ سجده سهو نه پس په تشهد کښې نو دا مسبوق دے دَ جمعے مونځ دے پوره کی ۔ شاملیدل ئے صحیح دی ۔

---

ل فتاوی هندیه وشرح المنیه ۱۲ ۲ درمختار و شامی ۱۲ ۳ "سنیة الخطبة بلسان العربیة" دَ مولانا شبیر احمد صاحبؒ یوه رساله ده ۔ دَ دیوبندی علماء تصدیقات ورسره شامل دی ۔ په هغې کښې ئے دا مسئله مدلله ثابته کړیده ۔ دارنګ مولانا احمد حسن صاحب امروهی هم په دے مسئله کښې مکمله رساله لیکلے ۔ او مولوی عبدالحی صاحب پے هم پوره بحثونه کړیدی ۱۲ ۴ کبیری و شامی ۱۲ ۵ رد المحتار ۱۲ ۶ هدایه و شامی ۱۲

**مسئله**[1] :- څوک چه په نورو فرضو مو نځو نو کښې د سړو امامت کولے شی هغه دَ جُمعے امامت هم کولے شی۔ او څوک چه هغه نشی کولے۔ دا هم نه شی کولے۔ نو دَ مسافر او دَ مریض امامت صحیح دے۔ او دَ ښځے او دَ نا بالغ امامت صحیح نه دے۔

**مسئله**[2] :- که مریض مونځ دَ ماسپخین کاوُ۔ عُوره ورله داده چه امام دَ جمعے دَ فرض مانځه نه فارغ شی۔ هله دے کوی۔ او که مخکښې ئے وکه۔ نو هم جائِز دی۔

**مسئله**[3] :- که شرائط دَ وجوب ټول موجود وُ۔ او وُ په ښهر کښې۔ سره دَ دے نه ئے مونځ دَ ماسپخین وکه۔ پخوا دَ جمعے نه۔ او دَ جمعے مونځ ئے ونکه۔ نو دا حرام دی۔ او که مینه ئے دَ ماسپخین مونځ وکه۔ بیا پښیمانه شه۔ دَ جمعے دَ مانځه اراده ئے وکړه۔ نو که په جُمات کښې وُ۔ کوم وقت چه دَ جمعے مونځ دَ امام سره شروع کی۔ په شروع کولو سره به ئے دَ ماسپخین هغه فرض باطل شی۔ نفل به وګرځی۔ او که په کور کښې وُ۔ نو کوم وقت چه دکور دَ دروازے نه په اراده دَ جمعے اووت۔ په داسے حال کښې چه امام په مانځه کښې وُ۔ یا جماعت لا نه وُ ولاړ۔ نو فرض دَ ماسپخین ئے باطل شو۔ نو که پس دَ تلو نه ئے جمعه ونه مونده۔ یا بیا هسے راوګرځید۔ وس ئے دَ ماسپخین دَ مانځه اعاده واجبه ده۔ او ظاهر مذهب دا دے۔ چه دا حکم یعنے دَ جمعے په سعیٔ سره دَ ماسپخین فرض باطلیدل) عام دے په حق دَ معذور او غیر معذور دواړو کښې۔ نو که مسافر دَ ماسپخین مونځ وکه۔ بیا ئے مذکوره سعیٔ دَ جمعے وکړه۔ دَ ماسپخین فرض ئے باطل شو۔ نفل وګرځید۔

**مسئله**[4] :- معذور او مسافر او قیدیان که په مصر کښې وُو۔ او دی دَ جمعے په ورځ دَ ماسپخین مونځ اداکاوُ۔ نو دَ ماسپخین دَ مانځه جماعت دے نکوی مکروه تحریمی دی۔ بلکه ځان له دے وکی۔

| دَ اختر دَ مانځه مسئلے | دَ اختر[5] مونځ واجب دے۔ او کوم شرائط چه دَ جمعے دَ مانځه دَ |
|---|---|

وجوب او دَ صحت دَ پاره مخکښې بیان شوی دی۔ هغه دَ اختر دَ پاره هم دی۔ سوا دَ خطبے نه۔ دَ جمعے خطبه شرط ده۔ او دَ اختر خطبه شرط یعنے فرض نه ده۔ بلکه سنت ده۔ بل فرق دا دے چه دَ جمعے خطبه دَ مانځه نه مخکښې

---

[1] درر ۱۲ [2] درمختار ورد المحتار ۱۲ [3] بحر رائق وشامی ۱۲ [4] درمختار وشامی ۱۲ [5] هدایه و بحر رائق و در مختار ۱۲

ویلے کیږی - او دَ اختر خطبه دَ مانځه نه پس - لیکن آوریدل ئے ضروری دی - یعنے غوږ ایخودل ورته واجب دی - په شان دَ خطبے دَ جمعے -

**مسئله**[1] :- دَ دړوکی اختر په ورځ دا کارونه مسنون دی :- غسل کول مسواک وهل - ځیلے صفاجامے اغوستل چه په شریعت کښ مباح وی - نوے وی - او که اینځلے - او آلو که سپینے نه وی - خوشبو لګول - سحر وختی پاسیدل - که صدقه فطر ئے واجبه وه - نو عیدګاه ته دَ تللو نه مینه ئے اداکول - عیدګاه ته دَ تللو نه مینه څه خوږ شے خوړل - لکه چوارے وغیره - عیدګاه ته دَ وختنه تلل - دَ اختر مونځ په عیدګاه کښ کول - یعنے بلا عذره په جامع مسجد کښ نه کول - عیدګاه ته دَ تللو په وقت کښ پیاده تلل - او په حالت دَ واپسئ کښ که پیاده نه وُ - خیر دے - په کومه لاره چه عیدګاه ته تلی وی - په واپسئ کښ دَ هغے نه سوا په بله لاره تلل -

**مسئله**[2] :- مذکوره خبرے څه رنګ چه په واړه اختر کښ مسنون دی - دا رنګ په لوئ اختر کښ هم مسنون دی - خو دومره فرق دے - چه په واړه اختر کښ عیدګاه له دَ تللو په وقت کښ دے تکبیر په پټه وائی - او بل قول دا دے - چه په زوره - او دریم قول دا دے - چه تکبیر ویل په کښ نشته - او په لوئ اختر کښ په زوره ویل مسنون دی - اختلاف په کښ نشته - او په واړه اختر کښ دَ مانځه نه مینه څه خوړل مسنون دی - لکه چه ذکر شو - او په لوئے اختر کښ غوره دا ده چه دَ اختر دَ مانځه نه فراغت نه وی شوے - دَ هغے پورے دے څه نه خوری - او په لوئ اختر کښ صدقه فطر نشته - بلکه په غنیانو قربانی ده - پس دَ مانځه نه -

**مسئله**[3] :- کوم وقت چه نوُر دَ افق نه یوه نیزه اوچت شی - یعنے په نور کښ تیزی پیدا شی - دَ دغه وقت نه دَ اِسنوا پورے دَ اختر دَ مانځه وقت دے - پس کچرے دَ اختر مونځ دَ نور دَ یک نیزه بلندئ نه مخکښ وکړے شه - یا پس دَ اِسنوا نه - نو ادا نشه دا رنګ که په مانځه کښ دننه دَ اِسنوا وقت شه - نو هم نه اداکیږی -

**مسئله** :- دَ واړه اختر دَ مانځه طریقه دا ده چه مینه نیت وکی -

نَوَيْتُ اَنْ اُصَلِّيَ لِلّٰهِ تَعَالٰى رَكْعَتَيِ الْوَاجِبِ صَلٰوةِ عِيْدِ الْفِطْرِ مَعَ سِتِّ تَكْبِيْرَاتٍ وَاجِبَةٍ مُقْتَدِيًا بِهٰذَا الْاِمَامِ مُتَوَجِّهًا اِلٰى جِهَةِ الْكَعْبَةِ الشَّرِيْفَةِ - په نیت کښ دَ خاصو الفاظو ضرورت نشته - خو صحت

---

[1] بحر رائق و نور الایضاح ۱۲ [2] در مختار و شامی ۱۲ [3] در مختار و شامی ۱۲ [4] در مختار و شامی و بحر ۱۲

ضروري دے په زړه سره - او که نیت په بله ژبه کوی هم خیر دے - مثلاً په پښتو کښې دے وائی - نیت م کړے د زړه د اخلاصه - دوه رکعته واجب د دے ورځ اختر مونځ کن ادم - سره د شپږ و تکبیرونو په دے حاضر امام پسے - مخ م د کعبے شریفے په لور که - د نیت نه پس دے الله اکبر کی - لاسونه دے اوچت کی تر غوږونو - بیا دے نامه لاندے ونړی - او سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ دے آخر پورے ولولی - پس په دے پسے درے زایئ تکبیرونه دی - طریقه ئے داده - چه یو ځل الله اکبر اووائی - لاسونه ترغوږونو اوچت کی - بیائے پریږدی - بے د نړلونه - په دویم ځل بیا تکبیر وکی - لاسونه اوچت کی ترغوږونو - بیائے پریږدی نا نړلی - په دریم ځل بیا سره د تکبیره لاسونه غوږونو له ورسی - خو بیا دے نامه لاندے ونړی - د دے نه پس به امام اعوذ بالله بسم الله اووائی په پټه - بیا به الحمد او سورة په جهر سره لولی - او پس د رکوع سجودونه به په دویم رکعت کښې با قاعده الحمد او سورة په جهرسره ولولی - د دے نه پس به رکوع له د تلونه مخکښې بیا حسب مذکور درے زائد تکبیرونه کوی - خو دلته به د درے واړو تکبیرونو نه پس لاس زنګولی پریږدی - یعنے نړی به ئے نه - په څلورم ځل دے تکبیر اووائی - بے د لاس اوچتولونه - او رکوع له دے لاړ شی - حسب معمول دے مونځ پوره کی -

خلاصه[1] خبره دا شوه - چه امام او مقتدی دواړه به د هر زائد تکبیر سره لاسونه ترغوږونو اوچت کی - بیا به ئے پریږدی نا نړلی - خو د اول رکعت د دریم زائد تکبیر نه پس به ئے نړوی نه - بلکه نړی به ئے - وړوکی اختر ته عید الفطر وییلے شی - او لوئی اختر ته عید الاضحی - او عید الضحی - د لوئے اختر د مانځه هم دا طریقه ده - کومه چه بیان شوه خو د هغے په نیت کښې به د عید الفطر په ځائے عید الضحی وائی (یعنے دوه رکعته واجب د لوئے اختر مونځ کن ادم الخ)

**مسئله** :- د اختر په مانځه کښې د هر دوه زائد تکبیرونو په مینځ کښې چپ ودریدل پکار دی - ذکر مسنون په کښې نشته - او توقف دومره ساعت پکار دے چه په هغے کښې درے ځله تسبیح وییلے کیدے شی - او که ګڼه زیاته وه نو امام دے په توقف کښې مناسب انداز ته ګوری -

**مسئله** :- که په اول رکعت کښې د امام زائد تکبیرونه ویل هیر شو - بیائے

[1] یعنے دامام سره ۱۲ [2] عالمگیری و دروشامی ۱۲ [3] مراقی الفلاح و درمختار ۱۲ [4] درمختار ۱۲ [5] فتح القدیر و شامی

دفاتحې لوستلو په دوران کښې یادٙ فاتحې په ختمولو سره یاد شو- نو هغه له پکار دی چه ؤس تکبیرونه وکی- او قرأت بیا دٙ سره دا وکړ خوی- او که دٙ سورة فاتحه نه پس ئې سورة هم لوستے ؤ- پس دٙ هغې نه ئې یاد شو- نو په دے صورت کښې دے تکبیرونه وائی رکعت دے پوره کی-

**مسئله**[1]:- که په دویم رکعت کښې امام زائد تکبیرونه پریخودل- بیائې په رکوع کښې یاد شو- نو وس دے په رکوع کښې اووائی- بے دٙ لاس اوچتولو نه- او بل روایت دا دے چه قیام ته دے ورو ګرځی- تکبیرونه دے په کښې اووائی- دٙ قرأت اعاده دے نه کوی- او رکوع دے را وګرځوی- او بعض وائی چه نه دے په رکوع کښې تکبیر کوی نه دے ور ګرځی قیام ته- پاتے شوه دا خبره چه دٙ اختر په مانځه کښې دٙ سجدهٔ سهو څه حکم دے- نو دا مسئله په باب دٙ سجدهٔ سهو کښې بیان شوے ده-

**مسئله**[2]:- که څوک دٙ اختر په مانځه کښې دٙ امام سره دا سے وقت شامل شه- چه امام تکبیرونه کړی ؤ- قرأت ئې شروع کړے ؤ- نو دهٔ له پکار دی چه خپل زائد تکبیرونه وکی- بیا دٙ امام قرأت ته غوږ کیدی- او که څوک دا سے وقت راغی چه امام په رکوع کښې ؤ- نو که دٙده غالب ګمان ؤ- چه پس دتکبیرونو نه به څه دا رکوع او موصم نو دٙ نیت تړلو او دتکبیر تحریمه کولو نه پس دے په ولاړے ولاړے تکبیرونه اووائی- بیا دے په رکوع کښې شامل شی دٙ امام سره- او که غالب ګمان ئې دٙ رکوع دسولونه ؤ- نو تکبیرونه دے په ولاړے نه وائی- بلکه دٙ امام سره دے په رکوع کښې باقاعدهٔ شریک شی- او درے واړه تکبیرونه دے اووائی- په رکوع کښې خو بے دٙ لاس اوچتولو نه او که ده لا درے تکبیرونه نهٔ پوره کړی چه امام دٙ رکوع نه پورته شه- دے دٙ ورسره هم پورته شی- کوم تکبیرونه چه تے پاتے شو- هغه ورته معاف دی-

**مسئله**[3]:- که څوک دا سے وقت راورسید چه امام دٙ اول رکعت دٙ رکوع نه سر اوچت کړے ؤ- نو هغه له پکار دی چه باقاعده نیت دتړی- او شریک شی دٙامام سره- لیکن دا رکعت به دده په حق کښې موندلے نه حسابیږی- دے مسبوق دے- دا رکعت به دٙ امام دٙ سلام ګرځولو نه پس دا ګرځوی- او طریقه ئې بیان ده- په دے راتلونکی مسئله کښې-

**مسئله**[4]:- که چا دٙ امام سره صرف دویم رکعت موندلے ؤ- هغه به پس دٙامام

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] فتح القدیر و درمختار وشامی ۱۲ [3] درمختار ۱۲ [4] فتح القدیر و درمختار وشامی ۱۲

دَ سلام گرځولو نه پاسی - نو چه سورة فاتحه اوبل سورة ولولی - رکوع له دَ تللو نه مینځه به دری زائد تکبیرونه وکی - او مونځ به حسب معمول پوره کی - پکار خو داوه - چه مینه تکبیرونه وکی - دَ هغے نه پس فاتحه وغیره ولولی - لیکن دا حکم ونکړے شه - ځکه چه په دے صورت کښ به دَ دواړو رکعتونو تکبیرونه متوالی وکرځی - یعنی پے درپے - او دا دَ یو صحابی رض مذهب هم نه دے -

**مسٔله** :- که څوک دَ اختر په مانځه کښ دَ امام سره په قعده کښ شامل شه - نو لیس دَ امام دَ سلام گرځولو نه دے پاسی - دواړه رکعتونه دے سره دَ تکبیرونو با قاعده پوره کی - په اول رکعت کښ به تکبیرونه دَ الحمد نه اول وکی - او په دیٔم کښ دَ قرأت نه پس دَ رکوع نه مینه -

**مسٔله** :- که دَ اختر مونځ دَ چا نه وشو - نو دے ئے یوازے نشی کولے - ځکه چه دَ هغے دَ پاره جماعت شرط دے - که بل ځائے ئے دَ مونږ لو امید وُ - لاړ دِ شی - کنی نو څلور رکعته نفل دے وکی - مستحب دی - دا رنګ که سړی په امام پسے مونځ دَ اختر شروع کړے وُ - لیکن په څه وجه سره ئے مونځ مات شه - او امام فارغ شوے وُ نو دے دَ هغے قضا نه شی کولے - او قضا پے واجبه نه ده - البته که جماعت ئے مونده شه - نو ادا پے واجبه ده -

**مسٔله** :- که دَ عذر په وجه دَ اختر په اوله ورځ مونځ ادا نکړے شه - نو دَ واړه اختر مونځ په دویمه ورځ کیدے شی - او وقت ئے هغه دے - کوم چه مینه ذکر شوے -

**مسٔله** :- دَ واړه اختر مونځ دَ دویمے ورځے نه مؤخر کول - او دَ لوئے اختر مونځ دَ دریمے ورځے نه مؤخر کول جائز نه دی - مونځ نه کیږی - اګر که په عذر سره وی - البته دَ لوئ اختر مونځ دَ دولسم تاریخ پورے مؤخر کول بلا عذره هم جائز دی - خو سره دَ کراهته - او دَ وړوکی اختر مونځ که بلا عذره په اوله ورځ پریخودے شه - نو په دویمه ورځ هم جائز نه دے - دَ عذر مطلب دا دے چه مثلاً سخت باران وی - خلق دَ هغے په وجه جمع کیدے نه شی - یا تاریخ مشتبه وُ - شاهدانو پے شاهدی وکړه - پس دَ زوال نه - یا دَ زوال نه لږ مخکښ چه خلق نه شه را جمع کیدے - یائے دَ اختر مونځ په حالت دَ وریځ کښ وکه - بیا معلومه شوه چه مونځ خو په وقت دَ زوال کښ کړے شوے - وغیره - وغیره -

---

ك فتح القدیر و در مختار و شامی ۱۲ ك بحر رایق و در مختار ۱۲ ك در مختار و شامی ۱۲ ك بحر رایق و هندیه ۱۲

**مسئله** [1]:- که اتفاقاً په عیدګاه کښې دَ مانځه په وخت دَ چا اودس مات شه۔ او دَ دوباره اودس کولو په صورت کښې ئے دَ مونځ فوت کیدلو یره وه۔ یا اوداسه له تلے نه شه۔ نو تیمم کولے شی۔

**مسئله** [2]:- دَ اختر په ورځ دَ اختر دَ مانځه نه مخکښې نفل کول مکروه دی۔ برابره خبره ده چه په کور کښې وی۔ او که په عیدګاه کښې۔ دارنګ دَ اختر دَ مانځه نه پس په عیدګاه کښې نفل کول مکروه دی۔ هاں که کور وکی۔ نو بده نه ده۔ بلکه څلور [3] رکعته نفل کول غوره دی دَ څاښت۔

**مسئله** [4]:- دارنګ دَ اختر په ورځ دَ ښځے دَ پاره او دَ بل هغه چا دَ پاره چه دَ اختر مونځ پے واجب نه دے۔ نفل کول مکروه دی۔ دَ کومے پورے چه خلق فارغ شوے نه وی دَ اختر دَ مانځه نه۔

**مسئله** [5] څه رنګ چه دَ اختر دَ مانځه دَ پاره بانګ او اقامت نشته۔ دارنګ دَ خطبے دَ پارهٔ ئے هم بانګ مشروع نه دے۔ لهٰذا خطیب چه دَ مانځه نه پس دَ خطبے دَ پاره ممبر ته ختیجی۔ دَ خطبے شروع کولو نه مینه ورله کیناستل نه دی پکار۔

**مسئله** [6]:- په دواړو خطبو کښې دے ابتدا کوی دَ تکبیر نه۔ په لومړئ خطبهٔ اولیٰ کښې تکبیرونه نهه ځل وئیل مستحب دی۔ او په ثانیه کښې اوۀ ځله۔ دَ واړه اختر خطبه دَ صدقه فطر په احکامو مشتمله پکار ده۔ او دَ لوئ اختر خطبه دَ قربانئ او دَ تکبیراتِ تشریق په مسئلو۔

**دَ تکبیراتِ تشریق بیان** | تکبیرات [7] تشریق دا دی:- اَللهُ اَکْبَرُ اَللهُ اَکْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَکْبَرُ اَللهُ اَکْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ط

**فایده** :- دَ لوئے اختر دَ میاشتے اتم تاریخ ته یَوْمُ التَّرْوِیَة وئیلے شی۔ او نهم ته یَوْمِ عَرَفَة۔ او لسم یولسم دولسم ته اَیَّامِ نَحْر۔ او دَ دیارلسم دَ پاره څه خاص نوم مقرر نشته۔ خو دَ ایام تشریق آخری ورځ ده۔

**مسئله** [8]:- دَ امام صاحبؒ په نزد دَ یَوْمِ عَرَفه دَ سحر نه دَ لسم تاریخ تر دیګر لوتو پورے په هر هغه مقتدی باندے چه فرض مونځ اداکی په جماعت مستحبه سره۔ برابره خبره ده چه مقیم وی او که مسافر نر وی او که ښځه۔ او دارنګ په امام باندے

---

[1] قاضیخان ۱۲ [2] فتح القدیر و درمختار ۱۲ [3] په مجموعة الفتاویٰ کښې ئے راوړی دی چه فقهاؤ دَ اختر دَ ورځے څلور رکعته نفلو استحباب چه دکوم حدیث نه ثابت کړیدے هغه ضعیف دے البته دَ ابن ماجه دَ یو حدیث نه دَ دوه رکعته نفل ثبوت شته ۱۲ [4] درمختار و شامی ۱۲ [5] قاضیخان و شامی ۱۲ [6] درمختار و بحر ۱۲ [7] شامی ۱۲ [8] بحر الرائق و شامی ۱۲

خو هله که مقیم وُ په مصر کښې - واجب دی چه فرض نه پس یو ځل منځ کوره تکبیرونه په بلند آواز سره اووائی - البته که ښځه په جماعت کښې شریکه وه - نو هغه به ئے په پټه وائی اودَ صاحبینوؒ په نزد دَ یوم عرفه دَ سحرنه دَ دیارلسم تاریخ نور پریوتو پورے په هر مکلّف بانڼدے پس دَ فرض نه تکبیر ویل واجب دی - برابره خبره ده چه موږ ئے په جماعت سره کړے وی اوکه یوازے - امام وی اوکه مقتدی - مسافر وی اوکه مقیم - او فتویٰ دَ صاحبینوؒ په قول ده - او ددی قول معمول گرځیدلے دے -

**مسئله**[1] :- دَ فرض مانځهٔ نه فارغ کیدو پسے تکبیرونه ویل دی - نو که په فرض پسے متصل دَ جمات نه اووت - یائے په څه ذریعه اودس مات که - یائے قصداً خبرے وکړے - یا په هیره نو تکبیرونه ساقط شو -

**مسئله**[2] :- که دَ امام تکبیرونه ویل هیر شو - مقتدی دے دَ هغهٔ انتظار نه کوی - اودے وائی -

**مسئله**[3] :- په دے ورځو کښې که جمعه راغله - نو دَ جمعے دَ مانځهٔ نه پس هم ویل واجب دی - اودَ اختر دَ مانځهٔ نه پس په ویلو کښې اختلاف دے - چه واجب دی اوکه نه - لیکن ویل ئے غوره دی - اوکه په دے ورځو کښې دَ چا نه مونځ قضا شه - او بیائے قضا اوړه هم په دے ورځو کښې - نو دَ دغه قضا فرض نه پس هم ویل واجب دی - البته که ددے ورځو نه مینه تے مونځ قضا شوے وُ - او هغه ئے په دے ورځو کښې کاوُ - یا دَ پروسکني کال ددے ورځو قضا شوے مونځ ئے سکال په دے ورځو کښې قضا راوړ - نو په دے دواړو صورتونو کښې دَ دغه قضا فرض نه پس تکبیر ویل واجب نه دی - دارنګ که په دے ورځو کښې تے مونځ قضا شه - او هغه ئے ددے ورځو نه پس قضا راوړ - نو دَ هغے نه پس به هم واجب نه وی - او دَ جنازے په مانځه پسے ویل هم واجب نه دی -

---

[1] درمختار و شامی ۱۲ [2] درمختار و بحرالرائق ۱۲ [3] درمختار و شامی و بحرالرائق ۱۲

# الجنائز

کل نفس ذائقة الموت۔

یوُ طرف ته شیطان دے او نفس اَمّاره۔ بل طرف ته دَ دنیا محبّت او ظاهری زیب وزینت دی۔ حُمونږ په زړونو او په عقلونو دَ غفلت پردے خورے کړیدی۔ کنی نوښکاره خبره ده۔ چه دَ مرګ دَ پنجے نه خلاصون په هیڅ طریقه سره ممکن نه دے۔ مسلمان وی که کافر۔ فقیر وی۔ که امیر۔ صالح وی که فاسق۔ ښځه وی که نر۔ ټول په دے باب کښ برابر دی۔ بلکه انبیاء علیهم السلام ته هم مستثنیٰ نه شو۔ تردے پورے چه خاتم دَ مرسلانو سردار دَ دواړو جهانو حضرت محمّد مصطفیٰ صلعم هم دَ دے دنیا نه ناځے تشریف ووړو۔ دَ مرګ سلسله دَ ابتداء نه شروع شوے ده۔ او تر قیامته به روانه وی۔ دَ کُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ په موجب به هر متنفّس په خپله خپله نیټه مری۔ څه ردوکړ په کښ نه شی راتلے۔ نو معلومه شوه چه دا دنیا دَ استوګنے ځائے نه دے۔ بلکه دَ آزمائیش او دَ امتحان یو مقام دے۔ لکه چه خدائے پاک دَ مرګ او دَ ژوند دَ سلسلے قائمولو وجه په خپله څرګنده کړیده۔ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَیٰوةَ لِیَبْلُوَکُمْ اَیُّکُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ۵ نو بختور دے هغه څوک چه دَ خدائے پاک او دَ رسول په فرمان ئے عمل وکړه۔ دَ شریعت پابند او وسید۔ عمرے په عبادت کښ صرف کړه۔ دَ باطن تصفیه او دَ روح تجلیه ئے وکړه۔ او دَ حیٰوة ابدی نیک سامان ئے ځان له مهیا کړه۔ حُمونږ دَ ټولو اصلی وطن عالم آخرت دے۔ دنیا خو صرف مسافرخانه ده۔ هوښیارانو ئے مثال خودلے۔ چه دا یوُ ظاهری آراسته باغ دے۔ دوه دروازے ئے دی۔ یوه دَ ننوتو۔ بله دَ وتو۔ نو بنده په یوه دروازه راشی۔ سیل دکی۔ په بله ته وځی۔ عمر دَ سترګے په رپ کښ تیرشی۔

دو در دارد این باغ آراسته      درو بند ازاں هر دو بر خاسته

در آ از درِ باغ و بنگر تمام      ز دیگر درِ باغ بیرون خرام

او کوم وخت چه انسان دنیا ته راځی۔ نو دے ژاړی۔ او خپلوان ئے خاندی۔ خوشحالی کوی خو بیا عمُر دا سے تیر ول پکار دی چه کوم وخت دَ دے دنیا نه ځی چه دے خاندی او خپلوان وړ لیسے جاړی۔

یاد داری که وقت زادنِ تو — همه خندان بودند و تو نالان

آن چنان زی که وقت رفتنِ تو — همه نالان بوند و تو خندان

په حدیث شریف کښں دا غلی دی - چه مرګ دَ مؤمن دَپاره یوه خدائی ډالئی ده - دَ دے جملے مطلب دا دے - چه مرګ دَ مومن دَپاره دَ دنیا تکلیفونو نه دَ خلاصیدلو - او جنت ته دَ داخلیدلو - او دَ خپل ربّ جلّ دَ ملاقات یوه ذریعه ده - مرګ یو دویم پیدائش دے - تولّد ثانیه ورته ویلے شی - بنده دَ یو عالم نه بل عالم ته انتقال وکی - بزرګانو ئے مثال خوړے - چه دَ مور په ګیډه کښں دَ بچی دا خیال وی - چه دَ رحم نه سوا نوره دنیا نشته - لیکن چه دنیا ته راوځی - ورستو ورته پته ولګی - دا دَ تنګ دَ دنیا و سیدونکو ته غالباً دا نه وی معلومه چه دَ عالم دنیا نه سوا بل عالم هم شته - لیکن چه مړ شی نو هغه ئے تولّد ثانیه دے - ګُلی تعلقات ئے دَ عالم برزخ او عالم ارواح سره دا بسته شی - بیا ورته دا دنیا داسے ښکاری - لکه دَ دنیا په مقابله کښں دَ مور رحم - بیا به دَ خدائے پاک نه سوا هر شے فنا شی - بیا به حشر کیږی - او نشر - نو دَ ارواح تعلق به دوباره دَ ابدانو سره راشی - نو هغه عالم آخرت دے - بیا به دَ هغے په مقابله کښں عالم برزخ داسے ښکاری - لکه دَ عالم برزخ په مقابله کښں چه عالم دنیا وُ - خدائے پاک دے په مونږ باندے دا ټولے مرحلے په آسانئ سره طے کی - او خپل ږ نه دے ډیر ډیر راضی شی - آمین -

| دزنکدن بیان | کوم وقت چه مسلمان دَ دنیا نه رحلت کوی - سنت طریقه دا ده - چه |
|---|---|

په حالت دَ نزع کښں دَ هغه مخ بنی اړخ ته قبلے جانب ته وګرځولے شی - او ځینے عالمان وائی چه ستونی سنغ دے په دے شان سره څملوی - چه پښے ئے راشی قبلے ته - او سر دے ورله لږ اوچت کی - چه مخ ئے قبلے ته شی - آسمان ته نه وی - لیکن به هر حال که په اړولو راړولو کښں ئے تکلیف وُ - نو په خپل حالت دے پریږدی - بیا مذکوره طریقے ته ضرورت نشته - او کوم وخت چه ئے ساه ختلل زر زر شروع کړه او پښے ئے سستے شوے - دَ ودریدو نه اووتے - او پوزه ئے کږه شوه - او دواړه طرف ته ئے لویکنده[۳] کینا سته - بس دا علامت دَ زنکدن دے - تلقین دے ورته شروع کی - دَ تلقین طریقه دا ده - چه دَ هغه دَ خنګه په مناسب آواز سره لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ لولی - دَ

[۱] درمختار و شامی ۱۲ [۳] در مختار و بحر رائق ۱۲ [۳] دَ غوږ دَ خنګه دَ کوم اړدکی نه چه ګیره شروع کیږی - دا ځائے دلویکنده نه مراد دَ هغے نه برنے جوړ ځائے دے - په یوه اصطلاح دے ته هم دیلے شی - او په اصل کښں دَ ګکرئ آخری برخے حصے ته وائی - ۱۲ منه

پاره دَ دے چه دَ هغه ورته هم فکر شی۔ او وے لولی۔ لیکن هغه ته دے نه وائی۔ چه کلمه اووایه۔ دَ غه وخت دَ بیر دَ سختئ دے۔ داسے نه چه دَ خولے نه ئے نور څه اوځی۔ او دَ تلقین نه غرض دا دے۔ چه دَ مړکیدونکی آخری خبره په دنیا کښ کلمهٔ شهادت پاتے شی۔ دا غرض نه دے چه عینِ دَ مرګه پورے ئے کلمه جاری وی په ژبه۔ نو که هغه یو وار کلمه اداکه۔ بس تلقین کونکے دے چپ شی۔ غرض حاصل شه۔ هاں که دَ کلمے وئیلو نه ورستوئے څه دنیاوی خبره وکړه۔ بیا دے ورته تلقین وکی۔ چه په آخر کښ ئے دوباره ولولی۔ دَ سورۃ یٰسٓ په لوستو سره دَ نزع دَ سختئ آسانیږی۔ غوره دا ده چه دَ مړکیدونکی دَ خنګه ولوستے شی۔ او دا رنګ حکم دے دَ سورۃ رعد۔ او خدائے دے نکړی که دَ مړکیدونکی دَ خولے نه په نزع کښ کفر خبره اووته۔ نو مونږ به وایو چه دَ نزع دَ سختئ په وجه ئے عقل په ځائے نه دے۔ او چا چه عقل په ځائے نه وی۔ او څه داسے خبره ئے سرزد شی۔ هغه معاف وی۔ نو دا هم معاف ده۔ خدائے دے اوبخی۔

**مسئله**:۔ دَ ساه تلو نه بعد متوفی له اندامونه برابر کول پکار دی۔ سترګے دے ورله پټے کی۔ زنه دے ورله وتړی۔ او دواړو خپو ګوتے دے کوتے۔ ورله هم یو ځائے کول پکار دی۔ چه خپے ئے کږے وږے لاړے نه شی۔ او سترګے وغیره چه ورله بندے وی۔ نو په قلاره قلاره۔ او څوک چه ورله بندے وی هغه له په دغه وخت کښ دا دعا وئیل پکار دی بِسْمِ اللّٰهِ وَ عَلٰی مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ۔ او دَ ساه ختو نه بعد چه میت له دَ کوم پورے غسل نه وی ورکړے شوے۔ قرآن شریف لوستل ورته مکروه دی۔ لیکن اختلاف په کښ شته۔ او په بعض کتابونو کښ ئے راوړی دی۔ چه په میت که څه داسے ډیر وکے غوړیدلے وی۔ چه بدن ئے پټول پټ وی۔ یا ئے قرآن شریف بیرته لوستے کیده۔ یا نژدے خوب پټه۔ نو بیا ئے ئی چه مکروه نه وی۔ دَ ساه ختو نه پس دے دَ میت دَ څنګه دعودیا دَ لبان وغیره خوشبو لوګے وکی۔ او که په چا غسل دَ جنابت وی۔ نو دَ میت دَ څنګه دے نه حصاریږی۔ ودے ځی۔ دا رنګ کومه ښځه چه په حالت دَ حیض یا په حالت دَ نفاس کښ وی هغے له هم هغله حصاریدل نه دی پکار۔ لرے دے شی۔ او دَ میت په غسل کفن وغیره کښ چه څومره جلدی کیدے شی۔ نو غوره ده

دَ مړی لمبولو مسئلے

**مسئله**:۔ مستحبه خبره دا ده چه میت له غسل په یو

---

[1] فتاوی هندیه وشامی و درمختار ۱۲ [2] په دے مقام کښ ما ته یو عجیب اتفاق پیښ شوے وو۔ مناسب دی چه دے لیکم۔ هغه دا دے چه کوم وخت ما دا کتاب یو حد ته ورساؤ۔ اراده مِ وکړه چه دَ دے کتاب مطالعه دَ سره په جوړ نظر سره یو ځل بیا وکم۔ نو مطالعه مِ شروع کړه څه ورځے پس دے باب ته را ورسیدم۔ دَ جمع ورځ وه۔ (دیباچه وراندې وګوره)

داسې ځای کښې ورکوي چې دَ غاسل او دَ بل چا دَ مدد کولو نه سوا بل څوک نه ایني۔

**مسئله**[۱] :- په کومه تخته چې مړی لمبول غواړي۔ مینه دې اول نه دَ عود یا دَ لوبان وغیره لوګی وکړي۔ یو ځل یا درې ځله یا پنځه یا اووه ځله دې تې چاپېره وګرځوي۔ بیا دې پې مړی څملوي۔ جامې دې تې اوباسي۔ خو بالکل دې لغړوي نه۔ بلکه څه ټوکې دې پې واچوي۔ دَ نامه نه دَ زنګانه پورې۔ دَ پاره ددې چې عورت ئې پټ وي۔ البته[۲] که میت بچی وي۔ نو بیا دومره حصې پټولو ته هم ضرورت نشته۔

**مسئله**[۳] :- جامې دَ مرګ نه پس سمدستي ایستل غوره دي۔ دَ پاره دَ دې چې دَ ګرمئ په سبب ئې په بدن کښې ورتغیر رانشي۔

**مسئله**[۴] :- دَ مړي لمبولو طریقه داده چې مینه ورله استنجا وکړي۔ خو دَ هغه عورت ته دې ګوري نه۔ او نه دې پې لغړ لاس لګوي۔ بلکه مینه دې ځوړه په لاس کړي او کوم ټوکې چې په میت باندې دَ نامه نه دَ زنګانه پورې دې۔ په هغې کښې دې په کښې ورله استنجا وکړي۔ بیا دې ورله چار اندام وکړي۔ خو په دې چار اندام کښې ورله اول دواړه لاسونه دَ بند دست (مړوند) پورې اینځل او خولې او پوزې ته ئې اوبه اچول نشته۔ بلکه مینه ورله مخ اینځل دي۔ بیا لاسونه سره دَ څنګلو۔ بیا دَ سر مسحه۔ بیا دواړه پښې اینځل۔ او که غاسل دَ خپلې ګوتې نه ځیړه وغیره تاو کړه۔ او هغه ئې مینه راښکوله دَ مړي په غاښونو او په ورت۔ او د اړنګ په سپیڅلو کښې نو غوره ده۔ البته که مړی جنب وي۔ یا ښځه وه په حالت دَ حیض یا دَ نفاس کښې نو په دې صورت کښې بعضې عالمان وائي چې داسې کول ورله واجب دي۔ دَ چار اندام دَ فراغت نه بعد دې ورله سر او ږیره وُاینځي۔ په ګل خطمي سره۔ کنې نو په بل داسې شي سره چې په هغې صفائي راځي لکه صابون وغیره۔ لیکن دا هله که دَ میت و یخته وي۔ کنې نو نه۔ بیا دِ میت څملوي په ګڅ اړخ۔ او په کومو اوبو کښې چې دَ بېرې پاڼې ایشولې شوې وي۔ نیم ګرم اوبه دې پې دَ سر نه دَ ښپو پورې درې ځله واچوي چې وُرسي ګڅ اړخ ته۔ بیا دې میت په ښۍ ړخ پرې باسي۔ او اوبه دې پې دغه شان درې ځله دَ سر نه دَ ښپو پورې واچوي۔ چې ورسي

(پاتې حاشیه دَ دوستي څخه) دد دې خو ۱۳۶۹ه اتم تاریخ وُ۔ په بوګل کښې دَ خپلو اوسیدو په کمره کښې ناست وم۔ ټیلیفون راته په کمره کښې لګیدلې وُ۔ ددې باب دویمه مسئله مې شروع کړه۔ نو فوراً دَ سلاروزونه ماته ټیلیفون وشه چې نن سټا مور ددنیاې فاني نه رحلت کړې دې۔ نو انا لله وانا الیه راجعون مې اووې۔ دَ مصیبت او دَ غم یو غر را باندې راو غورزیدو۔ دَ رنځ والم څه انتها نه وه۔ لیکن دَ رضا بالقضاء په روماله مې او ښې وچې کړې۔ او دَ صبرا جرمې خوښ کړه۔ خداوند پاک دې مرحومې له په جنت الفردوس کښې ځای ورکي۔ ورحمة الله علیها (آمین)۔

له عالمګیري ۱۲ ۲ه شامي ۱۲ ۳ه بحرالرائق ۱۲ ۴ه فتاوی هندیه ودرمختار ورد المحتار ۱۲

منې اوبخه ته ـ بیا دے غاسل ولګی ـ میت له دے خپله سهاره ورکی ـ کیږ نه وی ـ دَ هغه
په کیږه دے په قلاره قلاره لاس راکاږی ـ که نجاست ئے اووت ـ پاک دے کی ـ وُدے
اینجئ ـ په دے سره ئے په اودس او غسل کښ نقصان نه راځی ـ دَدے نه بعد دے
بیا په کسه پړه څملوی ـ او په کومو اوبو کښ چه کافور اچولی شوی وی ـ هغه
دے پے درے ځله واچوی ـ دَ سرنه دَ خپو پورے ـ بس غسل ئے وشه ـ بدن دے
ورله په څه زړوکی وچ کی ـ کفن دے ورکی ـ او که اوبه ګرمے نه وے ـ یا صابون یا
خوشبو نو خیر دے ـ دضرورت په وقت هر څنګ چه آسانه وی ـ غسل دے ورکی
دغسل کومه طریقه چه بیان شوه ـ دا سنت ده ـ او که په دے طریقه ئے پے درے
ځله اوبه وانه چولے ـ بلکه صرف یو ځل ئے پے اوبه واچولے او ټول بدن نه وُرسیدے
او بهیدے ـ نو فرض دَ غسل په دے سره هم ادا کیږی ـ

مسئله[1] :- که په اوبو کښ دَ بیرے پانړے نه وے ایشولے شوے ـ نو دا ساده
نیم ګرم اوبه هم کافی دی ـ او په ډیرو تودو اوبو دے په هیڅ حالت کښ نه لمبوی ـ

مسئله[2] :- مړی له ویخته خریل ـ پریکول ـ منګزول مکروه تحریمی دی ـ
دا رنګ نوکونه پریکول ورله هم منعه دی ـ البته که نوک مات وَ نو بیا بله خبره ده
که بالفرض ویخته ئے ورله وا غستنه ـ یا نوکونه ـ نو په کفن کښ دے ورسره کیږدی ـ

مسئله[3] :- که غاسل یا دَ هغه مددګار دَ میت په بدن کښ څه نقص او
عیب ولیدے ـ دَ هغے بیان دے چاته نه کوی ـ او خبروی دے څوک نه ـ او خدا نخواسته
که دَ مخ کونه ئے ورانه شوه ـ یا تک تور شه ـ مثلاً ـ نو دا حال دے هم چاته نه وائی
البته که ښکاره په ښکاره ئے څه ګناه کاؤ ـ مثلاً شرابی وَ ـ یا زناکار یا بیلمازه
یا به ئے په دین کښ ګډے وډے ویلے ـ نو بیا دَ هغه حال خلقو ته بیانول ښه دی ـ
دَپاره دَ عبرت ـ او که په میت کښ ئے څه عجیبه خبره دَ خیر ولیده ـ مثلاً مخ ئے
روښانه شه ـ یا موسکے شه ـ نو دَدے حال اظهار بل ته ښه دے ـ دَپاره
دَ رغبت ـ

مسئله[4] :- غوره داده چه په نسب کښ مړی ته څوک نیږدے وی ـ
غسل ورله هغه ورکی ـ کنی نو بیا چه څوک دینداره او نیک کردار وی هغه ـ

مسئله :- که ښځه مړه شوه ـ نو خاوند له نه دَ هغے لمبول جائز دی ـ نه

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] درمختار ورد المحتار وبحر ۱۲ [3] شامی ۱۲ [4] درمختار وشامی ۱۲

ورله لاس ورووړل - وجه داده چه دَ ښځې په مرګ سره دَ دواړو نکاحي تعلق ختم شه - پیوند ئے وشو کیدے - لیکن کتل ورته جائز دی - او که خاوند مړ شه - نو ښځه ئے لمبولے شي - وجه داده چه دخاوند په مرګ سره دَ نکاح تعلق فوراً نه ختمیږي - عدت دوفات به تیروی - هله به ختمیږي البته که خاوند په خپل ژوند انه کښې په بائن طلاق سره طلاقه کړے وه - یا په درے طلاقه - نو اګر که عدت دَ طلاق ئے نه وي ختم شوے داوړله غسل نه شي ورکولے - هاں که طلاق رجعي وُ - نو بیا په عدت کښې دننه دننه ورکولے شي - غرض دادے چه دنکاح تعلق که ئے باقي وُ - نو غسل ورکولے شي - که نه نو نه -

**مسئله** :- سړي له به غسل سړے ورکوي - او ښځے له ښځه - البته خاوند له غسل خپله ښځه هم ورکولے شي لکه چه بیان شو - نو که سړے مړ شه - او بل سړے وُنه بلکه نولے ښځے وے - نو دَ بي بي نه علاوه ورله بله ښځه غسل نه شي ورکولے - او که بي بي ئے هم نه وه - نو وس دوه خبرے دی - که څوک ښځه ئے رشته داره وه - او محرمه هغه به ورله تیمم وکی - او که داسے رشته داره ئے هم نه وه موجوده - بله ښځه به ورله تیمم وکی - خو په لغړ لاسونو نه - بلکه بینه به خپلو لاسونو نه کڅوړے واچوی هله - ځکه چه اجنبي سړي له دادنګ لاس وروړل دَ ښځے دَپاره جائز نه دی - او که محرمه وه نو بیا کڅوړے ته حاجت نشته خو دا منکوره بیان هله دَ کړے هلته نه مسلمان سړے موجود وُ - نه کافر - او نه نابالغه جینۍ او که څوک ذمي کافر موجود وُ - یا نابالغه جینۍ موجوده وه - غسل ئے ورکولے شه - او داحد دَ شهوت ته نه وه رسیدلے نو ښځے به ورته طریقه دَ غسل وخئي - هغه به ورله ورکی -

**مسئله** :- که ښځه مړه شوه او بله ښځه وه نه بلکه ټول سړي وُو - نو که خپل محرم ئے څوک وُ - هغه به ورله تیمم وکی بے دستانو - او که نه وُ - بل سړے به ورله کڅوړه په لاس تیمم وکی - لیکن لاسونو ته به ئے کوري نه - بلکه سترګے به پټے کی - البته که خاوند ورله تیمم کاوُ - نو سترګو پټولو ته ضرورت نشته - ځکه چه ده له هغې ته کتل جائز دی - خو دا بیان هله دے - که دغلته نه مسلمانه ښځه وه نه کافره - او نه څوک داسے نابالغ هلک وُ - چه حد دَ شهوت ته نه وُ رسیدلے - او غسل ئے ورکولے شه - او که داسے نابالغ هلک موجود وُ - یا ذمیه ښځه موجوده وه - نو دَ سړو دَ هدایت مطابق دے ورله غسل ورکی -

---

[1] قاضیخان وشامی ۱۲ [2] قاضیخان وشامی ۱۲

مسئله :- که میت نابالغ بچے وي. نو که نجه ورله غسل ورکوي - او که سړے څه قید نشته.

مسئله :- جنب له او حائضے ښځے له اوکومه ښځه چه په حالت دَ نفاس کښې وي - هغې له مړے لمبول مکروه او منعه دي.

مسئله :- که دَ مړي صرف سر او موندے شه - غسل به ورله نه ورکیږي - دغه شان به دفن کړے شي - او که بدن ئے اوموندے شه دَ نیم نه زیات - نو که سر ورسره وي - او که نه غسل ئے ضروري دے - او که دَ نیمے نه کم وي نو غسل ئے نشته - برابره خبره ده چه سر ورسره وي او که نه - او که نیم بدن او موندے شه - نو که سر ورسره وي - غسل ئے شته کنې نو نه.

مسئله :- که لاش او موندے شه - او معلومیده نه چه دَ مسلمان دے - که دَ کافر - نو که دا په دارالاسلام کښې وي - یعنې دَ مسلمانانو په ځائے کښې نو غسل به ورله ورکړے شي - کنې نو نه.

مسئله :- که دَ مسلمان څوک کافر نسبي وي - او هغه مړ شه - نو نعش دے دَ هغه هم مذهب ته پریدي - او که هم مذهب ئے نه وي - یا وي خو نه ئے اغستے - بیا دا مسلمان دَ مجبورئ په وجه دغه کافر نسبي له غسل ورکولے شي - خو غسل دے په مسنونه طریقه نه ورکوي - یعنې اودس ورله کول او سر ورله صفاکول نشته - کافر دے پے هم نه لګوي - خو دا سے دے ولمبوي لکه سړے چه پلیت زړوکے اینجئ - بیا دے په څه ټوکی کښې ونغاړي - په یو وغل کښې دے پے خاورے واړ وي - لیس -

مسئله :- که دَ مسلمانانو لاشونه دَ کافرانو دَ لاشونو سره یو ځائے شو - او په هیڅ علامت سره فرق نه شه کیدے - نو غسل به ټولو له ورکیږي - یا تے شه موخ دَ جنازے - نو که لاشونه دَ مسلمانانو زیات وو - دَ کافرانو کم وو - موخ به په ټولو وکړے شي - خو په دُعا کښې به نیت کوي صرف دَ مسلمانانو - او که دواړه لاشونه برابر وو - یا دَ مسلمانانو لاشونه کم وو - په دے دواړو صورتو نو کښې به ورله غسل او کفن خو ورکړے شي - لیکن په جنازے کولو کښې ئے اختلاف دے - او په دے خبره کښې هم اختلاف دے - چه دَ دوئ دفنه ول دَ مسلمانانو په مقبره کښې پکاردي او که نه

مسئله :- خدا نخواسته که څوک مرتد شه - یعنې مینه مسلمان وي - بیا د اسلام

له بحر و شرح المنیه ۱۲ که رد المحتار ۱۲ ته بحر الرائق ۱۲ که البدائع والصنائع ۱۲ ه بحر عینی و درمختار و شامی ۱۲
له شامی ۱۲ که بحر رائق ۱۲

نه وکړ شي - او هغه مړ شه - نو نه ورله غسل شته - نه کفن - او نه ئې نعش هم مذهب له ورکول - خو دغه شان دے لکه پیسے پو ډوغل ته وغورزوی - خاورے دے پے واړوی - بس۔

**مسئله** :- که د اوبو نه موندو په وجه ئې میت له د غسل په ځائے تیمم ورکړے ؤ - او جنازه ئې کړے وه - بیائے پخوا د دفنه ولو نه اوبه اوموندے - وس دے ورله غسل ورکی - او جنازه دے پے دوباره وکی - او بل روایت دادے چه غسل دے ورکړے شي - او د مانځه اعادے ته ضرورت نشته۔

**مسئله** :- که په دریاب وغیره کښ څوک ډوب شه - او مړ شه - نو پس د راویستلو نه ورله غسل ورکول ضروری دی - ځکه چه میت له غسل ورکول فرض دی - په ژوندو باندے - هاں که د راویستلو په وقت کښ ئې هغه له په نیت د غسل حرکت ورکه - غسل ئې وشه - دارنګه که په میت باندے باران وشه - یا په بل څه ذریعه نعش ټول لوند خوشت شه - نو هم ورله غسل ورکول ضروری دی۔

**مسئله** :- کوم بچے چه د موره مړ پیدا شوے وی - او د پیدائیش په وقت کښ ئې د ژوند هیڅ علامت نه وی ښکاره شوے - نو غسل ورله شته - او مسنون کفن ئې نشته - خو په څه ټوکی کښ دے ونغاړی دفن دے کی - مونځ د جنازے ئې هم نشته - او نوم ایخودل ورله پکار دی۔

**مسئله** :- که د پیدائش په وقت کښ د سر راونو پورے بچے ژوندے ؤ خو بیا فوراً مړ شه - نو د هغه حکم داسے دے - لکه د مړ پیدا شوی - نو میراث به نه وړی - او مونځ د جنازے ئے هم نشته - البته غسل دے ورکی - او که د بدن د اکثرے حصے راوتو پورے ژوندے ؤ - پس د هغے نه مړ شه - بیا به داسے کړے شی - لکه ژوندے پیدا شوے - که د سر د غاړے پیدا شوے وی - نو د اکثر حد ئې د سینې پورے دے - او که د خپو د غاړے پیدا شوے وی - یعنے پابل وی - نو د اکثر حد ئې نامه پورے دے - نو که د اکثر حصے راوتو پورے باقاعده ژوندے ؤ - بیا مړ شه وارث او مورث به کرځی - او غسل - کفن - مونځ د جنازے ورله باقاعده شته۔

**مسئله** :- که حمل او غورزید او څه اندام ئې نه ؤ رغ شوے - نه ئې غسل شته نه کفن - خو دغه شان دے په څه ټوکی کښ نغختلے په ډوغل کښ ښخ کی - بس - او

ے درمختار وشامی ۱۲ ے بحرالرائق و درمختار ۱۲ ے شرح التنویر وشامی ۱۲ ے درمختار وشامی ۱۲ ے ردالمحتار ۱۲

کہ څہ لاس پښے وغیرہ ئے رغښوی وَ ۔ نو نوم دے ورلہ کیږی ۔ غسل دے ورکی ۔ او پہ څہ ټوکی کښں دے نغختلے خ کی ۔ یعنی حکم ئے داسے دے ۔ لکہ دَ مړی پیدا شوی ۔

**فایدہ** :۔ کہ چا حاملہ ښځہ پہ کیږہ او وهلہ ۔ او دَ وهلو پہ سبب ئے حمل او غورزید نو د غہ حمل بہ وارث او مورث کرځی ۔ کہ مثلاً داسے صورت وُ ۔ چہ دا حادثہ د د غہ ښځے دَ خاوند دَ مرګ نہ پس وشوہ ۔

دکفن مسئلے | مړی لہ غسل ورکول پہ ژوند ویالو ئے فرض کفایہ دی ۔ دا رنګ کفن ورکول ۔ او مونځ دَ جنازے ۔

**مسئلہ**[1] :۔ دَ سړی دَپارہ مسنونہ کفن درے زړوکی دی ۔ یو ازار ۔ بل قمیص ۔ بلہ لفافہ ۔ ازار دَ سرنہ دَ خپو پورے ۔ قمیص دَ مړیٔ نہ دَ قدم پورے ۔ لیکن نہ پکښں تړخکی شتہ ۔ نہ لسنوړی ۔ خو برہ دے دومرہ پریکی چہ دَ سر دَ غاړے وا غوستو شی ۔ او لفافہ دَ ازار نہ اوږد ۔ دَ پارہ دَ دے چہ میت پکښں ونغختے شی ۔ او دَ سرنہ برہ او دَ خپونہ لاندے وتړلے شی ۔

دکفنولو طریقہ ئے دادہ ۔ چہ مینہ دے پہ کټ باندے لفافہ او غوړہ وی ۔ او دَ لفافے دَپاسہ ازار ۔ دَ ازار دَ پاسہ قمیص نیمہ حصہ ۔ او بلہ نیمہ حصہ بہ ئے را ټولہ کړے سرتہ کیږی ۔ نو چہ میت پس دَ غسل نہ پہ څہ زړوکی وچ کی ۔ دَ تختے نہ دے پہ قلارہ کټ تہ را اوچت کی ۔ نو دَ قمیص هغہ ټولہ کړے نیمہ حصہ دے پے دَ پاسہ را دلی ۔ برابر دے کی پے ۔ او کوم نہ بند چہ ئے پے دَ سترِ عورت دَ پارہ بیخے وُ ۔ هغہ دے نے او باسی بیا دے پے دَ ازار کښتہ غاړہ را واړوی ۔ بیا بښئ غاړہ ۔ دَ پارہ دَ دے چہ ښیٔ غاړہ ئے دَ کیسے دَ پاسہ راشی ۔ بیا دے پے دَ لفافے دواړہ جانبہ راواړہ وی ۔ هم دا رنګے اول کسہ غاړہ ۔ بیا ښئ ۔

**مسئلہ**[2] :۔ دَ ښځے دَ پارہ مسنونہ کفن پنځہ زړوکی دے ۔ درے دَ سړو هغہ څلورم سینہ بند ۔ لاندے باندے دَ سینے نہ دَ نامہ پورے ۔ خو غورہ دادہ چہ دَ ورنو نو پورے وی ۔ پنځم خمار ۔ یعنی دَ سر چبو ټکے درے ګزہ اوږد ۔ پہ شرعی ګز سرہ ۔ او دَ کفنولو طریقہ ئے دادہ ۔ چہ لاندے لفافہ او غوړولے شی ۔ دَ هغے دَ پاسہ ازار او دَ ازار دَ پاسہ دَ قمیص نیمہ حصہ ۔ نو مینہ دے ورتہ قمیص وا غوندوی لکہ چہ مخکښں ذکر شو ۔ او دَ سر و ینتہ دے دوہ حصے کی ۔ د قمیص دَ پاسہ

---

[1] شامی ۱۲ [2] شامی وشرح التنویر ۱۲ [3] درمختار ۱۲ [4] شامی و درمختار و بحر ۱۲

دے ورلہ پہ سینہ واچوی - یوہ حصہ ښی جانب تہ - بلہ کیڼ جانب تہ - بیا دے پچپ ټکے د ښځے پہ مخ اوپہ و ویښتو او غوړوی - خوتړی دے نہ - اونہ دے نغاړی - بیا دے پہ ترتیب سرہ د ازار دواړہ جانبہ داو ... مینہ کیڼ جانب - بیا ښی - بیا لفافہ دا ر ټکے - او سینہ بند کہ د چپ ټکی نہ پس د ازار نہ مینہ تړی - نو هم جایزہ دہ - اوکہ د ټولو کفنونو د پاسہ پہ سینہ تړی هم جایزہ دہ۔

**مسئلہ** :- پہ څہ ریښہ دے لفافہ د سر نہ برہ او د ښپو نہ ښکتہ وتړی اود ملا پہ برابر دے هم پہ ریښہ وتړی - د پارہ د دے چہ پہ لارے کښں څرتہ کفن کھلاؤ نہ شی -

**مسئلہ** :- کوم وقت چہ میت لہ کفن ورکوی - مینہ دے کفن تہ د عود وغیرہ خوشبو لوګے وکی - درے یا پنځہ یا اوو ځلہ -

**مسئلہ** :- مړی تہ چہ قمیص واغوندوی - بیا دے ورلہ پہ سر باندے عطر ولګوی - یا کافور - اوکہ نارینہ وی - ږیرہ ئے دہ - نو پہ ږیرہ هم - او کافور دے ولګوی د هغہ د سجدے پہ اندامونو - یعنے پہ وچولی - اوپہ پوزہ - او پہ دواړو منګلو - پہ دواړو زنګنونو - پہ دواړو وتو مونو - او پہ کفن باندے زعفران یا عطر وغیرہ لګول د جهالت خبرہ دہ - څو مرہ چہ پہ شریعت کښں منقول دی - د هغے نہ دے زیاتے نہ کوی -

**مسئلہ** :- کہ میت نابالغ وی - او نزدے وی ځوانئ تہ - نو پہ کفن کښں د هغہ حکم پہ شان د بالغ دے -

**مسئلہ** :- کہ میت ډیر وړوکے وی - چہ ځوانئ تہ هم نہ وی نزدے شوے نو ډیرہ غورہ خو دا دہ چہ کفن ورلہ پہ شان د بالغ ورکی - لیکن کہ هلک لہ ئے دوہ ورکړہ - ازار او څادر - او جینئ لہ درے - بیا هم ښہ دہ - اوکہ هلک لہ ئے صرف یو ورکہ - او جینئ لہ دوہ - یعنے ازار او څادر - نو دا هم جایز دی -

**مسئلہ** :- د کفن د پارہ سپین تارین ټوکے غورہ دے - نوے وی اوکہ ایښځلے - او د ورئ او د ویښتو او د څرمنے کفن مکروہ دے - او د ښځے د پارہ ریښمین او مزعفر او معصفر هم جایز دے - خو د سړو د پارہ مکروہ دی -

---

لہ شامی ۱۲ ؎ شرح البدایہ ۱۲ ؎ درمختار وشامی ۱۲ ؎ عالمگیری ۱۲ ؎ شامی ۱۲ ؎ درمختار وشامی ۱۲ ؎ مزعفر یعنے زعفرانی رنګ ورکړے شوے - معصفر یعنے د کسم رنګ ورکړے شوے ۱۲

مسئله[1] :- که دسړی کفن درے زړوکی نه وی - بلکه دوه وی - ازار او لفافه - نو هم کافی دی - او دا کفن کفایت دے - دَ دے نه کم مکروه دی - البته که ډیره مجبوری وه - بیا دے کم نه کم یو ټوکے ورکی - چه ټول بدن پے پټ شی - او دا کفن ضرورت دے -

مسئله[2] :- که دَ ښځے کفن پنځه ژړوکی نه وی - بلکه درے وی - ازار لفافه - خمار - نو دا هم کافی کیږی - او دے ته کفن کفایت وئیلے شی - او دَ دے نه کمول ئے مکروه دی - البته که مجبوری وه نو بیا یو هم جائز دے - چه ټول بدن پے پټ شی - او دا کفن ضرورت دے -

مسئله[3] :- که میت څه مال پرے نه خود - نو نفقه چه ئے په چا وه - کفن به ئے هم په هغه وی - او که نفقه ئے په ډیرو کسانو وه - کفن به ورله هغوئ ورکوی په شریکه دَ حق میراث په اندازے سره - او که میت منکوحه ښځه وه او خاوند ئے ژوندے وی نو فتویٰ په دے خبره هم ورکړے شوے - چه هغے اګر که مال پریخے وی - کفن ئے په خاوند دے - خو په دے کښی اختلاف شته -

مسئله[4] :- که میت څه مال پرے نه خود - او داسے څوک وی هم نه چه دَ هغه نفقه پے واجبه وه - نو کفن ئے په بیت المال دے - او که بیت المال هم نه وی - یا وی خو انتظام ئے کمزور وی - بیا ئے کفن په هغه مسلمانانو دے - چه خبر شوی وی - دَ ده دَ مرګ نه - او که هغه هم نادار وو - قدرت ئے دَ کفن ورکولو نه وی - سوال دے وکی دَ نورو نه - ځینی عالمان وائی چه کفن دَ ضرورت او ځینی وائی چه کفن دَ کفایت - پس که چندہ ئے ورله وکړه - او دَ هغه دَ کفن نه زیاته شوه - نو که ورکونکے معلوم وی - باقی دے هغه ته والپس کی - او که معلوم نه وی - دَ بل فقیر په کفن کښی دے ولګوی - یا دے فقیر له خیرات ورکی -

مسئله[5] :- په کفن باندے سورهٔ یٰسین یا څه دُعا وغیره لیکل جائز نه دی - ځکه دے دَ بے ادبئ - داسے نه چه دمیت دَ بدن نه څه نجاست وځی او دَ دے بے ادبی پے راشی دارنګ دَ میت په څه ځائے باندے په کافور یا په سیاهی سره کلمه او دُعا وغیره لیکل هم جائز نه دی - البته که دَ کفن ورکولو مینه او دَ غسل نه پس په مسواکئ ګوته په غیر دَ رنګ نه دَ میت په وچولی بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ولیکی او په سینه باندے لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ نو خیر دے -

مسئله[6] :- که دَ انسان یو اندام یا نیم بدن بے دَ سره چرته او موندے شه - کفن ورله نشته - خو په څه ټوکی کښی نغختل کافی دی - او که بدن ئے دَ نیمے نه زیات

---

[1] درمختار ورد المحتار ۱۲ [2] کنز الدقائق ۱۲ [3] درو شامی ۱۲ [4] بحر رائق ۱۲ [5] شامی ۱۲ [6] شامی ۱۲

اومونځ ئې شه - اګرکه سر ورسره نه وی - یا ئې بدن اومونځ ئې شه - سره د سره -
بیا دې ورله مسنونه کفن ورکی -

**مسئله**[1]: - که د چا قبر وران شه - او لاش ئې بې کفنه وُ - یا ئې لاش په څه بله وجه د قبر نه باهر وُ - بې کفنه - او لاش تازه وُ - خراب شوې نه وُ - نو هغه له دې دوباره مسنونه کفن ورکی - او خخ دې کی - او که خراب شوې وُ - نو په یو ټوکی کښې دې خخ کی بس -

**د جنازې وړلو بیان**

**مسئله**[2]: - که میت بچې وُ - تې رودونکې یا د تی نه وس وس پرې کړې شوې وُ - یا د دې نه هم لږ لوئ وُ - نو د هغه وړل په لاسونو کښې پکار دی - یعنې یو سړې دې - د خپلو دواړو لاسونو د پاسه پروت څه قدرې یوسی - بیا بل - بیا بل - دارنګ دې د یو بل نه آخلی او وړی دې - او که میت لوئ وُ - نو بیا دې په کټ وغیره کښې اچولې وړی - څلور تنه دې د هغې څلور واړه څپې په اوګو کیږدی - وا خلی - خو اوګې ته کوی به ئې په لاسونو - او د اسباب وسامان په شان ئې په اوګو راوړل مکروه دی - دارنګ بې ضرورته ئې په څاروی یا د نقل وحمل په څه بل شی اچولې وړل هم مکروه دی -

**مسئله**[3]: - جنازې ته د اوګې ورکولو مستحبه طریقه دا ده - چه مینه دې د کټ مخکنئ کسه خپه په خپلې ښئ اوګه کیږدی - او کم نه کم لس قدمه دې یوسی - بیا د هغې وروستنئ کسه خپه په ښئ اوګه لس قدمه - بیا د هغې مخکنئ ښئ خپه په کسه اوګه لس قدمه - بیا وروستنئ ښئ خپه په کسه اوګه لس قدمه هر یو وړونکی له په دې ترتیب سره وړل غوره دی - کوم سړې چه جنازه څلویښت قدمه یوسی - په حدیث شریف کښې د هغه ډیر ثواب راغلې دې -

**فایده**[4]: - مینه چه په ښئ اوګه کوې څپې کړی هغه د جنازې د کټ کس جانب دې - او د میت ښئ - او باقی دوه د دې نه په عکس .....

**مسئله**[5]: - جنازه تیز قدمه وړل مسنون دی خو په وقار سره - او دومره تیز نه چه میت ئې ښشنیږی او حرکت او اضطراب ئې پیدا کیږی -

**مسئله**[6]: - جنازه په لاره تیریده او څوک ناست وُ - او د هغوئ اراده د جنازې سره د تلو نه وه - نو پاسی دې ورته نه - د دې د پاره ورله ودریدل نه دی پکار

---

[1] شامی ۱۲ [2] درمختار ورد المحتار ۱۲ [3] مراقی الفلاح و درمختار ۱۲ [4] عالمګیری و درمختار ۱۲ [5] شامی ۱۲ [6] بحر...

**مسئله**[1] :- کوم کسان چه دَجنازے سره روان وی هغوئ ته بے ضرورته کیناستل مکروه دی۔ ترکومے پورے چه جنازه ته وی ایخلے شوے۔

**مسئله**[2] :- مستحبه طریقه داده چه څوک دَجنازے سره ځی نو شاته دے ځی۔ او که څوک مخکښ ته ځ۔ نو هم جائز دی۔ لیکن که دومره مخکښ روان وَ چه ځان له معلومیده بیا مکروه دی۔ او دَ جنازے ښی طرف ته او کس طرف ته ورسره تله هم مکروه دی۔

**مسئله**[3] :- که دَ جنازے نه ټول مخکښ مخکښ تلل۔ نو دا مکروه دی۔ او که څوک دَجنازے مخکښ روان وُ۔ اوؤ سور۔ نو دا هم مکروه دی۔ البته که شاته سور روان وُ نو جوازئے شته۔

**مسئله**[4] :- دَ جنازے شاته تلل غوره دی۔ لکه چه مخکښ بیان شو۔ لیکن که شاته ورسره ښځے وے۔ هغوئ سره دَ خلط کیدلو یره وه۔ بیا مخکښ تلل غوره دی۔ او دَجنازے سره دَ ښځو تلل مکروه تحریمی دی۔ منع دی۔ دا رنګ که څوک ویرکوونکے ښځه پسے روانه وه۔ نو منع دے کړے شی۔ زور نه دے ورته وکړے شی۔

**مسئله**[5] :- څوک چه دَجنازے سره روان وی۔ هغوئ له په دغه حالت کښ قرآن شریف یا څه دُعا وغیره په زوره لوستل مکروه دی۔

| دَجنازے دَ مانځه مسائل | موُنځ[6] دَ جنازے فرض کفایه دے مکلفین باندے۔ او کوم شرائط

چه دَ نورو مونځونو دَ وجوب دَپاره دی۔ هغه دَدے مانځه دَ وجوب دَپاره هم دی۔ یعنی قدرت۔ عقل۔ بلوغ۔ اسلام۔ البته یو شرط دلته زائد دے او هغه دادے چه دَ دغه جنازے خبر ورته وی۔ که خبر ئے نه وُ۔ نو لازم پے نه دے۔ ځکه چه معذور دے۔

**مسئله**[7] :- دَجنازے مونځ صحیح کیدلو دَپاره دوه قسمه شرائط دی۔ یو قسم هغه دی چه تعلق لری دَ جنازه کونکی سره۔ بل قسم هغه دی چه تعلق لری دَ میت سره پس کوم چه دَ مونځ کونکی سره تعلق لری هغه هغه شرائط دی چه ثابت دی دَ پاره دَ نورو مونځونو۔ یعنی طهارت حقیقی او حکمی دَ بدن۔ طهارت دَ لباس او دَ مکان۔ ستر عورت۔ استقبال قبله۔ نیت۔ البته وقت دلته شرط نه دے۔ او په مکروه اوقات کښی مکروه دے او منع۔

**مسئله**[8] :- که امام بے دَطهارت نه جنازه وکړه نو مونځ ئے و نشه۔ او چه دَ امام و نشه

---

[1] مراقی الفلاح ۱۲ [2] بحر رایق ۱۲ [3] در و شامی ۱۲ [4] فتح القدیر و بحر ۱۲ [5] در و بحر رایق ۱۲ [6] بحر رایق ۱۲ [7] شامی ۱۲ [8] رد المحتار ۱۲ [9] شرح التنویر و رد المحتار ۱۲

دَ نورو هم ونشه - او که دَ امام طهارت وُ - خو مقتدیان تول بے طهارت وُو - مونځ وشه - دوباره جنازه کول ته ضرورت نشته - وجه دا ده چه دَ مقتدیانو مونځ اګرکه وُ نه شه - لیکن دَ امام وشه - او جنازه چه یوتن وکی - هم اداکیږی -

**مسئله** :- په باب دَ تیمّم کښې بیان شوی دی - چه دَ جنازے مونځ فوت کیدلو که ئے یره وه - نو اګرکه اوبه موجودے وی - او دے دَ هغے په استعمال قادر هم وی بیا ورله هم تیمّم جائز دے -

**مسئله** :- که پیزار په خپوئے دَ جنازے مونځ کاوُ - نو په کوم ځائے چه ولاړ دے - دَ هغه ځائے پاکوالے ضروری دے - ځکه چه هغه ئے مکان دے - او دَ پیزار پاکوالے هم ضروری دے - ځکه چه هغه ئے په منز له دَ لباس شه - او که په الیستلی پیزار باندے ولاړ وُ - نو صرف دَ پیزار پاکوالے ضروری دے - ځکه چه هغه ئے مکان شه -

**مسئله** :- اوکوم شرائط چه دَ میت سره تعلق لری هغه دا دی :-

**شرطِ اول** دَ میت اسلام دے - نو په کافر او په مرتد باندے دَ جنازے مونځ کول صحیح نه دی - او مسلمان هرڅنګه چه وی - فاسق وی او که بدعتی - مونځ دَ جنازے ئے شته سوا دَ دوؤ کسانو نه - کوم کسانو چه دَ بادشاه اسلام نه بغاوت کړے وی - یا داکه زن وی - او عین په دغه موقعه کښې په جنګ کښې قتل کړے شی - مونځ دَ جنازے ئے نشته او په غسل کښې ئے دَ عالمانو اختلاف دے - البته که دَ جنګ نه بعد قتل کړے شو - یا مړه شو په خپل مرګ - بیا به ئے مونځ کوی - او څوک چه قصداً خپل پلار و جلے وی - یا مور - په هغه دے هم جنازه نه کوی - او چا چه قصداً خودکشی کړی وی - نو اګرکه ګناه ئے دَ بل دَ قتل نه زیات دے - صحیح خبره دا ده - چه مونځ دَ جنازے ئے شته -

**مسئله** :- که میت وړوکے وُ - نابالغ - او صرف پلار ئے مسلمان وُ - یا پلار خو ئے کافر وُ - لیکن مور ئے مسلمانه شوه - نو وړوکے به په دواړو صورتونو کښې مسلمان ګڼړلے شی ځکه چه بچے په دین کښې تابع وی دَ خیر الابوین - نو مونځ دَ جنازے ئے شته -

**مسئله** :- دَ میت نه مراد هغه څوک دے چه ژوندے پیدا شوے وی - بیا مړ شوے وی - نو که مړ پیدا شوے وُ - مونځ ئے صحیح نه دے -

**مسئله** :- دویم شرط دا دے چه دَ میت بدن پاک وی دَ نجاست حقیقی او

---

ؔ بحرالرائق ۱۲ ؔ بحرالرائق ۱۲ ؔ درمختار و شامی ۱۲ ؔ خو داهله چه امام دَ هغے په قصاص کښې دے ربطے وی - ورنه بیا په کښې اختلاف دے ۱۲ ؔ شامی ۱۲ ؔ ردالمحتار ۱۲

حکمی ته - او دَ کفن پاکوالے هم شرط دے - لیکن که دَ کفنولو نه پس دَ میت دَ بدن نه څه نجاست

اووت - او بدن ئے پے بیلمانزه شه - یا کفن - نو دا مضر نه دے - مونځ کیږی - البته که

میته هم ناپاک وَ - بیا مضر دے -

**مسئله** :- که میت له غسل نه وَ ورکړے شوے - یا اوبه خونه وے - لیکن تیمم

ورله هم نه وَ ورکړے شوے - نو مونځ دَ جنازے ئے صحیح نه دے - البته که دغه شان دفن

کړے شوے وَ - او خاورے پے اړولے شوے وے - نو وس دے په قبر جنازه وکی - خو هله

که میت په قبر کښ نه وَ خراب شوے - او دَ دے بیان به مخکښ راشی - او که دفن

کړے ئے وَ - خو خاورے ئے پے لا نه وے اړولے - نو را او دِ باسی - غسل دِ ورکی - مونځ

دَ جنازے دے پے اوکی -

دارنګ که په میت ئے مونځ وکه - بیائے دفن که - او خاورے ئے پے وا ړولے - بیا یاد

شو چه ده له غسل وغیره نه وُ ورکړے شوے - نو وس دے په قبر جنازه وکی -

مخکښے مونځ نه دے شوے - ځکه چه شرط دَ طهارت نه وَ موجود - وس چونکه طهارت ممکن

نه دے - لهٰذا مونځ به وشی - او ځینے عالمان وائی چه میت که بے دَ غسل دَ تیمم نه دفن

کړے شه - نو په قبر ئے جنازه کول نشته -

**مسئله** :- که میت په کټ کښ وَ مثلاً او کټ پاک وَ - خو پروت وُ په ناپاک

ځائے - نو جنازه کیږی - او که کټ ناپاک وُ - یا میت په ناپاکه زمکه ایخے شوے وَ - نو

جنازه کیږی - او که نه - په دے کښ دَ عالمانو اختلاف دے - ځینے وائی چه طهارت دَ

مکانِ میت شرط دے نو نه کیږی - او ځینے وائی چه نه - نو کیږی -

**مسئله** :- **دریم شرط** ستر عورت دے - نو که میت بالکل لغړ وَ - مونځ

دَ جنازے ئے صحیح نه دے -

**څلورم شرط** دا دے چه میت حاضروی - ټول - یا اکثر - بلکه نیم بدن سره دَ

سر نه - نو په غائب باندے جنازه صحیح نه ده -

**پنځم شرط** دا دے چه میت مخے ته وی قبلے ته نو که میت شاته وُ - مونځ صحیح نه دے -

**شپږم شرط** دا دے چه میت یا میت چه په کوم کټ وغیره کښ وی - هغه پروت وی

په زمکه - نو که په خاوری پروت وَ - یا سړو اوچت نیولے وَ او مونځ پے کاوُ - نه کیږی

**مسئله** :- دَ جنازے دَ مانځه طریقه دا ده چه مینه نیت وکی - نَوَیْتُ اَنْ اُصَلِّیَ

---

ت بحرالرائق ۱۲ ت قاضیخان و ردالمحتار ۱۲ ت زیلعی ۱۲ ردالمحتار ۱۲ ت درمختار و شامی و بحر ۱۲

للهِ تعالیٰ اَرْبَعُ تَکْبِیْرَاتٍ صَلٰوۃِ الْجَنَازَۃِ اَلثَّنَاءُ لِلّٰہِ تَعَالیٰ وَالدُّعَاءُ لِهٰذَا الْمَیِّتِ الخ او که
ښځو جبه والی نو داسے دے اووائی ـ نیت م وکه د زړه د اخلاص مه اداکوم مونځ د جنازے
چه ثنا د پاک رب او دُعا ده د پاره د دے میت ـ نیت هرڅنګه چه وکی خیر دے خو چه صحیح
وی ـ د نیت نه پس دے د الله اکبر وئیلو سره دواړه لاسونه د غوږو نو پورے اوچت کی ـ
بیا دے با قاعده وتړی ـ نو دا ثنا دِ ولولی ـ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَ بِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ
وَتَعَالیٰ جَدُّكَ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ وَلَا اِلٰهَ غَیْرُكَ ـ بیا دے یو ځل الله اکبر اووائی بے د
لاس اوچتولو نه ـ نو درود دِ ولولی ـ او غوره داده چه درود ابراهیمی ولولی ـ کوم چه په
مانځه کښې په قعدهٔ اخیره کښې لوستے شی ـ بیا دے الله اکبر اووائی بے د لاس اوچتولو
نه ـ نو دا دُعا دے ولولی ـ خو هله که میت عاقل بالغ وی ـ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَیِّنَا وَمَیِّتِنَا وَ
شَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَصَغِیْرِنَا وَکَبِیْرِنَا وَذَکَرِنَا وَاُنْثَانَا اَللّٰهُمَّ مَنْ اَحْیَیْتَهٗ مِنَّا
فَاَحْیِهٖ عَلَی الْاِسْلَامِ وَمَنْ تَوَفَّیْتَهٗ مِنَّا فَتَوَفَّهٗ عَلَی الْاِیْمَانِ او په بعض احادیث کښې
دا دعا هم راغلے ده ـ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَهٗ وَارْحَمْهُ وَعَافِهٖ وَاعْفُ عَنْهُ وَاَکْرِمْ نُزُلَهٗ
وَوَسِّعْ مَدْخَلَهٗ وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ وَنَقِّهٖ مِنَ الْخَطَایَا کَمَا یُنَقَّی
الثَّوْبُ الْاَبْیَضُ مِنَ الدَّنَسِ وَاَبْدِلْهُ دَارًا خَیْرًا مِّنْ دَارِهٖ وَاَهْلًا خَیْرًا مِّنْ
اَهْلِهٖ وَزَوْجًا خَیْرًا مِّنْ زَوْجِهٖ وَاَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَاَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَ
مِنْ عَذَابِ النَّارِ ـ که دا دواړه دُعاګانے ولوستے نو ډیره غوره ده ـ بلکه ځمونږ
د مذهب په بعض معتبرکتابونو کښې دا دواړه دعاګانے یو ځائے شریکے لیکلے دی ـ
او د دے نه سوا نورے دعاګانے هم په حدیث شریف کښې راغلے دی ـ نو هره یوه چه لولی
خیر دے ـ او که میت اصلی لیونے وی یا نابالغ هلک ـ نو د هغه د پاره دے دا دُعا ولولی
اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا وَاجْعَلْهُ لَنَا اَجْرًا وَذُخْرًا وَاجْعَلْهُ لَنَا شَافِعًا وَمُشَفَّعًا
او که اصلی لیونۍ وه یا نابالغه جینۍ ـ نو د هغې د پاره هم دا دُعا ده خو دومره فرق دے ـ
چه دلته به د اجعله په ځائے درے واړه ځایه اجعلها وائی ـ او د شَافِعًا وَمُشَفَّعًا
په ځائے شَافِعَةً وَمُشَفَّعَةً ـ د مذکوره دُعالوستلو نه پس به بیا الله اکبر کی په
غیر د لاس اوچتولو نه ـ نو دغه شان به په ولاړه دواړو غاړو ته سلام وګرځوی
بس مونځ د جنازے وشو ـ په دے مانځه کښې د قرآن لوستل او رکوع سجود وغیره
نشته ـ

**مسئله** :- په کومو څیزونو سره چه نور مونځونه فاسدیږی ـ په هغې سره د

؎ عالمګیری ۱۲

جنازے موخ هم فاسدیږی - لیکن د ښځے په محاذات سره د جنازے په مانځه کښې فساد نه راځی - او د جنازے په مانځه کښې په قهقهه کولو سره اودس نه ماتیږی - او موخ پے فاسدیږی -

**مسئله** :- د جنازے په مانځه کښې دوه څیزه فرض دی - (۱) څلور تکبیرونه (۲) قیام - یعنے د جنازے موخ په ولاړے کول - او درے څیزه په کښې سنت دی - د خدائے پاک حمد و ثنا ویل - درود شریف لوستل - د میت د پاره دُعا - او جماعت په کښې شرط نه دے - نو که یو تن وکړه - هم کیږی - خو حنبره داده چه صلوٰة جنازه په اصل کښې دُعا ده د پاره د میت او په جمعه سره دُعا کول خاص اثر لری -

**مسئله** :- امام به تکبیرونه او سلام په زوره وائی او مقتدی به په پټه - باقی ثنا او درود او دُعا به ټول په پټه وائی -

**مسئله** :- امام له د میت د سینے په برابر ودریدل مستحب دی - میت نر وی او که ښځه - بالغ وی او که نابالغ - او ضروری دومره قدر ده - چه د میت د یو جز په برابر ودریږی لس - خو داهله که جنازه یوه وه - او که جنازے ډیرے وے - او موخ پے یو کاؤ - نو د هغے بیان به مخکښې په باب د متفرق مسئلو کښې راشی - او امام دے میت ته نژدے ودریږی لرے نه -

**مسئله** :- که جنازه ځے نه پرته وه خو سرے کس لاس نه د - او چے ښی لاس ته او موخ په دغه شان وکړے شه - نو وشه - خو به حنبره ده - خلاف سنت دے - سنت طریقه داده چه د میت سر د امام ښی لاس ته دی - او چے کس نه -

**مسئله** :- د جنازے د پاره مستحبه داده چه درے صفه جوړکړے شی - نو دے پورے چه موخ کونکی که ټول تال اُوه نه وی - نو یو به امام شی - او اول صف د دریو تنو او دویم د دوؤ - دریم د یو -

**مسئله** :- چا ته چه مذکوره دُعا د جنازے یاد نه وی - هغه دے صرف دا او وائی اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْمُؤْمِنِیْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ او که دا هم نه شی ویلے صرف په څلورو تکبیرونو اکتفا کوی هم به ئے موخ وشی - ځکه چه صرف تکبیرونه هم د میت د پاره رحمت دے او د جنازے په مانځه کښې درود لوستل څه فرض نه دی - بلکه سنت دی -

**مسئله** :- که څوک د اول تکبیر به وقت کښې حاضر نه - او د امام سره په مانځه

---

ك شرح التنویر و شامی و بحر رائق ۱۲ ك هندیه ۱۲ ك شامی ۱۲ ك البدایع والصنائع و شامی ۱۲ ك عالمگیری ۱۲ ك بحر رائق و هندیه ۱۲ ك در و شامی ۱۲

کښې دَشرکت دَپاره مستعد وُ۔ خو دَ سستئ په وجه یا په څه بله وجه شریک نه شه۔ نو دے دے دَ دویم تکبیر انتظار نه کوی۔ خو فوراً دے تکبیر وُکی۔ دَ امام سره دے شریک شی۔ نو که امام لا دویم تکبیر نه وُکړے۔ او ده تکبیر اووے ورسره شریک شه۔ نو مونځ به دَ امام سره پوره کی۔ او که امام دویم تکبیر هم کړے وُ۔ نو ده له پکار دی چه دَ امام دَ دویم تکبیر نه مخکښې تکبیر وکی۔ شریک شی۔ نو دے به دَیو تکبیر په لحاظ سره مسبوق وی۔ نو پس دَ امام دَ سلام گرځو لو نه به یو تکبیر راوګرځوی۔

مسئله :۔ دَ جنازے په مانځه کښې څلور واړه تکبیرونه قائم دی په مقام دَ څلورو رکعتونو۔ نو دَ جنازے مانځه نه که څوک داسے وخت راورسیدو چه څه تکبیرونه دَ هغه دَ راورسیدو نه مینه شوی وُ۔ نو دَ هغه په لحاظ سره به دے مسبوق گڼړے شی۔ ده له پکار دی چه دَ راتلو سره فوراً په مانځه کښې دَشرکت دپاره تکبیر تحریمه نه وائی۔ دَ امام بل تکبیر ته دے انتظار وکی۔ چه هغه تکبیر اووائی۔ نو دے دَے ورسره هم تکبیر وکی۔ شریک دِ شی۔ دا تکبیر دَده په حق کښې تکبیر تحریمه دے۔ بیا به دَ امام دَ سلام گرځو لو نه پس دے خپل نا مونډلی تکبیرونه ادا کوی۔ او که څوک داسے وخت راورسیدو چه امام لا سلام نه وُګرځولے۔ او څلور واړه تکبیرونه ئے ادا کړی وُ۔ نو ده له پکار دی چه فوراً تکبیر وکی۔ دَ امام سلام ګرځولو نه مخکښې مخکښې شریک شی۔ نو دا تکبیر ئے تکبیر تحریمه شه۔ او دَ امام دَ سلام نه پس به درے تکبیره راوګرځوی۔

مسئله :۔ دَ جنازے په مانځه کښې چه مسبوق خپل تګی تکبیرونه کوی۔ که دَ هغه ویره وه چه دُعا لولم ساعت به لږی۔ جنازه به دَ مځه نه اوچته کړے شی نو نه دے لولی۔ صرف تکبیرونه دے وکی۔ لس۔

مسئله :۔ که دَ جنازے په مانځه کښې څوک لاحق شه۔ نو کوم حکم چه دَ نورو مونځونو دَ لاحق دے۔ هغه دده هم دے۔

مسئله :۔ که امام دَ جنازے په مانځه کښې دَ څلورو تکبیرونو نه زیات تکبیرونه وکړه۔ نو جنفی مقتدیانو له پکار دی چه په دے زیاتی تکبیرونو کښې دَ هغه متابعت نه کوی۔ چپ دے ودریږی۔ او کوم وخت چه امام سلام ګرځوی ورسره دے سلام وګرځوی۔

---

له بحر رائق وشامی ۱۲ ؎ ده در مختار وشامی ۱۲ ؎ بحر رائق ۱۲ ؎ رد المحتار ۱۲

مسئله[1] :- که جنازې ګڼړې جمعه شوې - غوره داده چه دَ هرې یوې جنازه جدا اوکې - کومه چه مخکښې راوړې شوې وی - مینه دَ هغې بیا دَ بله - په دې ترتیب سره - اوکه یو ځایٔ حاضرکړې شوې وې - نوکوم میت چه غوره دې - مینه دَ هغه اوکه په غوره والی کښې برابر وو - نوکوم چه په عمر کښې زیات وی - مینه دَ هغه اوکه په ټولو جنازوئې یو مونځ کاؤ - نو هم جائز دی - دَ جنازو یو صف دې قایم کی - غوره صورت ئې دادې - چه دَ یوې مخ ته قبلې ته بله کیدی - اوَ دَ هغې مخې ته بله - دارنګ په دې ترتیب سره چه سر دَ ټولو یو جانب ته راشی - او ښپې بل جانب ته - دَ غوره والی وجه داده چه دَ ټولو سینه په محاذ شی دَ امام سره - اوکه صف دَ جنازوئې دَ مانځه دَ صف په شکل جوړکه - چه دَ یوې جنازې سر دَ بلې ښپو سره وؤ - نو هم جائز دی - نوکوم یو چه غوره وی - امام دې دَ هغه دسینې په برابر ودریږی -

مسئله[2] :- که جنازې مختلف قسمه وې - او مونځ ئې په یو کاؤ په اول ترتیب سره نو دَ جنازې صف دې په دې طور سره قایم کی - چه امام ته نژدې جنازه دَ سړو په هغې پسې دَ هلکانو - ورپسې دَ ښځو - بیا دَ جینکو .......

مسئله[3] :- دَ جماعت دَ زیاتیدو دَ پاره دَ جنازې په مانځه کښې ډیر تاخیر راوستل مکروه دی -

مسئله[4] :- کوم جُمات چه دَ پنځو قته مونځو نو دَ پاره یا دَ جمع دَ مانځه دَ پاره دغ شوې وی - په هغې کښې بلا عذره دَ جنازې مونځ کول مکروه تحریمی دی - او ځینې وائی چه مکروه تنزیهی - برابره خبره ده چه جنازه په جمات کښې وی - اوکه با هر وی - خو مونځ کونکی دننه - لیکن په دې دویم صورت کښې بعضې وائی چه کراهت نشته - او روایت هم دې - اوکه دَ باران و غیره عذر وؤ - نو بیا بالکل کراهت نشته - نه په اول صورت کښې نه په دویم کښې - اوکوم جُمات چه خاص دَ جنازې دَ مانځه دَ پاره دغ شوې وی - په هغې کښې مکروه نه دې - برابره خبره ده چه عذر وی اوکه نه -

مسئله[5] :- دَ جنازې مونځ بلا عذره په ناسته کول جائز نه دی

مسئله[6] :- دَ جنازې په مانځه کښې دَ امامت استحقاق دَ ټولو نه اول بادشاهِ اسلام لره دې - اګرکه په تقوی کښې ترې بل زیات وی - خو داهله که بادشاه په

---

[1] درمختار و ردالمحتار ۱۲ [2] عالمګیری ۱۲ [3] شامی ۱۲ [4] و [5] هندیه و ردالمحتار ۱۲ [6] شرح التنویر و ردالمحتار ۱۲

خپله حاضر وُ - کې بيا حق دَ هغه دَ نائب دے - يعنے کوم سړے چه دَ هغه دَ طرف نه دَ دغه ځائے حاکم وی - حق دَ امامت هغه لره دے - اوکه دے هم حاضر نه وُ - بيا حق دَ قاضی دے - که هغه هم نه وُ نو دَ هغه نائب - که په دې کښې څوک حاضر وُ نو دَ هغه دَ اذن نه بغير بل مخکښې کول جائز نه دی - اوکه په دې کښې يو هم حاضر نه وُ بيا مستحق دَ امامت هغه سړے دے چه دَ ميت دَ محلے امام وی - خو هله که دَ ميت په رشته دارانو کښې دَ هغه نه غوره سړے نه وی موجود - اوکه موجود وُ - نو کوم قرابت دار چه ورته په اعتبار دَ حق ولايت سره نيزدے وی - ميته حق دَ هغه دے - البته که دَ ميت هم پلار پاتے شه - او هم ځوئ نو پلار ئے غوره دے - ليکن که پلار بالکل جاهل وُ - او ځوئ عالم - نو بيا نه - او امام دَ جامع مسجد غوره دے دَ امام محلے نه -

**مسئله** :- که ولی اقرب چاته اجازت وکه - نو جائزه ده - ليکن که په دغه درجه کښې ورسره بل شريک وُ نو هغه ئے منعه کولے شی - اگرکه وی کشر - مثلاً دَ ميت دوه خپل رونړه پاتے شو - يو کشر وُ - بل مشر - نو حق دَ مشر دے - ليکن که مشر بل چاله اجازت ورکه نو کشر له حق دَ منعے شته - البته که مشر يو مخکښې کاؤ او کشر بل سړے مخکښې کاؤ - نو کوم يو لره چه مشر مخکښې کوی - هغه مخکښې دے - او که دَ ولی سره په دغه درجه کښې بل شريک نه وُ - بلکه بل ولی بعيد وُ - نو هغه له حق دَ منعے نشته - مثلاً يو وروړے خپل ابۓ دادا دا ورے وُ - بل صرف دَ پلار ده - او خپل وروړے بل له اجازت ورکه - نو جائز دی - دغه پلار دا ورې له حق دَ منعے نشته -

**مسئله** :- که بے دَ ولی دَ اجازت نه چا داسے سړی امامت دَ جنازے وکه - چه دَ هغه حق دَ تقديم نه وُ - نو ولی له اختيار دے - که دوباره جنازه کوی - کولے شی - بلکه په داسے صورت کښې که ميت دفن کړے شوے وُ - نو په قبر ئے هم کولے شی - خو هله که دَ ميت دَ خرابيدو غالب گمان نه وی - اوکه جنازه په داسے سړی کړے وه - چه دَ هغه حق دَ تقديم وُ - لکه قاضی يا دَ هغه نائب - يا امام الحي - يا داسے سړی کړے وه چه دَ هغه حق دَ امامت څو نه وُ - ليکن ولی ورپسے هم ولاړ وُ - نو بس دا ولی اعاده دَ جنازے نه شی کولے دارنگ که ولی ابعد حاضر وُ - او اقرب غائب وُ - حاضر په جنازه وکړه - بيا غائب حاضر شه - نو هغه له دَ جنازے دوباره کولو حق نشته -

**مسئله** :- که چا وصيت وکه - چه ځما دَ جنازے امامت دے فلانے سړے وکی -

---

سله ردالمحتار ۱۲ سه درمختار وشامی ۱۲ سه محيط وهنديه ۱۲

اوحال داوُ چه دَدغه فلانی حق دَ تقدیم نه وُ - یائے دا وصیت وکه چه ماله دے غسل فلانے راکی - نو په دے وصیّت عمل ضروری نه دے - اودَ ولی حق به دے سرہ نه لرے کیږی دارنګ که وصیت ئے وکه چه ماله کفن دَ خاص فلانی قسم ټوکی راکئ - یا ما په فلانی ځائے کښې ښخ کړئ - نو دا وصیّت هم باطل دے - لازم العمل نه دے -

دَ مړی ښخولو بیان

**مسئله**[۱] :- مړے ښخول فرض کفایه دی - خو هله که امکان ئے دَ ښخولو وی - او که امکان ئے نه وُ - مثلاً په بحری جهاز وغیره کښې مړشه او خشکی دَ هغه ځائے نه دومره لرے وه - چه دَ نعش خرابیدلو خوف وُ - نو دَ غسل او دَ کفن ورکولو او دَ جنازے کولونه پس دے قبلے جانب ته په ښی اړخ دریاب ته اوغورزوی[۲] - او که خشکئ ته دَ رسیدلو زر اُمید وُ - دَ نعش خرابیدلو یره نه وه - نو غورزوی دے نه ګُدے ساتی - بیا دے په زمکه کښې باقاعده ښخ کی -

**مسئله**[۳] :- قبر دے کم نه کم دَ میت دَ نیم قد مره جوړکړی - او دَ پوره قد نه زیات جوړ نه دے پکار - او په اوږدوالي دے دَ میت دَ قد همره وی - چه باقاعده په کښې راشی - او په بعض کتابونو کښې ئے راوړی دی چه په پلنو دَ نیم قد همره -

**مسئله**[۴] :- قبر دوه قسمه وی - یو ته لحد ویلے شی - بل ته شق - لحد دا دے چه سیده قبر وکړی - بیا په هغے کښې قبلے غاړے ته نور ځائے وکړی - نو دننه پکښې مړے کیدے دا سے وکړی - لکه دړوکے کوټ لوړ نکے - او دے قسم قبر ته خُونږ په اصطلاح کښې شامی ویلے شی - اوشق دا دے چه مینه سیده قبر وکړی - بیا ډ ورے پریدی - او مینځ ئے باقاعده جوړکی - نو په کښې میت کیدی - او لحد دَ شق نه غوره دے - لیکن که زمکه نرمه وه - دَ پریوتو خوف وُ - بیا دے لحد نه کړی - بلکه شق دِ کوی -

**مسئله**[۵] :- که ضرورت وُ - نو په دے کښې کراهت نشته چه میت په صندوق کښې کیدی - او په قبر کښې ئے دفن کی - برابره خبره ده چه صندوق دَ لرګی وی او که دَ ګټے او بے ضرورته مکروه دی - او دَ ښځے دَ پاره بعضے وائی چه صندوق غوره دے -

**مسئله**[۶] :- په قبر کښې دَ میت دَ لاندے دړے - پوزے وغیره غوړول جائز نه دی هاں لږ خاورے تے لاندے هموارول مسنون دی - او که صندوق وُ - نو په صندوق کښې -

[۱] شامی ودر ۱۲ [۲] ثم دروند شی دِ پورے دتهی لکه لته یاد سینه وغیره ۱۲ [۳] بحرالرائق وشامی [۴] درمختار ورد المحتار و بحرالرائق ۱۲ [۵] درمختار و شامی وشرح المنیه ۱۲ [۶] شرح المنیه ۱۲

**مسئله**:۔ که میت ښځه وه نو د ورکوزولو په وقت کښې ئې په قبر باندے د څه ټوکر وغیره پړده[1] کول مستحب دی۔ او که میت نارینه وُ۔ نو پړده دے نه کوی۔ البته که ضرورت وُ۔ مثلاً باران وریده۔ یا سخت غارمه وُو۔ وغیره نو بیا خیر دے۔

او قبر ته د مړی ورکوزولو طریقه داده۔ چه جنازه دے د قبر نه قبلے غاړے ته کیدی او کوزونکی دے مخ په قبله ودریږی۔ میت دے راواخلی۔ او ورکوزونکی که طاق نه وی هم خیر دے۔ طاق والے مسنون نه دے۔ نبی علیه السلام خپل لحد مبارک ته یعنې روضے منورے ته څلورو تنو کوز کړے وُ۔ عباس رض۔ فضل بن عباس رض۔ علی رض۔ صهیب رض۔ او ورکوزونکی له په دغه وقت کښې دا ویل مستحب دی۔ بِسْمِ اللّٰهِ وَبِاللّٰهِ وَعَلٰی مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ۔

او ځینے خلق په قبر کښې د میت ایخو دلو په وقت بانګ ویلو ته سنت وائی۔ قیاس[3] کوی۔ په هغه بانګ باندے چه ویلے شی د بچی په غوږ کښې۔ د پاره د دے چه خاتمه ئے برابر شی د ابتداء سره۔ لیکن دا خبره غلط ده۔ سنت نه دی۔ بلکه بدعت دے

او چه مړے په[4] قبر کښې کیدی۔ مخ دے ورله قبلے ته کی۔ او مړے په ښی اړخ پراسټل غوره دی۔ او کوم[5] غوټه چه کفن له د کفن د ازیدلو په خوف ورکړے شوے وه۔ هغه دے په قبر کښې پرانیزی۔ ځکه چه وس ئے ضرورت ختم شو۔

بیا دے لحد[6] د قبر د طرف نه په کچه خښتو یا په پرخو بند کی۔ او د خښتو د منځ چاودونه دے د بانس په پړو یا په لوټو ټپ کی۔ او په پخو خښتو او دلرګی په تختو بندول مکروه دی۔ البته که زمکه نرمه وه۔ خوف وُ۔ چه زمکه به کیني۔ بیا خیر دے۔ او په صندوق کښې ئے ښخول هم جائز دی۔

او دخاورو[7] اچولو مستحبه طریقه داده چه د سر د طرف نه شروع کی۔ هر سړے درے لپے د خاورے راواخلی۔ قبر ته ئے وا چوی۔ په اوله لپه دے وائی۔ مِنْهَا خَلَقْنٰکُمْ په دویمه وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ په دریمه وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً اُخْرٰی۔

**مسئله**:۔ کومے[8] خاورے چه د قبر نه ختلی۔ د هغې نه په زیاتے خاورے اچول مکروه دی۔ که چرے قبر په د یو لوېشتے نه زیات دنګیده۔ کنی نو خیر

---

[1] بحر رایق و رد مختار ۱۲ [2] او که داریږه وه چه د هغې د بدن څه حصه به ښکاره شی نو بیا پړده واجب ده ۱۲ [3] شامی ۱۲ [4] در و رد ۱۲ [5] هندیه و بحر رایق ۱۲ [6] در در ۱۲ [7] عالمګیری ۱۲ [8] مراقی الفلاح ۱۲

دے ۔ او په قبربانده دَ خاورو اچولو نه پس او به پاشل مستحب دی دَ پاره دَدے چه خاورے ځائے او نیسی ۔

**مسئله** :۔ څلور کوټے قبر دغول مکروه دی ۔ مستحبه طریقه داده چه په شکل دَ کوهان سے جوړکی ماهی پُښت ۔ دَ زمکے نه یو لوبیښت اوچت یا ددے نه لږ زیات لبس ۔

**مسئله** :۔ دَ میت دفنه ولو نه بعد لږ ساعت هلته حصاو بیدل دَ پاره دَدے چه قدرے قرآن شریف ولولی ۔ او ثواب ئے او بخی مړی ته ۔ او دُعاءَ مغفرت ورله وکی مستحب دی ۔

دَ مړی متعلق متفرق مسئلے

**مسئله** :۔ که حامله ښځه مړه شوه او په کیدَ ئے کښں ئے ژوندے بچے وُ ۔ نو دَ هغے کیډه دے چاک کړے شی ۔ او بچے دے ته راووبستلے شی ۔ او که ښځه ژوندئے وه ۔ بچے ئے په کیډه کښں مړشه ۔ او دَ ښځے دَ هلاکت یره وه ۔ او بل څه آسان تدبیر دَ عورز ولوئے نه شه کیدے ۔ نو دائی یا بله ښځه دَ لاس ورننه باسی ۔ بچے دے ټکړے ټکړے کړی ۔ راو دے باسی ۔ او که بچے ژوندے وُ نو بیائے پریکول هرگز جائزنه دی ۔ اگرکه دَ ښځے دَ هلاکت یره وی ۔

**مسئله** :۔ په قبرچه خاورے اچولے شوے وی ۔ دَ هغے نه پس مړے دَ قبرنه راایستل جائزنه دی ۔ لیکن که دَ بل انسان حق تلفی کیده ۔ بیا جائز دی ۔ مثلاً په پردئ زمکه کښں ئے خخ کړے وُ ۔ او مالک اجازت نه کاوُ ۔ یا مثلاً سړی یو ځائے په بیعه واخست ۔ مړے ئے په کښں خخ که ۔ او دَ چا چه دغه ځائے دَ شفیع حق وُ ۔ هغه سره دَ خبرپدو نه دعوه وکړه ۔ په شفعه ئے واخست ۔ نو وس دَ مالک خوښه ده ۔

**مسئله** :۔ که چا دَ بل روپئے تیرے کړے مثلاً ۔ او مړیشه ۔ او مالک غو ښتلے نو اے دَ روپو راایستلو دَ پاره به دَ میت کیډه چاک کیږی ۔ او که نه ۔ په دے کښں دوه قوله دی ۔ خو غوره قول دادے ۔ چه وُ ۔ لیکن هله که میت څه مال نه وُ پریخے ۔ او که مال ئے پریخے وی ۔ بیائے چاکول جائزنه دی ۔ بلکه دَ میراث نه به ئے ورکړے شی ۔

**مسئله** :۔ که په قبرکښں دَ میت مخ قبلے ته کړول هیرشوی وُ ۔ یائے میت په کس اړخ پریستلے وُ ۔ یا سری کونه ۔ او خاورے ئے پے اړولے وے ۔ ورسنو

---

۱ه مراقی الفلاح ۱۲ ؎ درودرد ۱۲ ؎ درو شامی ۱۲ ؎ درو شامی ۱۲ ؎ شرح التنویر ۱۲ ؎ بحرالرائق وشامی ۱۲

یادشو۔ نو وس دے قبر نه سپړی۔ څه چه وشو۔ هغه وشو۔ اوکه خاورے ئے پے لا نه وی
اچولے۔ خو صرف پړخے ئے د شق په ډېرو ایښے وے۔ یائے و دروولے وے لحد ته۔ بیا دے ئے
هغه لرے کی۔ میت دے با قاعده برابرے کی۔

**مسئله ۱**:- که میت دفن کړے شوے وَ۔ خاورے پے اچولے شوے۔ او جنازه
ئے نه وه کړے شوے۔ نو په قبر دے وکی۔ خو هله که دا غالب گمان نه وَ۔ چه د میت بدن
به چاؤدلے وی۔ اوکه دا گمان وَ۔ نو بیا دے نه کوی۔ او د نعش چاؤدلو موده د ژمے
او د گرمئ یخنئ او د میت په څوربوالی او کمزوروالی سره مختلفه کیږی۔ نو صحیح
خبره داده چه څه خاصه موده ورله مقرره نشته۔ او ځینے عالمانو درے ورځے۔ او
ځینے لس ورځے۔ او ځینے یوه میاشت خوښے ده۔

**مسئله ۲**:- کوم ځائے چه میت مړ شوے دے۔ د دغه ځائے د مقبرے
نه سوا بل ځائے ته ئے د ښخولو د پاره وړل خلاف اولیٰ دی۔ او امام محمدؒ صاحب
وائی چه دغه بل مقام که د یو میل دوؤ نه زیات لرے وَ۔ نو بیا مکروه دی۔ او
ځینے وائی چه مسافت که د دریؤ ورځو نه کم وَ نو خیر دے۔ او ځینے وائی چه مطلقاً
جائز دی۔ او پس د دفن نه ئے راایستل بل کلی ته ئے د ښخولو د پاره نقل کول جائز
نه دی۔ لرے وی اوکه نژدے۔ لیکن ځینے عالمان وائی چه جوازئے شته۔ ځکه چه د
یعقوبؑ او د یوسفؑ لاش مبارک د خپلو اقرباؤ سره د دفن کولو د پاره د مصر
نه شام ته نقل کړے شوے وَ۔ خو اکثر عالمان وائی چه هغه بل شریعت وَ۔ او حمونږ
په شریعت کښ جائز نه دی۔

**مسئله ۳**:- بعض وائی چه ځان له کفن تیار ساتل مکروه نه دی۔ او قبر
تیار ساتل مکروه دی۔ ځکه چه مرګ یقینی دے۔ او دا پته نشته چه کوم
ځائے به مرم۔ او بعض وائی چه ځان له قبر تیار ساتل هم مکروه نه دی۔ بلکه کار
د ثواب دے۔

**مسئله ۴**:- په یو قبر کښ دے د یو نه زیات لاشونه نه دفنه وی۔ اوکه سخت ضرورت
وُ۔ نو جائز دی۔ پس که لاشونه مختلف قسم وُ۔ نو مینه دے قبلے جانب ته د سړی
لاش کیدی۔ د هغه شا ته د هلک۔ او د هلک شا ته د ښځے۔ او په هغے پسے د
جینئ۔ اوکه یو قسم وو۔ نو کوم چه غوره دے۔ مینه هغه دا رنګ درجه بدرجه۔ آ

له بحرالرائق ورد المحتار ۱۲ ؎ فتح القدیر و شامی و هندیه ۱۲ ؎ درمختار و شامی و شرح المنیه ۱۲ ؎ بحرالرائق و هندیه

دودوؤ مړو په مینځ کښې دے دَخاورو یو معمولی آړ راولی۔

**مسئلہ** [۱]:- کہ پس دَمیت دَ دفنه ولو نہ ئے شنہ څانگہ په قبر ودروله۔ بدی په کښې نشته۔ او دَمقبرے نہ شنه واخه او شنه لرگی پریکول مکروه دی۔ اوکه وچ وو۔ نو کراهت پکښې نشته۔

**مسئلہ** [۲]:- دَمیت رشته دارانوله تسلی ورکول او دهغوئ نہ دَصبر فضائل بیانول۔ او دَهغوئ دَپاره دَصبر او دَمیت دَپاره دَاجر دعاکول دے نہ تعزیت ویلے شی۔ دَدریو ورځو نه پس تعزیت مکروه تنزیهی دے۔ لیکن کہ تعزیت کونکے یا دَمیت رشته دار په سفر کښې وُو۔ یا څوک مینه خبر نهٔ۔ دَدریو ورځو نه ورستو راغے۔ نو هم خیر دے۔ په تعزیت کښې کراهت نشته۔ او څوک چه یوځل تعزیت وکی۔ په دویم ځل مکروه دی۔ دارنگ دَمیت په قبر تعزیت کول مکروه دی۔ او دکور په دروازه۔

**مسئلہ** [۳]:- دَاقرباءِ میت گاونډیانو او لرے رشته دارانو له مستحب دی۔ چه دوئ له طعام تیار کی۔ یو شپه او ورځ۔ او ځینے وائی چه دَدریو شپو ورځو پورے

**مسئلہ** [۴]:- کہ څوک مړی ته ثواب رسول غواړی۔ نو نفل مونځ۔ نفل روژه صدقات خیرات دے ورپسے کوی۔ ثواب دے دَهغه روح ته بخی۔ البته څه تخصیص دَوقت په کښې ضرور نه دے۔ هروقت رسی۔ ایصالِ ثواب حق دے۔

**فائدہ** [۵]:- کومه ښځه چه په دنیا کښې دَسړی منکوحه وی۔ نو چه دے په قیامت کښې جنت له لاړشی۔ هلته به ئے هم دغه سړے خاوند وی۔ اوکه په دنیا کښې دَښځے دوه خاوندان وُو۔ نو آخری به خاوند وی۔ خو بعضے وائی چه نه بلکه ښځے له به اختیار ورکړے شی۔ هریو چه ئے په دے دواړو کښې خوښ که۔ او باکره ځینئ مړه شوے وه۔ نکاح ئے نه وُ شوے۔ نو په جنت کښې به ورله اختیار ورکړے شی۔ هر سړے چه ئے ځان له غوره که۔ اوکه بنیادم ئے څوک خوښ نه شه۔ نو خدائے پاک به ورله یو نارینه پیدا کی دَحورونه۔ نو دَهغه سره به ئے نکاح وتړی۔

**فائدہ** [۶]:- دَقبر دَزیارت ښه طریقه داده چه کوم سړے ورزی۔ نو دَخپو دَطرفه ئے ورشی۔ اول داذُعا او وائی اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِیْنَ وَ اِنَّا اِنْ شَاءَ اللّٰهُ بِکُمْ لَاحِقُوْنَ وَنَسْأَلُ اللّٰهَ لَنَا وَلَکُمُ الْعَافِیَةَ ؕ بیادے دَ

---

[۱] رد المحتار ۱۲ [۲] هندایه وشامی ۱۲ [۳] ملا علی قاری ۱۲ [۴] درودد ۱۲ [۵] مجموعة الفتاویٰ بحواله غرائب ۱۲
[۶] درمختار وشامی ۱۲

قرآن شریف څه سورتونه ولولي ـ کوم چه ورته آسان وي ـ لکه سورهٔ فاتحه ـ دَ سورهٔ بقره اوله حصه دَ مفلحون پورے ـ آیة الکرسی ـ آمن الرسول ـ سورهٔ یٰسٓ ـ سورهٔ تبارک الذی سورهٔ تکاثر او اخلاص دولس پیرے ـ یا یو یٰسین یا اووَ یا درے پیرے ـ بیا دے دَ هغے ثواب مړه ته یا دَ مقبرے مړو ګانو ته وبخي ـ او دَ شرک دَ کاموڼه دے ځان بنه وساتي اوَ بابا ګانو نه غوښتل شرک دے ـ هرڅه چه غواړې دَ خدای پاک نه یې غواړې ـ

| دَ شهید احکام |
| --- |

شهید په دوه قسمه دے ـ یو شهید دَ دنیا و آخرت ـ بل صرف شهید دَ آخرت ـ دَ اول قسم حکم دا دے ـ چه لمبول ورله نشته ـ او با قاعده کفن ورله نه ورکیږي ـ او ثواب اُخروي یې ډیر زیات دے ـ او دَ دویم قسم حکم دا دے ـ چه غسل او کفن ورله دَ نورو مړو په شان با قاعده ورکیږي ـ او په آخرت کښې ورله ثواب موعود هم شته ـ

مسئله :ـ اول قسم شهادت نه شهادتِ کامله ویلے شي ـ دَ هغے دَ پاره اوهٔ شرطونه دي ـ یو شرط اسلام دے ـ دَ کافر دَ پاره هیڅ قسم شهادت نه شي ثابتیدے ـ دویم او دریم شرط دا دے چه عاقل وي او بالغ ـ نو که په حال دَ لیونتوب کښې یا په حالت دَ ورکوټوالي کښې اووژلے شه ـ په اول قسم دَ شهادت کښې داخل نه دے ـ څلورم شرط دا دے چه پاک وي دَ حدثِ اکبر نه ـ یعنې پاک وي دَ جنابت نه ـ او دَ حیض او دَ نفاس نه ـ نو که څوک جنب شهید کړے شه ـ یا ښځه شهیده کړے شوه په داسے حال کښې چه حیض یا نفاس یې جاري وُ ـ یا بند شوے وُ ـ خو غسل یې لا نه وُ کړے ـ نو دي هم په قسم اول کښې داخل نه دي ـ غسل وغیره ورله با قاعده شته ـ پنځم شرط دا دے چه بے ګناه وژلے شوے وي ـ نو که چا وژلے نه وُ ـ بلکه وُسه ـ یا غرق شه مثلاً ـ نو په اول قسم کښې داخل نه دے ـ او که څوک دَ شرعي جرم په سزا کښې اووژلے شه ـ هغه هم شهید نه دے ـ غسل وغیره ورله شته ـ شپږم شرط دا دے چه دَ دے قتل په سزا کښې دَ شریعت دَ طرف نه ابتداءً څه مالي عوض نه وي مقرر شوے ـ بلکه واجب شوے وي قصاص ـ یا هیڅ نه وي واجب شوي ـ نو که مالي عوض مقرر وُ ـ مثلاً مسلمان وژلے بل مسلمان یې په غیر آلهٔ جارحه سره او وَجے لکه په لوړے اووهه ـ مړ یې کړه ـ یا په آلهٔ جارحه سره خو خطاءً ـ لکه ښکار یې ویشته ـ یا خاروے ـ نو په غلطئ سره په سړے ولګید مړ شه ـ یا مثلاً څوک مړ

له شامی ۱۲ ؎ بحر دابق ددر مختار ورد المحتار ۱۲

او مونده شه - په یو ځائے کښې بے د میدان جنګ نه - او قاتل ئے معلوم نه وی - نو په دے صورت کښې چونکه مالی عوض واجب دے - قصاص واجب نه دے - دکامل شهادت احکام به پے نه جاری کیږی - یعنے غسل وغیره ورله شته - اود مالی عوض په تقرر کښې د ابتداءً قید لګولو وجه داده - چه ابتداءً که شرعاً قصاص مقرر وی - لیکن بیا په څه وجه سره قصاص پاتے شه - او مال واجب شه - نو د کامل شهادت احکام به جاری کیږی - مثلاً یو سړی قصداً ظلماً په آله جارحه سره اووژلے شه - لیکن بیا د قاتل او د مقتول د وارثانو صلح وکړه - مال ئے واخست - نو چونکه ابتداءً قصاص واجب وو - اګر که بیا قصاص وغورزیږ او مال واجب شه - د اول قسم شهادت احکام به پے جاری کیږی - دارنګ که پلار د ګیډ ځوئے اووژے قصداً - نو ابتداءً په نفس قتل سره قصاص واجب دے - اګر که د پدری احترام ساتلو په غرض دلته لویدلے دے - قصاص نشته - نو د کامل شهادت احکام به جاری کیږی -

**مسئله** [1] :- اووم شرط دادے چه د مسلمان یا د ذمی د لاسه که وژلے شوے وی - نو چه په آله جارحه سره وی - پس که په آله غیر جارحه سره وی - نو په اول قسم د شهادت کښې داخل نه دے - لیکن ځینے عالمانو دا مسئله هم راوړے - چه سړی که د خپل نفس یا د خپل بال بچ نه یا د بل مسلمان نه جائز مدافعت کاوی - او په دے کښې اووژلے شه - نو اګر که په آله غیر جارحه سره وی - هم به پے دکامل شهادت احکام جاری کیږی -

**مسئله** [2] :- که څوک د حربی کافرانو یا د باغیانو یا د ډاکوانو د لاسه قتل شه یا د دی په جنګ کښې مقتول او مونده شه - او اثر د قتل پے وی - نو په دے صورت کښې دا شرط نشته - چه په آله جارحه سره وژلے شوے وی - بلکه هغوی که په ګټو ویشتلے او مړ کړے وی - هم به پے د شهید کامل احکام جاری کیږی - بلکه دا هم ضروری نه ده - چه دوی په خپل لاس قتل کړے وی - ځکه که دوی که سبب د قتل وګرځیدل - یعنے یو داسے کار ئے وکړه - چه هغه ذریعه د دے قتل وګرځیدا - نو هم په اول قسم کښې داخل دے - مثلاً حربی کافر په آس سور وی - مسلمان ئے وچقائو شهید ئے که - یا مسلمان په آس سور وی - حربی کافر وګلید - هغه ئے داسے وزغلاوی - چه مسلمان تے ارتاوی شه - شهید شه - نو دا هم شهادت کامله دے

[1] بحر رائق ۱۲ [2] بحر رائق وشامی ۱۲

البته که دَ مشرک اس څوک مسلمان وچقاوُ۔ او په اس څوک سور نه وُ ۔ یا دَ بل مسلمان اس یو مسلمان وچقاوُ۔ دَ دے نه شهید شه ۔ نو په اول قسم شهادت کښې داخل نه دے ۔

مسئله :- اتم شرط دادے چه په شهادت کښې تاخیر نه وی راغلے ۔ یعنے پس دَ ګلکیدلو نه ئے دَ ژوندون دَ آرام وراحت څه کار لکه خوړل سکل ۔ دارو علاج کول خوب ۔ خرید وفروخت وغیره نه وی کړے ۔ او نه ئے دَ یو مانځه وقت په ثبات دَ هوش وحواس کښې په داسے طریقه تیر شوے وی ۔ چه دَ مونځ اداکولو قدرت ئے پکښې وُ او نه په حالت دَ هوش کښې راوړے شوے وی ۔ دَ میدان جنګ نه ۔ هاں که دَ حیواناتو چقولو په یره نقل کړے شوے وُ ۔ نو خیر دے ۔ پس که دَ زخم ګلکیدلو نه بعد ئے ډیر کلام وکه ۔ یا ئے دَ څه دنیاوی خبرے وصیت وکه ۔ نو هغه له به هم غسل ورکیږی ۔ البته که په میدان جنګ کښې شهید شه ۔ او مذکوره تاخیر ئے واقع شوے وُ ۔ خو په دوران دَ جنګ کښې ۔ نو شهید کامل دے ۔ غسل به نه ورکیږی ۔

مسئله :- په کوم شهید کښې چه دَ شهادت مذکوره شرائط موجود وی ۔ دَ هغه تفصیلی حکم دادے چه غسل دے ورله نه ورکوی ۔ او دَ هغه وینه دے دَ هغه دَ جسم نه نه لرے کوی ۔ او کوم جامے چه ئے اغوستے وی ۔ هغه دے تے نه اوباسی بلکه دغه شان دے دفن کی ۔ البته که اغوستے جامے ئے دَ مسنونه کفن دَ عدد نه کمے وے ۔ نو دَ مسنونه کفن عدد پوره کولو دپاره دے ورسره نورے کپړے زیاتے کی ۔ او دارنګ که دَ هغه اغوستی زیږی دَ مسنون کفن نه زیات وُو ۔ زیاتے دے تے لرے کی ۔ او که څه داسے شے ئے هم اغوستے وُ ۔ چه هغه دَ کفن قابل نه وُ ۔ لکه پوستین وغیره ۔ نو هغه دے تے اوباسی ۔ لیکن که ئے د داسے شی نه ئے په بدن بل څه نه وُ ۔ نو نه دے اوباسی تے ۔ او وسله ۔ ټوپئ ۔ پټئ ۔ موزے که وے ۔ یا بل داسے شے ۔ هغه دے تے لرے کی ۔ او دَ دفن وغیره باقی احکام څه رنګ چه دَ نورو مړو وی ۔ هغه دَ ده هم دی ۔ نو لیس دَ جنازے نه دے دغه شان سره دَ وینے او سره دَ جامو دفن کی ۔ او دَ ده وینه پاکه ده خوهله چه دَ ده په بدن او په لباس وی ۔

---

[۱] شرح التنویر وشامی ۱۲ [۲] درمختار وشامی وبحرالرائق ۱۲

**مسئله** :- که څوک دَ خدائے په لار کښې شهید کړے شه - یا هسې مظلوماً او مذکوره شرائط دکامل شهادت په کښې نهٔ جمعه - نو دے هم شهید دے - خو صرف شهید دَ آخرت - یعنې ثواب موعود ورله شته - او دنیاوی احکام به پے دَ نورو مړو په شان جاری کیږی - یعنې غسل کفن ورله با قاعده شته - دا رنګ که چا وژلے نهٔ وی - بلکه مکان پے ولویږ - یا غرق شه - یا وُسه - یا په طاعون مړشه - یا دَه په کلی کښې طاعون وُ - خو دے دَ طاعون په یره ونه وت - بلکه صابر او محتسب وُ - او په دغه حالت کښې مړشه - اګر که په بل مرض سره وی - یا څوک بنځه مړه شی - په حالت دَ دردِ زه کښې - یا څوک مړشه دَ جُمعے په شپه - یا دَ جمعے په ورځ یا مړشه په داسے حالت کښې چه شغل ئے دَ علمِ دین لاره - مثلاً تالیف - یا تصنیف یا تدریس ئے کاوُ - یا ئے سبق وے - نو دا ټول په دویم قسم شهادت کښې داخل دی - بلکه علامه سیوطیؒ صاحب په خپل کتاب کښې دَ دیرشو پورے شمارلی دی - او بعضے دَ نحوَ سوه هم زیات بیان کړی دی -

| په کعبه شریفه کښې دَ مونځ کولو بیان | په کعبۂ شریفه کښې دننه هم مونځ جائز دے - او هلته دَ مونځ کونکی مخ هرطرف ته چه وی - استقبال دَ قبلے راځی - ځکه چه هغه |
|---|---|

څلور واړه جانبه قبله ده - او څه رنګ چه په کښې نفل جایز دی - دا رنګ فرض وغیره په کښې هم جایز دی - او که دَ کعبے شریفے دَ چت دَ پاسه چا مونځ کاوُ - نو هم کیږے شی - ځکه چه کعبه سره دَ آسمانه پورے قبله ده - لیکن دَ کعبے دَ پاسه په ختلو کښې بے ادبی ده - او نبی علیه السلام دَ هغے په چت باندے دَ مونځ کولو نهی هم فرمایلے لهٔ دے وجے نه دا مکروه تحریمی دی -

**مسئله** :- په کعبه شریفه کښې څهٔ رنګ چه ځان له مونځ جایز دے - جماعت کول په کښې هم جایز دی - او هلته دا ضروری نه ده چه دَ امام او دَ مقتدیانو مخ یو جانب ته وی - بلکه څونه که ئے جدا جدا جانب ته وو - هم اقتدا صحیح ده - البته دا ضروری ده چه مقتدی دَ امام نه مخکښې نهٔ وی ولاړ - یعنې کوم جانب ته چه دَ امام مخ دے که دَ مقتدی مخ هم دغه جانب ته وَ - نو دا ضروری ده - چه مقتدی به دغه جهت کښې دَ امام نه وړاندے نه وی -

نو مطلب دا شه چه دَ مقتدی شا په دغه جهت کښې نهٔ دَ امام عینِ مخ ته راځی

---

۱ درمختار وشامی و بحرالرائق ۱۲ ۲ بحرالرائق و درمختار ۱۲

اونه دَ امام شی او کس جانب ته ـ کنی نو دَدے مقتدی اقتدا ورلیپے صحیح نه ده ـ ځکه چه
دے تے مخکښ ولاړ دے ـ او که دَ مقتدی مخ دَ امام مخ ته وُ ـ نو جائز خوری ـ ځکه چه دَ
دَ امام نه مخکښ نه دے ولاړ ـ مخکښ به هغه کمڼے کیده ـ که دَ دواړو مخ یو جهت ته وے
او مقتدی په دغه جهت کښ وړاندے وے دَ امام نه ـ لیکن هاں په دے صورت کښ
مونځ مکروه دے ـ ځکه چه بل ته مخامخ مونځ کول مکروه دی ـ البته که په
مینځ کښ څه حائل کړے شه ـ بیا مکروه نه دے ـ

**مسئله:** ـ که امام په کعبه کښ دننه وُ ـ او مقتدیانو باهر چاپیره حلقه جوړه کړے
ده ـ ولاړ وُ ـ هم مونځ کیږی ـ خو دومره خبره ده ـ چه امام که دننه یوازے ولاړ
وُ ـ او مقتدیان ورلیپے ټول باهر ولاړ وُو ـ نو کراهت په کښ راځی ـ وجه داده
چه دَ کعبے اندرونی حصه اوچته ده ـ په سبب دَ دکون ـ نو کوم ځائے چه امام تنها
ولاړ دے هغه په قدر دَ یو قامت اوچت دے دَ مقتدیانو دَ ځائے نه ـ او دا مسئله
په باب دَ مکروهات نماز کښ تیره شوے ده ـ او که مقتدیان ټول دننه وُو ـ او امام
باهر وُ ـ نو وائی ظاهره داده چه دا هم جائز دی ـ خو چه څه خبره مانع دَ اقتدا
نه وی موجوده ـ یعنی مقتدی په دغه جهت کښ دَ امام نه مخکښ نه وی ولاړ ـ لیکن
دَ کراهت مذکوره خبره دلته هم شته ـ ځکه چه دَ امام تنها ودریدل په یو داسے
مکان چه هغه کم نه کم یو لاس کوزوی دَ مقتدیانو دَ ځائے نه مکروه دی ـ لکه چه
تیر شوی دی ـ

**مسئله:** ـ که امام او مقتدیان ټول دَ کعبے نه باهر وُو ـ امام ولاړ وُ یو جهت
ته ـ او مقتدیانو چاپیره حلقه تړلے ده ـ ورلیپے ولاړ وُ ـ لکه چه هلته عموماً دغه شان
مونځ کوی نو دا هم جائز دی ـ خو شرط داده چه کوم جهت ته امام مخ کړے وی ـ
په دغه جهت کښ تے مقتدی مخکښ نه وی ولاړ ـ ورنه دَدے مقتدی اقتدا ورلیپے
صحیح نه ده ـ مثلاً امام کعبے ته مخ کړے دے ـ او دَ هغه دَ دیوال نه په دوه گزه فاصله
ولاړ دے ـ او مخ ئے دے جانب دَ جنوب ته ـ نو کوم مقتدیانو چه کعبے ته دغه جانب
دَ جنوب ته مخ کړے ـ او دَ کعبے دیوال ته یو گز نزدے دی ـ دَ دی اقتدا په دغه امام
لیپے صحیح نه ده ـ ځکه چه دی وړاندے دی دَ هغه نه

| ذبانک اودَ مانځه لفظی ترجمه | اَللهُ اَکبَرُ خدائے پاک ډیر لوئ دے ـ اَللهُ اَکبَرُ خدائے |
| --- | --- |

ے بحر رائق ودرمختار وشامی ۱۲ ے درمختار ورد المختار ۱۲

پاک ویرلوی دے۔ اَللّٰہُ اَکْبَرُ اَللّٰہُ اَکْبَرُ۔ خدائے تعالیٰ ویرلوی دے۔ خدائے تعالیٰ ویرلوی دے۔ اَشْھَدُ اَنْ لَّآ اِلٰہَ اِلَّا اللّٰہُ۔ زہ گواهی کوم چہ نشته معبود برحق بے دخدائے پاک نہ (دوه پیرے دوائی)، اَشْھَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰہِ۔ زہ گواهی کوم چہ محمد صلعم دخدائے رسول دے (دوه پیرے دے وائی) حَیَّ عَلَی الصَّلٰوۃِ راشئ مانځه له۔ (دوبار) حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ۔ راشئ کامیابیدو له (دوبار) او دسحر په بانگ کښې دے درے نه پس دوه پیرے وائی چه) اَلصَّلٰوۃُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ۔ مونځ غوره دے دخوب نه۔ (او دمانځه په تکبیر کښې دوه پیرے دائی چه) قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃُ۔ په تحقیق سره ودریده (جماعت) دمونځ۔ اَللّٰہُ اَکْبَرُ۔ اَللّٰہُ اَکْبَرُ۔ خدائے پاک ډیرلوئے دے۔ خدائے پاک ډیرلوئے دے۔ لَآ اِلٰہَ اِلَّا اللّٰہُ نشته معبود برحق بے دخدائے پاک نه۔

**مونځ**:۔ سُبْحَانَکَ اللّٰھُمَّ پاکی وایو تالره اے خدایه۔ وَبِحَمْدِکَ او ستا په تعریف سره۔ (یاده وو مونږ تالره) وَتَبَارَکَ اسْمُکَ۔ او مبارک دے نوم ستا۔ وَتَعَالٰی جَدُّکَ او لوئے دے شان ستا۔ وَلَآ اِلٰہَ او نشته معبود برحق غَیْرُکَ۔ بے ستانه۔ اَعُوْذُ۔ پناه غواړم زه۔ بِاللّٰہِ په خدائے پاک سره۔ مِنَ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْمِ۔ دشیطان رټلی شوی نه۔ بِسْمِ اللّٰہِ۔ شروع کوم په نامه د خدائے پاک اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ۔ چه رحم کونکے او مهربان دے۔

**سورۃ فاتحه**:۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰہِ ټوله ثنا خدائے لره ده۔ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ۔ چه پالونکے د مخلوقاتو دے۔ اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ۔ رحم کونکے او مهربانه دے۔ مٰلِکِ یَوْمِ الدِّیْنِ مالک دے دورځے د قیامت۔ اِیَّاکَ نَعْبُدُ (اے خدایه) خاص ستا عبادت کوو مونږ وَاِیَّاکَ نَسْتَعِیْنُ۔ او خاص ستانه مدد غواړو۔ اِھْدِنَا وخیه مونږ ته اَلصِّرَاطَ الْمُسْتَقِیْمَ لاره نیغه صِرَاطَ الَّذِیْنَ لاره د هغه کسانو اَنْعَمْتَ عَلَیْھِمْ چه تا انعام کړے دے په هغوی غَیْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَیْھِمْ۔ نه د هغه کسانو چه غضب پے کړے شوے دے وَلَا الضَّآلِّیْنَ۔ او نه د گمراهانو۔ آمِیْنَ۔ دا دعا قبوله کړے۔

**سورۃ اخلاص**:۔ قُلْ۔ او وایه۔ ھُوَ۔ شان دا دے۔ اَللّٰہُ اَحَدٌ چه خدائے یو دے۔ اَللّٰہُ الصَّمَدُ۔ خدائے بے نیاز دے۔ یعنے ټول ورته محتاج دی۔ او هغه چاته محتاج نه دے۔ لَمْ یَلِدْ۔ نه ئے څوک پیدا شوی۔ وَلَمْ یُوْلَدْ او نه د چانه پیدا شوے۔ وَلَمْ یَکُنْ لَّہٗ کُفُوًا اَحَدٌ۔ او نشته د هغه مثل

هیځوک ۔

**تسبیح** :۔ سُبْحَانَ پاک دے ۔ رَبِّیَ ۔ رب ځما ۔ اَلْعَظِیْم ۔ چه ډیر لوئے دے ۔
سَمِعَ اللّٰهُ ۔ واوریدی خدائے پاک ۔ لِمَنْ حَمِدَہٗ ۔ دَهغه چاچه دَ هغه ثنائے وکړه ۔
رَبَّنَا ۔ اے پروردګاره ځمونږ ۔ لَکَ الْحَمْدُ ۔ خاص تالره ثابته ده ثنا ۔ سُبْحَانَ رَبِّیَ
الْاَعْلٰی ۔ پاک دے رب ځما چه ډیر عالیشان دے ۔

**تشهد** :۔ اَلتَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ ۔ دَ ژبے قول عبادتونه خاص خدائے پاک دَ پاره دی ۔
وَالصَّلَوٰتُ ۔ او (هم) بدنی عبادتونه وَالطَّیِّبَاتُ اومالی عبادتونه اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ
اَیُّهَا النَّبِیُّ ۔ سلام دے وی په تا باندے اے نبیؐ ۔ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَکَاتُهٗ ۔ او رحمت
دَ خدائے پاک او برکتونه دَ هغه ۔ اَلسَّلَامُ عَلَیْنَا سلامتیا دے وی په مونږ باندے ۔
وَعَلٰی عِبَادِ اللّٰهِ الصّٰلِحِیْنَ او په بندګانو دَ خدائے پاک باندے چه نیک دی اَشْهَدُ
اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ زه شاهدی کوم چه نشته معبود برحق بے دَ خدائے پاک نه ۔ وَ
اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ۔ او شاهدی کوم چه محمّد صلعم دَ هغه بنده
اودَ هغه رسول دے ۔

**درود شریف** :۔ اَللّٰهُمَّ صَلِّ ۔ اے خدایه رحمت نازل کے ۔ عَلٰی مُحَمَّدٍ ۔ په
محمّدؐ باندے ۔ وَعَلٰی اٰلِ مُحَمَّدٍ ۔ او په آل دَ محمّدؐ باندے ۔ کَمَا صَلَّیْتَ[۱] ۔ لکه چه رحمت
دے کړے دے ۔ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ په ابراهیمؑ باندے ۔ وَعَلٰی اٰلِ اِبْرَاهِیْمَ ۔ او په آل
دَ ابراهیمؑ باندے ۔ اِنَّکَ ۔ په تحقیق سره ته ۔ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ ۔ ستائیلے شوے ۔ او ځا
دَ لویئے ئے ۔ اَللّٰهُمَّ بَارِکْ اے خدایه برکت نازل کے ۔ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِ مُحَمَّدٍ ۔ په
محمّدؐ باندے او په آل دَ محمّدؐ باندے ۔ کَمَا بَارَکْتَ لکه چه تا برکت کړے دے ۔ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ
وَعَلٰی اٰلِ اِبْرَاهِیْمَ ۔ په ابراهیمؑ باندے او په آل دَ ابراهیمؑ باندے ۔ الخ

**دُعا** :۔ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا ۔ اے خدایه اے پروردګاره ځمونږ ۔ اٰتِنَا فِی الدُّنْیَا
راکے مونږ له په دنیا کښ ۔ حَسَنَةً ۔ نیکی ۔ وَفِی الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً ۔ او په اخرت کښ
نیکی ۔ وَقِنَا ۔ او اوساتے مونږ ۔ عَذَابَ النَّارِ ۔ دَ عذابه دَ اورنه ۔ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ
لِیْ ۔ اے خدایه او بخښه ما ۔ وَلِوَالِدَیَّ ۔ او مور پلار ځما ۔ وَلِلْمُؤْمِنِیْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ
او مومنان سړی او مومنانے ښځے ۔ وَالْمُسْلِمِیْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ ۔ او مسلمانان سړی

---

[۱] مشبه به کله ضعیف وی ۔ یا کاف په کما کښ په معنیٰ دلام دے
وغیره وغیره ۱۲ منه

او مسلمانانو ښځې - اَلْاَحْيَاءِ مِنْهُمْ وَالْاَمْوَاتِ ژوندي دغوی او مړه - اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ - سلامتیا دې وي په تاسو باندې - او رحمت د خدای دې پاک -

**دُعاءِ قنوت** :- اَللّٰهُمَّ اِنَّا - اې خدایه په تحقیق سره مونږ نَسْتَعِيْنُكَ مدد غواړو ستانه - وَنَسْتَغْفِرُكَ - او طلب د بخښنې کوو ستانه - وَنُؤْمِنُ بِكَ او ایمان راوړو په تا - وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ - او توکل کوو په تا - وَنُثْنِيْ عَلَيْكَ الْخَيْرَ - او ثنا لولو په تا باندې نیکه - وَنَشْكُرُكَ او شکر اداکوو ستا - وَلَا نَكْفُرُكَ او ناشکري نه کوو ستا - وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ - او لرې کوو مونږ او پرېږدو مَنْ يَّفْجُرُكَ هغه څوک چه نافرماني کوي ستا - اَللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ - اې خدایه خاص ستا عبادت کوو مونږ وَلَكَ نُصَلِّيْ وَنَسْجُدُ - او خاص ستا دپاره مونځ کوو مونږ او سجده کوو - وَاِلَيْكَ نَسْعٰى - او خاص ستا طرف ته زغلو مونږ - وَنَحْفِدُ او خدمت ته حاضریږو مونږ - وَنَرْجُوْا رَحْمَتَكَ - او امید لرو مونږ د رحمت ستا - وَنَخْشٰى عَذَابَكَ او یریږو مونږ د عذاب ستانه - اِنَّ عَذَابَكَ - په تحقیق سره عذاب ستا چه دې - بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ ط په کافرانو پورې پیوست کیدونکې دې -

## جنازه

سُبْحَانَكَ الخ - وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ - او لویه ده ثنا ستا الخ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ - اې خدایه رحمت نازل کړې په محمد ﷺ باندې او په آل د محمد ﷺ باندې كَمَا صَلَّيْتَ وَسَلَّمْتَ لکه چه رحمت دې نازل کړې او سلامتیا - وَبَارَكْتَ - او برکت دې کړې وَرَحِمْتَ وَتَرَحَّمْتَ او رحم دې کړې - او ښه رحم دې کړې عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ - په ابراهیم ؑ باندې - الخ

## دجنازې دُعا دپاره دلولو

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ - اې خدایه اوبخښه - لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا ژوندي حمونږ او مړي حمونږ وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا - او حاضر حمونږ او غائب حمونږ - وَصَغِيْرِنَا وَكَبِيْرِنَا - او واړه او لوي حمونږ وَذَكَرِنَا وَاُنْثَانَا - او نارینه حمونږ او زنانه حمونږ - اَللّٰهُمَّ مَنْ اَحْيَيْتَهٗ مِنَّا - اې خدایه څوک چه ژوندي لرې حمونږ نه - فَاَحْيِهٖ عَلَى الْاِسْلَامِ نو ژوندې ئې لرې په اسلام باندې - وَمَنْ تَوَفَّيْتَهٗ مِنَّا او څوک چه مړه کوې حمونږ نه - فَتَوَفَّهٗ عَلَى الْاِيْمَانِ - نو وفات ورله ورکړې په ایمان باندې -

# دُعا دَجنازے دَپاره دَوَړو

اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا ۔ اے خدایه و ګرځوے دے هغونړ دَپاره ۔ فَرَطًا ۔ مخکښں تلونکے دَپاره دَسامان تیاروںلو ۔ وَاجْعَلْهُ لَنَا ۔ او دے ګرځوه هغونړ دَپاره اَجْرًا رباعث دَ ثواب ۔ وَذُخْرًا ۔ او ذخیره ۔ وَاجْعَلْهُ لَنَا ۔ او دے ګرځوه هغونړ دَپاره شَافِعًا وَّ مُشَفَّعًا ط او شفاعت کونکے ۔ او شفاعت قبول کړے شوے ۔